# نورُ الاِیضاح
مع الحواشی

مولانا ابوالفضل علامۃ الدہر

## مُحمّد عُبَیدُ اللّٰہ الایوبی

القندھاری السُّلیمانخیلی الحنفی

کتبہ ورتبہ بقلمہٖ

## مُحمّد فضلُ الحق حقانی

مدرس جامعہ تجوید القرآن کوئٹہ


پروپرائٹر
شمسُ الحق شمس

مکتبۃُ القراۃ والتجوید
کانسی روڈ شالدرہ نزد مسجد نور کوئٹہ

الهی تا لره هزار باره شکر دی چی تا توفیق د طباعت د دی
ښکلی تحفی یعنی پښتو نورالایضاح دوهم ۲ ټوک راکړ

# نُورُ الاِیضَاح

پښتو دوهم

۲
ټوک


تصنیف د حضرت علامه ابوالفضل الحاج
محمد عبید الله الایوبی
القندهاري السلیمانخیلي النقشبندی الحنفی،



الناشر
مکتبة القراءة والتجوید
کانسی روډ شالدره کوئټه

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لا نبی بعده،

وبعد! محترمو لوستونکو! دا ښکلی تحفه پښتو شرح د نور الایضاح (دوهم ټوک) چې تاسو په لاسو کې موجوده ده. د حضرت علامه ابوالفضل محمد عُبَید الله الایوبی القندهاری السلیمانخیلی الحنفی النقشبندی تصنیف دی"

محترمو تاسو ته معلومه ده چې د اسلام د دین حقه مخالفینو هر ډول، او په هره جامه کې د دین اسلام خلاف تحریکونه چلولی، او چلوی ئې، خو د دی ټولو کوششونو سره سره لله الحمد د افغانانو په هغه طبقه کې کوم چې د حضرت ایوبی قندهاری وکتابونو سره مینه او علاقه لري، د یهود او هنود، او نصاری وو تحریکونه منجمد او بې فائدې ثابت سوي، زما په فکر دا د حضرت ایوبی د عظیمو مفکوری، انقلابي فکر، او د عظیمو پښتو کتابونو نتیجه ده.

لله الحمد چې د حضرت کتابونه وهغو افغانانو لره کوم چې د وطن مالوف څخه لیری د مسافری او پردیسی ژوند تیروی، هغوی، او د هغوی د بچیانو لپاره د یو معتمد استاذ حیثیت لري، او ولې به ونه لري چې زمونږ ورونو افغانانو د خپل دین او مذهب په مسئلو باندی سر قربانولو ته تیاردی، هیله ده چې د حضرت ایوبی و ټولو کتابونو او په خاص ډول هغه کتابونه چې په پښتو ژبه ژباړه سوي دي هر افغان د قدر په سترګه وګوری او خپل د کور، وتوزیو، او بنایست ئې وګرځوی. والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته:

خرګه چې حضرت ایوبی د کتابت کار، وما احقر فضل الحق حقانی ته چې د حضرت دادنی شاګردانو څخه یم، راوسپاری. ما هم دا کار ځان د پاره یو اعزاز وګڼی او د الله په توفیق او تاسو د مستجابه دعا ګانو په برکت سرته ورسید، او حضرت را ته حقوق د طبع هدیه کړه.

ان شاء الله دریم ټوک به هم ژر تر ژره ستاسو تر لاسونو درورسوو!

فضل الحق حقانی

مدرس جامعه تجوید القرآن کوئټه وناظم مکتبة القراءة والتجوید





بسم الله الرحمن الرحیم

وبه نستعین. وعلیه توکلت واسئال الله تعالی ان یوفقنی لتألیف الجلد الثانی من شرح **نور الایضاح** بالخیر والصحة والسلامة، والصلوة والسلام علی سید البریة وآله وصحبه الکملة"

| | |
|---|---|
| داول جلد ه سوم خلاص په عافیت ؛ | دویم جلد د ی خدای کی ختم په صحت |
| همت بلند دار که نزد خدا و خلق ؛ | باشد بقدر همت تو اعتبار تو. |
| همت لوړ دی باری خدای به زه پوهیږم ؛ | مګر مرګ به کله راسی نه پوهیږم. |
| تر اجل پوری به کار زما داغه وي ؛ | د قیامت د پاره زما به ذخیره وي |
| په قیامت به زما بخښنی د ابهانه وي ؛ | د دعا د خلګو هم به د ابهانه وي. |

قال المصنف

# فصل فی واجب الصلوة

**وهي ثمانية عشر شيئًا** فصل دی په بیان د واجب د لما څخه او هغه اتلس شیان دي. **پوهه سه**: چې وجوب په لغت کې لزوم ته وائي. او سقوط ته هم. او اضطراب ته هم. او په شرع کې هغه عمل ته وائي چې پر مونږ لازم وي په داسی دلیل چې په هغه کی شبهه وي وجه د مناسبت د لغوی معنا او د شرعی. فخر الاسلام علی البزدوی د اسی بیان کړی ده چې د غه واجب عمل زمونږ څخه ساقط دی علمًا یعنی پر مونږ باندی او یقین نه دی لازم، او پر مونږ لازم ازروی عمل دی. او یا مضطرب دی په ما بین کښی د فرضو او سنتو. ولی چې عمل یه لکه د فرضو دی او علم یه لکه د سنتو دی" د امام اعظم څخه روایت دی چې فرق په مابین کی د فرضو او د واجبو لکه فرق په مابین کی

داسمان اود محکی دی. او بعض فقهاءؒ پر واجب د سنت اطلاق کوی. د هغه معنا داده چې ددی عمل اثبات په سنت نبویؐ سره سوی دئ. او هغه عمل ته په بل ځای کښې بیا واجب وائی. په معنا ددی چې دَ دَغه کار کول پر موږ لازم دی فلا تعارض بین الاطلاقین» کذا فی البحر»

**فَـائِـدَةٌ** امام طحطاویؒ وائی: چې ادلہ سمعیه یعنی د قرآن پاک آیتونه اواحادیث نبویه **څلور قسمه** دي. **اول** هغه دلیل سمعی دی چې ثبوت یې په شریعت کښې قطعی یعنی یقینی وي اوسره د هغه دلالت یې پر مقصود هم یقینی وي. کالنصوص المتواترة المحکمة» که د قرآن آیت وي. او که حدیث نبویؐ متواتر وي چې په دې قسم سره فرضیت او حرمت ثابتیږي او منکر یې کافر گڼل کیږي. لکه په قرآن مبارک کی» اَقِیْمُوا الصَّلٰوةَ، وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰی» وغیرهما. او په احادیثو مبارکه وو کښې: اَلبینةُ عَلَی المدعی وَالیمِیْنُ علٰی مَن اَنکَرَ وامثاله.

**دوهـم قِسم** قطعی الثبوت دی لکن دلالت یې پر مقصود ظنی وي لکه هغه آیتونه د قرآن چې په تاویل سره پر مدعی دلالت کوی. لکه په قرآن مبارک کی: وَالمطلّقٰتُ یَتَرَبَّصْنَ بِاَنفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ، چې حنیفیانؒ یې په حیضو ترجمه کوي او شافعیان یې په طهرو ترجمه کوی. چې تفصیل دد لائلو یې په لویو لویو کتابو د فقهی او اصولو مذکور دی.

**دریم قِسم** یې ظنی الثبوت دی چې دلالت یې یقینی وی. لکه هغه احادیث نبویه چې تواتر ته نه وي رسیدلی. لکن مفهوم او معنا یې یقینی وی چې په اصطلاح د محدثینو دې ته اخبار احاد وائي. او په دوهم قسم او دریم قسم سره وجوب او کراهة التحریمی ثابتیږی چې منکر یې مبتدع بلل کیږی.

**څلرم قِسم** ظنی الثبوت او ظنی الدلالة دی یعنی دَ قسمه څخه د خبر واحد دی لکن دَلالت پر مراد یې هم ظنی وی یعنی پر تاویل مبنی وی. او په دی قِسم





سره سنت والی او استحباب او کراهت تنزیهی ثابتیږی. چې منکر یې محروم الشفاعة النبویه دی په ورځ د قیامت.

**سَوَال:** په حدیث صحیح نبویؐ کښې راغلی دي چې. شَفَاعَتِیْ لِاَهْلِ الْکَبَائِرِ مِنْ اُمَّتِیْ: نو څرنګه تارك السنة یا مکروه تنزیهی د شفاعت نبویؐ څخه محروم دئ

**جـواب:** شفاعت په ورځ دَ قیامت پر دوه قسمه دی یو د پاره د بخښنی د گناه دی. او دوهم د پاره د پورته والی د درجې دَئ. حدیث مذکور محمول پر اول قسم دی. او د تارك السنة حرمان د شفاعت څخه محمول پر دوهم قِسم دئ. کذا فی شروح کتب الاحادیث النبویه.

قالَ المصنفُ فی المراقی: چې مشروعیت د واجباتو د پاره د اکمال د فرضی عملوسوی دئ او سُنت عملونه دَ پاره د تکمیل د واجبو عملو دي. او مشروعیت د مندوباتو او مستحباتو د پاره د اکمال د سنتو راغلی دئ. مثلًا نفس قِرائت فرض دی په لمانځه کی او خصوص د اَلحَمدُ لله او ضم د سُوَرة چې واجب دی د پاره د تکمیل دَ قرائت دی. حق کړیو دغو څخه قصدًا پریښ دي مکروه تحریمی دی. او کی سهوًا پریښ دی سجده سهوه به کوي او دغه رنگه نفس رکوع او سجده فرض دی. او طمانینیة چې واجب دی متمم د رکوع او سجدی دی علی الاصح. یا مثلًا نفس طمانینیة چې واجب دی په اندازه د دری واره تسبیح ویلو چې سنت مُتمم د طمانینیة دی.

او تشهد یعنی التحیات په اخیره نا سترکی واجب دَه. او درود پر علیه الصلوٰة والسلام چې سنت دی پوره کوونکی د تشهد ی دَی. او دا غه رنگه بِسْمِ اللهِ ویل چې سنت دی مُتمم دی دَ قرائت د فاتحی چې واجب دی. لکن دا توهم مه کوه چې هر عَمَل چې سُنت وی خواه مخواه به متمم د واجبو وی. او یا مثلًا دری واره تسبیح وَیل په رکوع او سجده کی سنت دي. او کتل و ظاهرته د پښو په رکوع کی او یا کتل و نرمی ته د پزی په سجده کی مُستحب دی او متمم د تسبیح گا نو دی. په دی معنا چې مصلی دی شا و خوا نه گوري. نو ددی تولو کار و په کولو سره لمونځ مثلًا نبه محفوظ کیږی

نوفرائض لکه یو قلعه ده چې په هغې قلعې قلعه دواجبا تو ، اگرځیدلی ده. او په قلعه دواجبا تو قلعه دسُنتو ، اتا وسویده . او په قلعه دسُنتو دیوال دمندوبا تو ، اگرځیدلی دی. نوچې شرې اخیری دیوال بنه وساتی نو په هغه سره داخلی دیوالونه بیخی بنه ساتل کیږي. او کی داخیری دیوال په ساتنه کی سُستی وکړه نوکرار کرار به داسُستی د نورو دیوالونو ستی ته مُفضی سي حتیٰ چې با الاخیره فرضی عمل دیوال به هم ځنډی پرنگ سي. خدای پاک دی مونږ ځنډی وساتی. آمین

## اَحکامرِدَوَاجِبُو:

منکریه کافرنه دی. او کی په قصد پرینږدی مستحق دعتاب دی. او پرکولو به ثواب د جنت پیدا کی. او کی په سهوه سره پریږدی سجده سهوه باندی لازمه ده. او کی په قصده پریږدی مستحق د عتاب دی.

لمونځ دی راوگرځوی. او کی لمونځ نه راوگرځاوه. فرضی لمونځ سره د نقصا نه اداسو قَالَ المصنفُ

## قِرَائَةُ الْفَاتِحَةِ

یعنی اول واجب ویل دی د الحمدُلله شریفی. لِقولِهٖ علیہ الصلوٰۃ والسّلام لَاصَلوٰةَ لِمن لَمْ یَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الکِتَابِ» ترجمه: لمونځ نسته هغه چا لره چې الحمدُلله شریفه نه ووائی: **سَوَال:** په دی حدیث شریف کی په نفی د لمانځه کړی دے نو باید ویل د فاتحی فرض سي. **جَوَابْ:** چونکه دا حدیث خبر واحد دی نو دی ناسخ د هغه ایت نه سي گرځیدای: فَاقْرَؤُا مَا تَیَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ دی یعنی چې اطلاق د هغه دی مقید کړي.

نو مطلق قرائت فرض دی په مقتضی د قرآن او خصوص د اَلحمدُلله واجب دی په مقتضی د حدیث نبوی **مَسْئَلَه** : که چیری اکثر ایتونه د اَلحمدُ لله ځنډی پاته سوه سهوًا سجده سهوه به کوی او په ترک دا قل سجده سهوه نسته، کمافی النهر. لکن مجتبیٰ والا وائی چې یو ایت ځنډی پاته سي هم به سجده کوی وَعلیہ الفتویٰ. "د"

**مَسْئَلَه**: که سرې فاتحه په قصد د دعا وَوَیله آیا دَواجب په ځای کی دریږی





په فتاوای صغری کښی وائی چې هو دریږی. ولی چې قرآن په قصد سره د سرې د قرا نیت څخه نه وزی وعلیه الفتوی، "د"، خلافًا للمحیط ، قَالَ المصنفُ

## وَضَمُّ سُوْرَةٍ اَوْ ثَلَاثَ اٰیَاتٍ

او دوهم واجب د لمانځه جوتول دی د الحَمْدُ لله سره دیوه سورته او یا دری ایته د قرآن شریف. که څه هم کښنی سورة وی. او که څه هم کښنی دری ایته وی: لِقولِه علیہ الصَّلوٰۃ وَالسَّلامُ: چې لمونځ نسته د هغه چا چې الحمدلله او یو سورت نه وَوَائی که په فرضی لمانځه کی وی او که په نفلی کی وی"

**پُوهَسَه** : چې باید دریٔ ایته به قدر د کښنی سورة وي. او د غه هم کافی دی چې یو اوږد ایت ووائی چې په انداز د درو کښنی ایتو وي. او وجوبُ الضمّ فقط مذهب داحنافو دی. او ائمه ثلاثه ته دا ضم د سورت سُنت بولي. سک".

**مَسْئَلَه** : ضم د سورت په اخیرو دوو رکعتو کښی د فرضی لمانځه په قصد سره مکروه دی او که نه. **جَوَابْ** : مختار دا ده چې نه دی مکروه " د ر"

**سَوَال**: هغه حدیث چې ذکر شو هغه خو یوائی په ضم د سورت دلالت کوی، او مدعی عامه ده که سورت وی او که دری ایت وی **جَوَابْ**: دری ایت په حکم کی د سورت دي. **تَنْبِیْه**: و یل د فاتحی او ضم د سورت هلته واجب دی چې په وخت کښی فراخی وي. او که دومره وخت وو چې یوائی سورة فاتحه او یا سورة په کښی ځایه دی. نو هر یو چې ځائیږی هغه دی وَوَائی. او که فرضًا وخت بیخی تنگ وو چې دیوه ایته بالا نه په کښی ځائیدَ له هغه یو ایت دی په ټولو رکعتو کی وَوَائی. وسقوطِ الواجب للعذر» قَالَ المُصنفُ

## فِیْ رَکْعَتَیْنِ غَیْرِ مُتَعَیِّنَتَیْنِ مِنَ الْفَرْضِ

په دوو رکعتو غیر معینو کی د فرضی لمانځه او که لمونځ دوه رکعته وو لکه سحار فرضی یا نور دوه رکعتی سُنت یا نفل بیا په دوارو رکعتو کی ضم واجب دی.

ترخیل ځای وځندول. قـال المُصنفُ

## وَضَمُّ الاَنفِ لِلجُبهَةِ فِی السُّجُودِ

اوواجب دی یوځای کول د پزی د تندی سره په سُجده

مصنفُ په مَراقی کښې وَایې چې مراد د پزی ځنه هغه کلك ځای د پزی دی، حتیٰ کی د پزی د سَر په هغه نرم ځای سجده وکړه واجب به نه کی پرځای **مسئله**: روانه ده یوازی پر پزه سجده کول چې په تندی کی عذر نه وي پر صحیح روایت، مرط در او ددی مسئلی دلیل هم مواظبة النبیؐ دی. قـال المُصنفُ.

## وَالاِتیَانُ بِالسَّجدَةِ الثَّانِیَةِ فِی کُلِّ رَکعَةٍ قَبلَ الاِنتِقَالِ لِغَیرِهَا

اوبل واجب د لمانځه یعنی که فرضی وی او که نفلی دادی چې کوی بردوهمه سجده په هر رکعت کی د مخه تر تللو او کولو د باقی افعالو د لمانځه. چې پر دی باندی هم آنحضرت صلی الله علیه وَسلم مواظبت کړیځ دی. **پوهـسه**: چې ددی مسئلی واضح تعبیر، اِتصالُ بَین السجدَتَین دیُ. او هغه عبارت چې مَراقی وَئیلی دیُ، اعنی. ترتیب بَین السجدَتَین صحیح دی. ولې چې د ترتیب معنا وروسته کول دی دیوه شی تر بل بیله فصله.

**توضیح ددی مسئلی دادی**. که یو سَری سهوًا یوه سجده چې وکړه بیله په نه وکړه ولاړ شو مثلًا نو هر وخت چې دوهمه سجده ور پیاد سوه و دې کړي. او په اخیر کښې دی سجده سهوه وکړي، که فرضًا د دغه سَری هغه پاته سجده ور وسته تر اخیری ناستی ور پیاد سوه او بیا پس له سَلامه گرځولو او د مخه ترخبرو کولو ور پیاد سوه نو دی دې سجده را وگرځوي چې فرض ده. لکن اتصال یا ترتیب بَین السجدتین چې واجب وو پاته سُو. نو سجده سهوه پر لازمه ده. نو به داسَری داسی کوی چې هغه اصلی سجده چې وکړه، بیا دې بیرته ناسته وکړي او التحیات دی هم ووائی. ولې دی چې و سجده اصلیه ته ور وگرځید هغه د مخه ناسته ده او التحیاتَ په لغوه سوه. نو دده په ذمه کښې اخیره ناسته چې فرض ده او التحیات چې واجب وه پاته ده. نو څه وخت چې دوهم اخیره ناسته وکړه





قـال المصنف

## وَفِی جَمیعِ رَکعَاتِ الوِترِ وَالنَّفلِ

او به تولو رکعتو کی دوترو او نفلو ضم دسورت واجب دی، اما الوتر، فـلانه سُنـة عند الصاحبین، وفی حکم السنة عند الامام الاعظمؒ،، واما النفل فـلان کل رکعتین منه صلوٰة علیٰ حدة،، **پوښتنه**: په څه دلیل قرائت په اخیرو دوو رکعتو کښې د فرضو واجب نه دی لکه د نفلو **جـواب**: په دلیل ددی سوال قول د علی رضی الله تعالیٰ دی. چې قرائت په اولو دوو رکعتو کښې قرائت دی په اخیرو دوو رکعتو کښې. وَعَن ابن مَسعود وعائشة رَضِی الله تعالیٰ عَنهُمَا چې اختیار لری لمونځ گذاره که په اخیرو دوو رکعتو کښې قرائت وائی او که تسبیح.

قـَالَ المُصنفُ

## وَتعیِینُ القِرَاءَةِ فِی الاُولَیَینِ

اوبل واجب د لمانځه دادی چې معینه کوی دی اول دوه رکعتونه یعنی په فرضی لمانځه کی دپاره د قرائت واجب دی. په دَلیل ددی چې آنحضرت صَلی الله علیه وَسلم همیشه توب کړی دی پر قرائت په دوو اولو رکعتو کی.

او بعض فقهاء وائي چې په اولو دوو رکعتو کی قرائت فرض دی چې په هغو کښې په دوو اولو رکعتو کی نه ووائی. په اخیر دوو رکعتو کی و وائی هغه قضائی دی.

او بعض کتابو ددی قول ملاتړ کړی دی،، قـالَ المصنفُ فی نور الایضاح.

## وَتَقدِیمُ الفَاتِحَةِ عَلَی السُّورَةِ

اوبل واجب د لمانځه د مخه وبل دی د الحمدُلله تر سورة للمواظبة علی ذالك من النبی عَلیه الصّلوٰة والسّلام. **تفـریع**: که یو سَری پوره سورة یا بعض سورة که څه هم یو حرف وی یا دری آیتونه یا بعض د هغو سهوًا تر الحمدلله د مخه و وایه او بیا الحمدلله ور پیاد سوه. نو الحمدلله دی و وائی او بیا دی سُورة یا دری آیت و وائی او سجده سهوه دی وکړی. وَلې الحمدلله چې واجب وَه

او التحیات یې هم وَ وَیله. بیا دې پر یوه طرف سلام وګرځوي او سجده سهوه دې وکړي او بیا دې کښیني او التحیات دِ دِ وَوائي بیا دې اخیري سلام د پاره دَ وتلو د لمانځه نه وګرځوي

**مسئله**: که د یو سړي چې قعدهٔ اخیره وروسته یا تر سلام هم وروسته هغه سجده اصلیه وکړه. لکن تر هغې سجدې وروسته ناسته یې نه وکړه بلکه چې د سجدې سر یې پورته کړې سلام یې وګرځاوه او سجده سهوه یې وکړه لمونځ یې باطل شو. ولې اخیري ناسته چې فرض وه ځنډې پاته شوه.

**مسئله**: که یو سړي بیله صورة مذکوره په لمانځه کې سهوه شو مثلاً د میانځ ناستې چې واجب ده سهوًا ځنډې پاته شوي وه لکن دې سړي چې دَ سجدې سهوې نه سر را پورته کړې. سلام یې وګرځاوه او قعود یې وَنه کړه لمونځ صحیح دې لکن مکروه دې. دَلیل د صحت یې دا دې. چې سجده سهوه هغه د مخه قعده چې ده وَ کړه فی پورته کوي بلکه التحیات پوَ ته کوي. نو اخیر فرضي ناسته خوده وکړه نو لمونځ صحیح شو. او د کراهت دلیل یې دا دې چې په اخیره ناسته کې خو التحیات ویل واجب وو. هغه دده سَه پاته سوه ولې هغه د مخه التحیات په سجده سهوه سره لغوه سوه» فافهم هذا المقام بالتفكر التام» قَالَ المُصنفُ

**وَالِاطْمِنَانُ فِى الْاَرْكَانِ** او اطمنان یعنې تعدیل ارکان واجب دې دَ اطمنان معنا دا ده چې لمونځ کوونکي دې ځپل اعضاء په رکوع او سجده کې چې دا واجب دې. او په ولاړه کې د رکوع نه او په مابین کښې د دوو سجدو او دا سُنت دې.

**پوښتنه**: چې ادنى د تعدیل په قدر دَیوې تسبیح دې، قهستاني، او د تعدیل وجوب مذهب د امام اعظمؒ او امام محمدؒ، د امام کرخيؒ د بیان نه او امام جرجانيؒ وائي چې د دوی دوو په نیز سُنت دې. لکن اول چې وجوب دی صحیح دې په نیزد محققینوؒ د مذهب حنفيؒ او د حضرت امام ابویوسفؒ په نیز تعدیل فرض دې کما فِي المَرَاقي. لکن کمال الدین ابن الهمامؒ په فتح القدیر کې وَائي چې مُراد د ابویوسفؒ د فرض نه فرض عملي مراد دې چې هغه ته واجب وَائي، فارتفع اختلاف الائمة الثلاثة رحمهم الله مِن البين»





دَ دلیل وَائي. چې توجیه د ابن الهمامؒ کرچه هم د مشهورو کتابو څخه مخالف ده لکن دین په زړه پورې او د قبول وړ ده. په دې سبب چې حضرات ائمة ثلاثةؒ پر دې اصل متفق دې چې زیادت پر کتاب الله په خبر واحد سره نه دې روا. نو په کتاب الله کې خو مطلق» اِرْكَعُوا او اسْجُدُوا » راغلی دی نو په دې ایت سره نفس رکنیت او فرض والی ثابتیږي که څه هم ادنی د دواړو وي.

نو نسخ د اطلاق د دې ایت یعنې په تعدیل مقید وَل په هغه خبر واحد سره چې د آنحضرت صَلی الله عَلیه وَسَلم په حضور یو سړي لمونځ وکړي. او تعدیل د سجدې او رکوع یې نه وکړ. علیه السلام ورته وَوَیل صَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ» حتی تر دریو واره پورې» روا نه دی البته قرآن مبارك چونکه قطعي الثبوت والدلالة دی په دې ځای کې نو په دې ځای کې. نو په هغه نفس فرضیت د رکوع او سجدې ثابتیږي. او حدیث مذکور چونکه خبر واحد دی او ظني الثبوت دی نو په هغه وجوب ثابتیږي او نفي چې په حدیث کې راغلی دی یعنې: فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ» محمول پر نفي د کمال دَی.

**سوال**: څه سبب دی چې حدیث مذکور پر سُنت والی د تعدیل نه حمل کوو لکه امام جرجانيؒ چې وَائي **جواب**: چونکه تعدیل دَ پاره دَ تکمیل د رکن دی چې رکوع او سجده نو د دې سببه واجب یې بولو کما مَرَّ بیان ذالكَ »

**پوښتنه**: تعدیل الارکان په تولو کتابو کښې په صیغه دَ جمعې راغلی دی او بیان یې یوازې په رکوع او سجده سره کوي. **جواب**: تخصیص د رکوع او سجدې د دې کبله دی چې دا دوه رکنه غالبًا په تلوار ادا کیږي. نو په اکثرو لمونځ کوونکو کې د تعدیل الارکان مراعات نه لیدَل کیږي. ورنه د قیامې او اخیري ناستي هم تعدیل واجب دی لکن چونکه په ولاړه کښې قرائت ویل کیږي او په ناسته کې التحیات ویل کیږي نو تعدیل خود بخود په پیدا کیږي. حتی که یو سړي په اخیرو دوو رکعتو کې چپه خوله ودریږي نو په ده واجبه ده د یوې تسبیح قدر خو دې ودریږي چې تعدیل د رکن دَ قیامې راسي» کما فی النهایة» او که چیرې د هغه سړي یو تسبیح قدر هم نه وه دریدلی

نواصل لمونځ یه صحیح دی. ولی نفس قیام خویه وکړو لکن دَ تعدیل واجب پَه ترک سره ګناه ګاردی "طم در ن" **فَائِدَه**: علامه محقق کمال الدین ابن الهمام پَه فتح القدیر کی او دده شاګرد ابن امیر الحاج وَائی چې مقتضی دوجوب د تعدا الرکوع والسجود چې هغه حدیث سابق وو ددی هم مقتضی دی چې وَلاړه د رکوع څخه اوناسته په مابین کی دسجدتین دی هم واجب وي. ولی هغه شخص مذکور چې په حضور نبوی کی چې لمونځ وکړی دا دوه خصلته هم نه وَه پرکښی، او بل مَوَاظبت نبوی پر دغو څلورو خصلتو دلیل دوجوب د هغودی، "مر" دَرولیش وَائی چې دابن الهمام تحقیق زما هم خوښ دَی ومزید التفصیل فی شرح الطحطاوی". قَـالَ المصنف

## وَالْقُعُوْدُ الْاَوَّلُ

اود غه رنګه واجب دَه اوله ناسته. **پُوهَسَه**: چې مراد داول ناستی څخه غیرد اخیری ناستی دی. او معنای مُتبادره مراد نه ده یعنی تر ټوله دمخه ناسته. ولی چې کیدای سی چې سړی دی په لمانځه کی دری ناستی وکړی لکه دیو چا څخه چې دری رکعاته امام تیرکړی وي. نو دا سړی خویوه ناسته پرد امام سره وکړو بیا چې امام سلام وګرځوی دی به وَلاړیږی اویو رکعت به تش کوی بیا به کښیني. اوبیا به دوه رکعته د لـ کوی بیا به کښیني اوبیا به ولاړیږی یو رکعت به تش کوی وَهُوَالاولیٰ"، او بیا به اخیره ناسته کوی. نوکه مراد اول په معنای مُتبادره وای نو دادوهم ناسته نو څرنګی ده فرض ده که واجب"، اوچې مراد غیر الاخیرسی نو اولی دوی ناستی دَواړی واجب دي یوه خوپه تبع دامام، او امام طحطاوی وائی چې هغه په متابعت دامام فرض دَه، اودوهمه دده د لمانځه د حکمًا اوله ناسته دَه. او دریمه ناسته فرض ده ولی چې دده اخیره ناسته دَه"، **پُوهَسَه**: چې اوله ناسته واجب دَه پَه قدر دا لتحیات پـه ویلو. اوددی ناستی په وجوب کی دفرضو، واجبو، نفلو فرق نسته. په نیز دامام اعظمؒ او امام ابویوسفؒ. اود غه ظاهر الروایة او اصح دی، ط، او امام محمّدؒ او امام شافعیؒ او امام زفرؒ وائی چې اوله ناسته په نفلی لمانځه کی فرض ده. وَهوالقیاس" قه سک ط، او امام کرخیؒ او امام طحاویؒ وائی چې اوله ناسته سُنت دَه.





امام طحطاویؒ وائی چې سنت بوئل یا په دی معنا دی چې اثبات دهغی په سنت نبوی سره دی اویا ددی سَبَبه چې سُنت مؤکد په معنیٰ کی دواجب دی قال وهَذا یقتضی رفع الخلاف ای فی المعنیٰ وان کان الخلاف اللفظی موجودًا

**سَوال**: مصنفؒ وائی چې اوله ناسته واجب دَه او سره ددی که داسی پیښه سی چې امام مسافر وی او په لمانځه کښی یـه اودَس مَات سِی. اوبیا مقیم سَړی خلیفه وګرځوی پر دغه مقیم اوله ناسته فرض ده. ولی چې دامام اخیره ناسته دَه **جَوابُ**: دا فرضیت خو په عذر دا استخلاف پیښ سو وَرنه اصلاً خو پر مقیم دغه ناسته واجب وه طـ ص. قَـالَ المصنفؒ

## وَقِرَائَةُ التَّشَهُّدِ فِيْهِ فِي الصَّحِيْحِ

اودغه رنګه واجب دی ویل د التحیات په اوله ناسته کی په صحیح روایت کی. **پـوهَسَه**: چې لفظ دفی الصحیح تعلق د قعود اول او تشهد په اوله ناسته کی ددواړو سره لري. او مقصُود دمصنفؒ رد دی پر هغو فقهاوو چې قعود اول او تشهد په هغه کښی دواړه سُنت بُولي. اویا یَه وَازی تشهد سنت بُولی. کَمَاهُوَالمشهور عَلَی الالسنة" ددواړو دواجب وَالي دلیل مَوَاظبت دَی دآنحضرت صَلی اللهُ علیه وَسَلم پر دواړو. قَـالَ المُصنفؒ.

## وَقِرَائَتُهُ اي التشهد فِي الْجُلُوْسِ الْاَخِيْرِ

او واجب دی وَیل دَ التحیات په اخیره ناسته کښی. او دَلیل یـه هغه مواظبت نبویؐ دی. **مَسْئَلَه**: که څوک په اخیره ناسته کښی تشهد نه وَوائی سهوًا یا ټوله یا بعض سجده سهوَه پر لازم دَه" در، ط، قَـالَ المُصنفؒ.

## وَالْقِيَامُ اِلَى الثَّالِثَةِ مِنْ غَيْرِ تَرَاخٍ بَعْدَ التَّشَهُّدِ

او واجب ده وَلاړه ودریم رکعت ته بیله ځنډه پس له وَیلو څخه دالتحیات. **تـفریع**: که یو سَړی پس له ویلو دَ تشهد دی په قدر داداء دیو رکن وځنډیدی سهوًا سجده پر لازمه دَه ولی چې واجب دوَلاړی بالفور ودریم رکعت ته وځنډیدی فوت سُو" مر،

اوکی قصدا د دریم رکعت وخندا او لمونځ یه مکروه تحریمی دی۔ اوپه یوشاذ روایت کی وائی چی که یوحرف ترتشهد بالا ووائی سجده سهوه پرلا زمه نه **مسئله**: که سړی سهوًا پـه اوله ناسته کی پس له تشهد اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّد ووایه یا بالاترهغه سجده سهوه پرلازمه ده۔ اوکی فقط اَللّٰهُمَّ صَلِّ وویل اوبیا ولاړشو سجده سهوه با ندې نشته: قَالَ المُصَنِّفُ۔

## وَلَفْظُ السَّلَامِ دُوْنَ عَلَيْكُمْ

اوواجب دی لفظ د اَلسَّلَامُ اونه دی واجب عَلَيْكُمْ ولی چی مقصود چی خروج دلمانځه دی پـه لفظ د اَلسَّلَامُ حاصل شو. اوسلام فرض نه دی ولی چی آنحضرت صلی الله علیه وَسلم وعبد الله ابن مسعود رض ته وویل اِذَا قُلْتَ ای التشهد الاخیر او فَعلتَ هٰذا یعنی په قدر د تشهدی کښیستی۔ فَقَدْ تَمَّتْ صَلٰوتُكَ. نو لمونځ دی پوره شو۔ اوعلیم السلام لفظ د السلام عَلیکم نه کی ذکر نو معلومه شوه چی فـرض نه دی. لکن یَرِدُ عَلَی المصنفؒ چی مصنف پـه ډیرو ځایو کښی دوجوب دلیل په مَرَاقی کی مواظبت نبویؐ راوړی دی. نو د عَلَیْکُم پر لفظ خوهم آنحضرت صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّم مواظبت کړې دی نو ولی نه دی واجب **پـوهـسـه**: چی مصنفؒ پـه مَرَاقی کی دواړه خواووته سلام گرځول واجب بُولی. اوامام طحطاویؒ وائی وَهُوَالاصَح. اوپـه فتح القدیر کښی وائی چی اول سَلام واجب دی اودوهم سُنت دی،،

**مسئله**: وتـل دَلمانځه نه په نیز د عاموفقها ووُ پـه سَلام اول سره کیږی. او لبعض فقهاموائی چی دَواړه سلامه چی وگرځوی دَ لمانځه څخه وزی **تفریع**: که یو سړی پس له وَیلو د امام اَلسَّلَام دَمخه ترعَلیکُم وَیلو پـه دغه امام پسی اقتداء وکړو پـه نیزد عامو فقها ووُ اقتداء یـه نه ده صحیح۔ اوبناء پرقول د بعض فقهاوو کی پس له سلام اوله اودمخه تردوهم سلام یـه اقتداء پسی وکړه اقتداء یـه صحیح ده،، ط،س،

**پـوهـسـه**: چی سلام گرځول په هغه لمانځه کی چی رکوع اوسجده پـه کښی وی څو واجب دی پـه اتفاق. اوسجدهٔ شکر یـا سجدهٔ تـلاوت لره سَلام نشته بالاتفاق،





او امام طحطاویؒ وائی چی دجنازی لمانځه لره هم سلام نشته. اوپه زاهدی کی وائی چه دَجنازی لمانځه لره سَلام سُنت دیُ، درویش وائی چی امکان لری چی مراد د طحطاویؒ دي داوی چی دجنازی پـه لمانځه کی سَلام واجب نه دیُ، فلامنافاةَ بین قوله وقول الزاهدی فتدبر

**فـائـدَه**: پـه مجمع الانهر کی وَائی کـه چیری سړی د اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ پـه ځای کی بل لفظ ووائی کـه څـه هم هغه لفظ دَسَلام پـه معنٰی وی مثلًا الـبَرَكَةُ عَلَيْكُمْ، پـه ځای کښی د اَلسَّلَامُ عَلیکُمْ نه درېږی. اوبعض عُلماء وَائی کـه هغه لفظ عربی وولکه مـذکوره دوه لفظه پـه ځای کی د السَّـلَامُ عَلیکُم درېږی اوکه پـه بـله ژبـه وو نـه درېږی،، لکن بحرالرائق د شارح څخه نقل کړې چی اجماع پر دې ده چی لفظ عَرَبی پوری نه دی خاص،

**پـوهـسـه**: چی مصنفؒ پـه مَرَاقی کی وَائی د سَلام پـه موضوع کی وَائی: فی الیمین وَالیسار ددی څخه داسی معلومیږی چی دمخ اړول یمینًا ویسارًا هم واجب دی. او دلیل یـه مواظبت نبویؐ دی، قَالَ المصنف فی نورالایضاح.

## وَقُنُوْتُ الْوِتْرِ

اوواجب دی دعاءِ قنوت ویل پـه وترو کښی یعنی پـه اخیر رکعت کی **پـوهـسـه**: چی قنوت پـه لغت کی نفس دُعا ته وائی نواضافت پـه دعاء قنوت کی اضافتِ بیانیـه، د مصنفؒ مراد دادی چی قنوت واجب دی پـه وترو کښی خاص نه پـه نورو لمونځوکی. **پوهسه** چی هغه خاصه دعاء اَللّٰهُمَّ اِنَّا، آه واجب نه ده بلکه سُنت ده. نوکه اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آه یا بله دعا وکړی روا ده اجماعًا، ط،ن، **پوهسه** چی وجوب د قنوط مـذهب دی دامام اعظمؒ. او یاران وائی لکه وتر چی سُنت دی قنوط یـې هم سُنت دی،، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَتَكْبِيْرَاتُ الْعِيْدَيْنِ

اودغه رنگ واجب دی تکبیرونه د دوو اخترو چی هغه شپږ دی دری پـه یوه رکعت کی او دری پـه بل رکعت کی. اوپـه اول رکعت کی قبـل القراءة اوپـه دوهم کی بعد القراءة دا صرف مندوب دی واجب نه دیُ **مسئله**: مصنفؒ پـه مَرَاقی کی وائی چی هر تکبیر جلا واجب دی کـه یو تکبیر پـه کښی پرېږدی سجده سهوه پرلازمه ده. اما امام طحطاویؒ چی وائی اولی داده

چې سجده سهوه دې په جمعه او اخترونو کښې نه کوي. درویش وائي چې وجه یې شاید داوي چې دا دې لمونځونه د خلکو لویه اجتماع په کښې، اځې نو په سجده سهوه کولو کې په خلکو کې اضطراب او افراط تفریط، اوهای هوی پیدا کیږي،، قال المصنف

## وَتَعْيِيْنُ التَّكْبِيْرِ لِافْتِتَاحِ كُلِّ صَلٰوةٍ لَا الْعِيْدَيْنِ خَاصَّةً

او واجب دي معینه کول د اَللّٰهُ اَکْبَر د وَیلو دپاره د شروع د هر لمانځه نه یوازې د اختر د لمونځونو دپاره، د لیل یې مواظبت نبوي دی. په ذخیره کښې په نقل د مراقي دا یې وائي چې مکروه ده یعني تحریمًا شروع په غیر د اَللّٰهُ اَکْبَر په اصح روایت کې. او امام سرخسیؒ وائي چې مکروه نه ده په اصح روایت کې. او بعض فقهاءؒ وائي چې شروع په اَللّٰهُ اَکْبَر سره چې واجب ده خاصةً د اخترو په لمونځو کې ده،، او په نورو لمونځو کې افتتاح په اَللّٰهُ اَکْبَر سره مندوبه ده او نه په اَللّٰهُ اَعْظَمُ سره مثلاً هم افتتاح روا ده. قال المصنفؒ

## وَتَكْبِيْرَةُ الرُّكُوْعِ فِيْ ثَانِيَةِ الْعِيْدَيْنِ

او واجب دي تکبیر د رکوع په دوهم رکعت کې د اخترو د لمانځه. دلیل د دې وجوب دا دی چې تکبیر د رکوع په دوهم رکعت کې متصل په زوائدو سره دی نو هغه خو واجب وو نو د رکوع تکبیر هم تبعًا واجب دی بخلاف الرکعة الاولیٰ ولې چې زوائد تکبیرونه د هغه خو په سر کښې د رکعت دي، درویش وائي چې د لمانځه دا حکم دئ چې په مندوب طریقه د اختر لمونځ ادا کوي. او که خلاف المندوب ده په دواړو رکعتونو کې تکبیرات زوائد په اول کې د رکعت وَوائي نو د دوهم رکعت د رکوع تکبیر واجب نه دی لِعَدَمِ الاتصالِ بالزوائدِ حتّٰی یتبعُ لها» او که په دواړو رکعتونو کې تکبیرات زوائد پس له قرائت وواي نو د اول رکعت د رکوع تکبیر هم واجب دی تبعًا للزوائد. قال المصنفؒ

## وَجَهْرُ الْاِمَامِ بِقِرَاءَةِ الْفَجْرِ

ای فی الرکعتین او واجب دي په زوره وَیل د قرائت په دواړو رکعتونو کښې د سحار پوه سره، چې واجب په جهر کې ادنیٰ مرتبه ده یعني چې بل سړي یې اوري که څه هم یو





سړی وي. ولې چې یو سړي هم نه اوري هغه نه مخافته وائي. او کې دوه کسان واوري هغه سري وي. ولې چې یو سړي هم نه اوري هغه نه مخافته وائي، امام طحطاویؒ وائي چې فقهاءؒ وائي چې امام دي پرځان ډیر اعلیٰ د جهر ده کذا فی الحموي. امام طحطاويؒ وائي چې امام دي پرځان ډیر تکلیف نه کوي په جهر کې د پاره د دې چې په ټوله جماعت والو یې واوري. ولې چې او رول په بعض قوم کافي دئ. نو جهر دي په حسب د طاقت خپل کوي،، بحر وَنهر، لکن که څه هم د ټوله قوم اورول واجب نه دي. لکن مستحب دا ده چې جهر دي په اندازه د جماعت وي، ط

**مسئله**: که امام د جماعت تر حاجت بالا یې جهر وکړې گناه گار دئ. قهستاني عن کشف الاصول، امام طحطاويؒ وائي چې دا اولی تر قول د زاهدیؒ چې د ابي جعفر څخه نقل کوي چې هر څو چې زیات وَالي کوي هغه افضل کار دئ. لکن چې ځان تر تکلیف نه ورکوي او بل څوک نه آزاروي که څه هم تر حاجت د مقتدیانو بالا جهر کوي.

**تَبْصِرَة**: نن صبا چې لاوډ سپیکران پیدا سوه. نو بعض اماماَن د جمعې لمونځ ټول په دغه آله کښې کوي خپل قاري والی وَخلکوته ښیي. او تقریبًا ښځوس کوره یې اوري دا بالاتفاق مکروه دئ. او د روژې په میاشت کې چې بعض مساجد و کښې د ختم القرآن تراویح کیږي هغه خو ټوله لمونځ او تراویح په دغه آله کې کوي. هغه بیا د خلکوته ښیي چې مونږ ختم القرآن تراویح کوو. نن دي کورونه، ښځې، اوناروغان، څنډې په عذاب وي. بلکه که بل مسجد ورنږدې وي او په هغه مسجد کې د اَلَمْ تَرَ کَیْفَ آه تراویح کیږي د هغه آلې څخه یعني د آواز څخه د اسجد وَالا خپل قرائت نه سي وَیلائ او نه اوریدلای سي. دا بیا بیخي لوی جرم دی او دغه اماَمان قیاس د حرمینو شریفینو په لمونځو او تراویحو کوي. دا قیاس د دوي غلط دی. ولې په حرمینو کې خو په زرو بلکه په لکو خلک په جماعت کې ولاړوي او اوریدل د قرآن کریم و هغوته رقّتُ القلب او خشوع او خضوع فائده کوي نو بیله دغې آلې امام په ټولو قرائت نه سي اوریدلای نو دا خو جهر په اندازه د جماعت دی نو مستحب دی کما مرّ، قال المصنف

## وَاُوْلَيَيِ الْعِشَائَيْنِ

او واجب دئ جهر په دوو اولو رکعتونو کښې د ماښام او ماخستن د لمانځه،

**پوهسه**: چې لفظ د اُولَی، تثنیه د اُولیٰ ده. اَوَله یې پر زَوَر ووائې دوهمه دوهم یې پر زیر او نون په اضافت سره حذف سُو. چونکه دغه اول دوه رکعته شفع اول ده نوځکه اول او دوهم رکعت ته اولیین وویل. او په لفظ کې د عِشَائین غلبه د ماخستن ولماځه ته وَرکړه. ولې چې قانون صرفي تغلیب ورکول دی واکثرته یعنی پر اعتبار د رکعتو، ط، در، او فقیر وائې چې ممکنه ده چې په مراعات د حدیث مبارک د عشائین ویلی دئ. **قَالَ المُصنفؒ وَلَوقَضَاءً** یعنی که څه هم دا دوه لمانځه قضاء سوي وي او په جماعت سري قضاء اوړي. ولې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم داغسی کړي دی» مر» **قَالَ المُصنفؒ**:

## وَالْجُمُعَةِ وَالْعِيْدَيْنِ وَالتَّرَاوِيْحِ وَالْوِتْرِ فِيْ رَمَضَانَ

او دغه رنګه واجب دی جهر په قراءت سره دجمعې په لمانځه کې او د دوو اخترو په لمانځه کې او په تراویحو کښې او په وترو کې لکن د روژې په میاشت کې.

**مسئله**: کې جهر په قرائت سره دجمعې پر لمانځه کې یا د اخترو په لمانځه کې سهوًا پرېښو سجده سهوه دې نه کوي. امام طحطاويؒ وائې» دفعًا للفتنة. تفصیل وَړاندی تیر سُو، او بعض فقهاءؒ وائې چې جهر او اسرار په لمونځو کې سُنت دی نوځکه یې په ترک سره سجده سهو نه لازمیږي ط، عن زیلعي» او د قهستانيؒ هغه خبره چې د قاعدیٰ څخه یې نقل کړې دی چې امام په ماسِوا کې د فرضي لمونځو مختاره دی که په جهر کوي او که نه که څه هم وتر یا د اخترو لمونځ وي چې دواړه واجب هم دي او جهر په افضل دی بناءً پر قول د دغو بعض فقها وودهٗ. او په هدایه کې تصریح کړېده چې امام مخیر دی په نوافلو کښې د شپې لکه د تهجد لمونځ اعتبارًا بالفرض فی حق المنفرد، لکن قول د مصنفؒ په وجوب سره د جهر په اخترو او تراویحو او په وترو کې اظهر دی. او مصنف وتر په روژې پورې وَتړل. ولې چې وتر په غیر کې د روژې د میاشتې په جماعت سره کول بدعت مکروه دئ. **قَالَهُ الحَلَبِيُّ**.





**قَالَ المُصنفؒ وَالْاِسْرَارُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَفِيْمَا بَعْدَ اُوْلَيَيِ** ـــ د ماپښین د لمانځه او د ماز دیګر د لمانځه او په اخیرو دوو رکعتو کې د ـــ

**الْعِشَائَيْنِ وَنَفْلِ النَّهَارِ** دوو رکعتو کې د ماخستن او په اخیر رکعت کې د ماښام او دغه رنګه اسرار واجب دی په نفلو کښې د ورځې».

**مسئله**: فقهاءؒ وائې چې په سري لمانځه کښې داپر وانه لري چې بعض کلې په جهر سره څخه وویل سي، ولې چې په حدیث کښې د بخاري او مسلم ابوقتادهؓ د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لمانځه داسي حکایت کړی دی چې دهٔ مبارک په اخیرو دوو رکعتو کې فاتحة الکتاب وَیله. او په موږ پسې او دېدی یو روایت ګاهې. او په فتح القدیر کې وائې چې لږ جهر په سرسي لمانځه یا لږ سر په جهري لمانځه کې امکان ده ځان ساتنې د مصلی نسته خصوصًا د ساه کښو په وخت» **قَالَ المُصنفؒ**

**وَالْمُنْفَرِدُ مُخَيَّرٌ فِيْمَا يُجْهَرُ كَمُتَنَفِّلٍ بِاللَّيْلِ** یعنی منفرد په فرضي لمانځه کې اختیار لري په هغو لمونځو کې چې امام په هغه کې جهر کوي. لکه نفل کوونکی د شپې یعنی چې یوازې کوي. فَلَا يَرِدُ بِالتَّرَاوِيحِ لِاَنَّهُ مَرَّ اَنَّ الْجَهْرَ فِيْهِ وَاجِبٌ لِاَنَّهُ يُؤَدَّى بِالْجَمَاعَةِ» حاصِل دا چې منفرد په فرضي جهري لمانځه کې اختیار لري که په جهر سره کوي. وهوالافضل تا چه اداء د لمانځه پر هیئت د جماعت سي. نوځکه دی اذان او اقامت به کوي کما مر تفصیله، او کې خوښه وي په ټیټه خوله دی کوي یعنی قرائت دی کرار وائې. ولې چې په حقیقت کې ظاهرًا په ده پسې څوک اقتداء نه لري، تا چې دی پر هغه واوري.

**مسئله**: که خفیه لمونځ وو لکه ماپښین ماز دیګر هغه به تنها لمونځ کوونکی حتمًا به کرار قرائت سره کوي. ولې چې پر امام باندی لا په دغو لمونځو کې مخافت لازم دهٔ او تنها لمونځ کوونکی خو تر امام بالا نه دی.

دروېش وَائي. چې امام طحطاويؒ اونورو فقها ووهم داسې وئيلي دي چې په ابتداء کې داسلام ټوله لمونځونه په جهر سره کوله. اومشرکانو دمکې به آزار ورساوه. اوقرآن شريف او، وَمَن اَنزَلَهٗ ته بې بنکنځل کوله، اَعَاذَنَا اللهُ منه» اوخپلو ځوانانو اواتباعو ته بې وېل چې څه وخت چې دې يعنې نبي عليه السّلام په لمانځه کې قرآن وائي تاسې نعرې پرېږدئ اوغزلې ورسره وايئاست. اوپه لغوه چټي خبرو سره مقابله کوئ حتى چې دیٌ ساکتېږي فَاَنزَلَ اللهُ، قوله وَلَا تَجۡهَرۡ بِصَلٰوتِكَ»مراد د صلوٰة څخه قرائت يعنې ته په زوره مه وايه قرآن په ټولو لمونځونوکې. وَلَا تُخَافِتۡ بِهَا، يعنې مه ټوله لمونځونه په کرار کرار قرائت کوه. وَ ابۡتَغِ بَيۡنَ ذٰلِكَ سَبِيۡلًا، اوته په مابين دجهر اومخافت کې بله لار غوره کړه يعنې دورځې لمونځونه په کرار کرار قرائت کوه اود شپې لمونځونه په جهر سره کوه. پس له هغه عليه السّلام دماپښين لمونځ اودمازديگر لمونځ بې په کرار قرائت کاوه ولې چې کفار به په دغو دوو لمونځوکې وه آزار ته چمتو وه. اود جمعې اواخترو لمونځ خوپه مدينه منوره کښې شروع شو. نوسوال نه واردېږي چې داخو هم دورځې لمونځونه دي.

**پوښتنه** : چې نفل کوونکي دشپې کوم هم په جهر اومخافت کښې مختار دیٌ لکن په ادنیٰ دجهر د اکتفاء کوي اوکه دالته بيده سړي وو هغه ته به ضرر نه رسوي. يعنې دخوب بې نه بائسي. اوکه دجهري لمونځ کولو دسببه بې ريا ببېرېدئ. نوبيا دِ کرار قرائت وائي. په حديث مبارك کې راغلي دي چې رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د تهجد لمونځ په جهر سره کاوه. دپاره د الفت دهغه وېښ سړي چې دالته به وو مګر بيده سړي نه وېښاوهٔ

**مسئله** : که په هغه ځای کښې چې سړي د تهجد لمونځ کاوه يومريض وُ وچې هغه ده جهر څخه دقرائت اناريږي دئ. اوياچا دالته مطالعه دکتاب کوله يا تلاوت دقرآن کريم بې کاوي نومصلي ته مخافت افضل کاردی. تاچه ناجوړي انزار نه يي. اويا د مطالعه کوونکو مطالعې ته تاوان ونه رسيږي اوياپر تلاوت کوونکي تلاوت گډوډ نه سي. قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَلَوۡتَرَكَ السُّوۡرَةَ** که په سهو سره وي اوکه په قصد سره کذا في النهر،





**فِيۡ اَوۡلَيَيِ الۡعِشَاءِ قَرَأَهَا فِي الۡاُخۡرَيَيۡنِ** اودغه رنگه په دوو اولو رکعتو کښې د ماښام. ودې وائي دغه سورة وجوبا على الاصح. په دوو اخيرو رکعتوکې يعنې دماخستن په لمانځه کې. اوپه يوه رکعت کې دماښام د لمانځه. اودبل دپاره ځای نسته» قَالَ الۡمُصَنِّفُ

**مَعَ الۡفَاتِحَةِ جَهۡرًا** وائي به داسورة سره دسورۀ فاتحې په جهر سره. کې څه هم فاتحه په اولو دوو رکعتو کښې يوائحې وئيلي وی، فاتحه بر ددې سببه اگر ځوی چې دسورة سره جوته يي. نوځکه دی اول فاتحه ووائي او بيا دی سورة ووائي چې ترتيب پرځای يي. داخومذهب دمصنف وُو، اوبعض فقهاءؒ وائي چې سورة دې دغه ووائي اونور علماء بيا وائي چې فاتحه دی گرسره نه وائي، قَالَ الۡمُصَنِّفُ

**وَلَوۡتَرَكَ الۡفَاتِحَةَ لَايُكَرِّرُهَا فِي الۡاُخۡرَيَيۡنِ** که چا پرېښوده سورة په اولو دوو رکعتوکې دماخستن دلمانځه. دغه سورة به وائي په اخيرو دوو رکعتوکی سره دالحمدلله په جهر سره. اوکې فاتحه پرېښوله په اولو دوو رکعتوکی نه دی مکرره وي په اخيرو دوو رکعتوکې **پوښتنه**: که سړي په دوو اولو رکعتوکی دماخستن هيڅ شی نه الحمدُ لِلّٰه اونه سورة. ووايه نو په اتفاق سره به اخيرو رکعتوکی هم الحمدُ لله وائي او هم سورة اوپه جهر سره اوسجده سهوه به هم کوي. قَالَهٗ فِي الۡخَانِيَةِ، اوکې يوازې سورة پرېښو نو هغه په اخيرو رکعتوکی راوگرځوي. لکه مصنفؒ چې په متن کې وويل. اوداهم په تبيين اوشروحو کښې دهغه ايه ذکرسوی دي. اوپه مبسوط کې وائي چې سورة راگرځول مستحب دی» فتح القدير اوبرهان هم پرداغه قول اعتماد کړی دیٌ. اوامام ابويوسفؒ وائي چې دسورة قضاء نسته گرسره. ولي واجب چې دخپل ځای څخه فوت سي قضا يې نسته بې دليله اودليل دلته نسته.

اوپه صورت کې دواجب والی دِ اگر ځولو دسورة او الحمد لله لکه مصنفؒ چې په وجوب سره ددوارو تصريح کړيده. په مراقي کې وائي. آيا جهر به پر دوارو سره کوي. مصنفؒ بيا

په مراقي کي دا اصح بولي او د صاحب هدایه هم دغه رایه ده. په دلیل د دې چي فاتحه په
اخیرو دوو رکعتو نفل ده او په پټه خوله ویل کیږي. نو چي په جهر یې ووائي تغییر د
صفت د نفلو راځي. او جهر په صورت سره واجب دی نو کي کرار ووائي تغییر د واجبو
لازمیږي دا معلومه خبره ده چي تغییر د نفلو آسان دی تر تغییر د واجبو». ط.
او ابن سماعهؒ د امام ابو حنیفهؒ او امام ابو یوسفؒ څخه داسي روایت کړی دی چي
بوازي د سورة وي په جهر سره ووائي. او دا روایت مختار د فخر الاسلام دی وَهُوَ
الصَّوابُ. او شیخ الاسلامؒ دغه ته ظاهر وائي. او هم په دغه روایت سره خانیه والایقین
کړي دي. او تمرتاشي یې هم صحیح بولي. وبه الفتوی، در.
**مَسْئَلَه**: که د سرې الحمدُ لِلّٰه هیره سوله او پس د سورة د ویلو څخه تر رکوع وړ بیاد
سوه. الحمدُ لله دي ووائي او سورة دي بیرته را وګرځوي» فِي ظاهِرِ المذهب» در
**مَسْئَلَه**: کي سورة هیر سو او په رکوع کښي وبیاد سو نو ولاړ دي سي سورة دي ووائي
او بیا دي رکوع را وګرځوي. **پوښتنه**: الحمدُ لله چي په اولو دوو رکعتو کي
نه وویل سي سهوًا نو ولي په اخیرو کښي قضا نسته لکه د سورت چي قضاء راوړي.
**جَوَاب**: سبب دا دی چي قرائت د الحمد لله په اخیرو دوو رکعتو کي خو مشروع دی
لکن نفلًا نو په قرائت دغې یو وار دا هغه نفلي الحمدُ لله سوله په سبب د قوت چي
بخپل ځای کي ده. نو کي بیا مکرره کړي. د پاره د قضاء خَالَفَ المَشْرُوع. بخلاف السورة چي
اخیر دوه رکعتونه محل د سورة نه دي. نو چي دي سورة ووائي هغه د اولو رکعتو د سورة
قضاء ده، لکن سجده سهوه به کوي. م، ط، در،

## خاتمةُ فَصلِ الواجبات

**پوښتنه**: چي واجب ده پر مقتدي متابعت د امام په
ارکانو فعلیه وو کښي. نو که مقتدي سر د رکوع یا د
سجدې څخه د مخه تر امام راپورته کړي بیرته دي رکوع یا سجدې ته ولاړ سي. تا چي مخالفت
یې په موافقت بدل سي. او دې ته تکرار د رکوع یا د سجدې نه وائي قاله الحلبيُ في اخر کتابه
او که چیري امام د دریم رکعت ته ولاړ سو او مقتدي التحیات نه وه پوره کړي. مقتدي





دي التحیات پوره کړي. ولي چي التحیات واجب ده. او کي نه کړه پوره بلکه په امام پسي ولاړ
سو هم روا ده. **مَسْئَلَه**: که امام په اخیره ناسته کي سلام وګرځاوه او مقتدي لمونځ
نه وو پوره کړی. نو که د امام متابعت کوي سلام دي ور سره وګرځوي. او که لمونځ پوره کوي
یعني التحیات یې نه وه وئیلي
پوره دي کړي.
**مَسْئَلَه**: که امام د رکوع یا سجدې څخه سر راپورته کړي او مقتدي تسبیح نه وي پوره
کړي درې واره د امام متابعت به کوي. **مَسْئَلَه**: که امام سلام وګرځاوه او مقتدي
خو التحیات وئیلي وه لکن درود یې نه وو وئیلي د امام متابعت به کوي یعني درود دې
پرېږدي. لکن د فقیر مختار ده دا چي کم از کم اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَعَلٰی اٰلِ مُحَمَّد
دي ووائي بیا دي په مُلا پسي سلام وګرځوي. قَالَ الاِمَامُ الطحطاويُّ. چي متابعت د
امام په فرائضو او واجبا تو کي بیله تاخیره واجب دی. او که د متابعت بلا تاخیره سره بل
واجب ټوی نو هغه بل خودي وکړي او بیا دي متابعت د امام وکړي. ولي په کولو سره د بل واجب
خو متابعت د امام یک لخته نه پاتیږي صرف ځنډیږي. او که متابعت بلا تاخیره وکړي نو هغه
بل واجب خو بالکلیه پاتیږي.
نو بناءً عَلٰی هٰذا فقیر د وړاندې وَوَیل لکن آه. ولي بعض فقهاءؒ نفس درود په اخیره ناسته
کښي واجب بولي. او کي سُنت کاره د متابعت بلا تاخیره معارض سو. سنت دي پرېږدي
واجب د متابعت دي پر ځای کړي لکه چي مقتدي تسبیح د رکوع او سجدې نه وي وئیلي.
چي مُلا سر راپورته کړی» لِاَن ترکَ السنة اخف من تاخیر الواجبِ.
**مَسْئَلَه**: که په وترو کښي د روژې د میاشتي که مقتدي یو څه دعاءِ قنوت وئیلي وُو
لکن پوره کړي یې نه وو، چي امام رکوع ته ولاړ مقتدي به متابعت کوي. ولي چي دعاءِ
قنوت لره معینه اندازه نسته. او که فرضًا مقتدي لا دعاءِ قنوت هم نه وو وئیلي، امام
رکوع ته ولاړ سي. نو که د مقتدي دا خیال وو چي که زه لا دعا کومه. رکوع را څخه تیریږي
نو دعاءِ قنوت دي پرېږدي رکوع دي د امام سره وکړي» لان الواجب يُترك لفوت الفرض
او کي خیال وو چي لا دعاء وکړم رکوع هم نیولای سم. نو د واړه دي وکړي.

ولې متابعت بلا تاخیره کړشو پرځای نفس متابعت خو پرځای شو. او د بل واجب چې
قنوط ووحق پرځای شو. **پوهـ سـه** : چې متابعت دامام په قرائت کې نه وي
په مذهب کې نه دی روا که لمونځ سری وی او که جهري وي. او امام شافعیؒ دالحمدلله
ویل لازم بولي. په دواړو کې. او امام مالکؒ او احمدؒ په جهري لمانځه کې دحنیفانو
دمذهب سره موافق دی. او په سری لمانځه کې دامام شافعیؒ دمذهب سره موافق دی
والتفصيل في الكتب المبسوطة للفقه،
ـه ددی فصله سره سوم خلاص په شبه صحت. خدایه نور د تا نه غوارم عافیت.

# فصل في سننها وهي احدى و خمسون

دا فصل دی په بیان کې دسنتو د لمانځه. او هغه یو پنځوس دی **پوهـ سـه** چې
په ترک سره د سنتونه یا خراب والی د لمانځه نه راځي او نه سجده سهوه لازمیږي بلکه که په
قصدوی او د سپکاوی د جهت نه وی اساءت یعنی گنه گاری لازمیږي او اساءت تر مکروه
تحریمي کم دی. او د کشف کبیر نه منقول ده چې سنت کار دی یا قول دی چې وکولو تې
دخلکو ترغیب کیږي. او په تارک یې ملامتیا وویل کیږي سره د لږ گناه کاری، قال المصنفؒ

# رفع اليدين للتحريمة حذاء الاذنين للرجل

سنت دی پورته کول د لاسو داول الله اکبر د پاره تر برابری پوری دغوږو نر لره. په حدیث
صحیح کې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وو چې ده به شروع په لمانځه کوله
الله اکبر به وَوَایه بیا به یې ګوتې برابرې کړې دغوږو سره. او بیا به یې وَوَیله سبحانک
اللهم آه او د تکبیر وو اختر او دعای قنوط د پاره هم دغه اندازه ده. **فائده**، لفظ
د حذاء اشاره ده دې ته چې مس کول دغوږو لازم نه دی. او که څوک په ترک د لاس پورته





کولو عادت وی هغه گناه گار دی کذا في الخلاصة، **مسئله**: لاسونه په وخت
کې د تحریمې تر سره پورې ته کول بدعت سیئه دی. جمع الاحاديث في هذا الباب
**پوهـ سـه**: چې په بعض حدیثو کې داسې راغلي دي چې لاسونه دې په وخت کې د
تحریمي تر شحمتي الاذنين پورته کوی یعنی تر نرمیو پوری دغوږو. او په بعض
حدیثو کې راغلي دي چې لاسونه دي پورته کوی تر منکبینو پورې یعنی تر اوږو پورې
لکه چې په حدیث دابن عمرؓ راغلي دي. رأيت النبي اذا افتتح الصلوة رفع يديه
حتى يحاذي منكبيه رواه الشافعیؒ. او په بل حدیث کې راغلي دي چې د تحریمي په وخت
کې تر فروع الاذنين پوري لاس پورته کوی او کما قال» حاصل دجمع په دادی چې
ورغوی دې اوږو پورته کوی او بېتی ګوتې تر نرمیو پوری پورته کوی.
او سرونه دګوتو دي تر فروع دغوږو پورته کوی. که څه امام طحاویؒ حدیث دابن عمرؓ
په حال دعذر دعليه السلام حمل کړی دی لکن بیا هم دا جمع مذکوره وړه په زړه پوری ده
**مسئله**، که چا رفع د قدر مسنون په اندازه نه سوای کولای. او یا یو لاس پورته کولای
سوای دوهم نه. نو هر دَوَل چې ددَه قدرت وي هغومی دی پورته کړي حتی کی یو
لاس فلجووی پورته کیدی یو لاس دې پورته کوی» مجمع الانهر. قال المصنفؒ.

**والامة** او د غرر نګه دي تر غوږو لاسونه پورته کوی منځه ولې چې منځه
په پورته کولو کښي دلاسو لکه نر ده. ولې چې بازوگان دمنځې عورت نه دی
او منځه لکه حره ده په رکوع او سجده کې: قال المصنفؒ

**وحذاء المنكبين للحرة** او تر برابره داوږو لې پورته کوی حره
ښځه په صحیح روایت ولې چې ذراعین دی
عورت دی، وروى الحسن عن ابي حنيفة چې حره دي هم لاسونه تر غوږو پورې پورته کوی
وجه ددې روایت داده چې په وخت کې دکور د خدمت لکه اوړه اخښل، یا سرای
جارو کول، یا کالي پریولل وغیره حره ښځه دلخ والی د ذراعینو چاره نه لري نو په
سبب دعذر عورت والی یې ساقط دی، والجواب انه لاضرورة لها في كشف الذراعين عند

رفع الیدین للتحریمة» د ره قال المصنف

**وَنَشْرُ الْاَصَابِعِ** او په وخت د لاسو پورته کولو د تحریمې د پاره د ګوتې دی ددواړو لاسو خلاصی نیول سنت دی» د ره ولیش والی چې مراد د نشر نه دا نه دی چې قصدًا دی سره فراخه وګرځوی بلکه مراد دادی چې قصدًا دی تولی نه نسی بلکه پر خپل حال دی پریږدی»، مر ط،

**پوه سه**: چې فقهاء والی چې پورته کول د لاسو په څوځایه کښې سته و ښس ا» یوخود تکبیر سره د افتتاح الصلوٰة ترغوږو پورې ر۲، او بل د تکبیر قنوط سره ترغوږو پورې ۳ او بل په تکبیرونو د عیدو کښې د اخترو ترغوږو پورې ر۴، او بل په وخت د استلام الحجر الاسود تر اوږو پورې. او باطن د لاسو دی و حجر اسود ته کی ر۵، او بل پر صفا او مروة باندی لکن مخ د لاسودی د کعبې شریفې وخواته کی په صحیح روایت کی.

ر۶، او بل په وخت کی د داخلیدو په مسجد حرام کی اول وار» نو دی دی بیت الله شریف ته ګوری لکن بعض علماء والې چې مخ د لاسودی کعبه شریفې ته کی. او بعض علماء والې چې د دعا پر رقم دی لاسونه پورته کړي یعنی تر څیګر پورې او په مابین کی د لاسو بې جلاوالی وی که څه هم لږ وي. ر۷، او بل په وخت کی د جمع د لمونځو په عرفات کی د دعا پر وزمر ۸ او بل په وخت کی د جمع د له ونځو په مزدلفه شریفه کی د دعا پر رقم. **پوه سه**: کړیو سړی د دعا په وخت کی د خدای جل جلاله نه یو شی غوښتی لکه جنت یا رزق د دنیا او نور نو دی لاسونه تر څیګر پورې پورته کړی فرجه دې ورکړي او د لاسونه او مخ دې د اسمان وخواته وي. او که چا نجات د خدای نه وغوښتی د اوره د جهنم او یا بل عذاب دنیا وی نه، نو لاس خو دې تر څیګر پورته کړی سره د فرجې لکن مخ د لاسو د خپل د مخ وخواته کی. او کی یو چا ته چې مستحق د سزا او د هلاک وغیره سزا ییر کوله د لاسو مخ دی د ځمکې وخواته کی.

**پوه سه**: چې هر وخت چې سړی دعا وکړی ور وسته تر دعا دی لاسونه پر مخ تیروی دا سنت دی **مسئله**: چونکه اصل د دعا په اجتماع سره په استسقاء کی ثابت دی





د آنحضرت صلی الله علیه وسلم نه او د غه رنګه په وخت کی د مباهلې په اجتماع د خصمینو نو دعا کول په اجتماع سره و روسته تر لمونځو کم بدعت نه دی لکه وهابیان چې وائی ولی بدعت هغه فعل ته وائی چې په دین کی اصل نه لري. سره د دې چې دعا په اجتماع سره اقرب و اجابت ته هم ده. نو ځکه تبلیغی جماعت والا په لویو اجتماعاتو کښې خپل په ساعتونو ساعتونو دعا په اجتماع سره کوی. لکن عجب و بعض تبلیغی کسانو ته ده چې دعا بالاجتماع په مساجدو کی بدعت بولی. او د دعا په وخت کی د امام او مقتدیانو سره لاسونه نه پورته کوي.

نو شاید دغه کسان به وهابیان وی او په تبلیغی جماعت به ګډ سوی وی د پاره د دې چې د وهابیت مرام پر مخ بوزی. او د فقیر دا خیال دی چې په اوسنی زمانه کښې چې بعض ملایان پر تبلیغی جماعت لګیږی او بد ځندی ورې په سبب د دغو وهابیانو چې په ګډ سوي دی. او په لږ کار سړې مشرک بولې. لهذا مقتدایان اصلی د دی جماعت اصلاً په سبب د یو کار مسلمان ته مشرک نه وائې. تاسو کولای سی چې د دی جماعت د لوړو علماو لکه جناب مولانا زکریا ره وغیره مطالعه کړې. د شرک لفظ به پکښې ونه وینئ. بلکه د شرک لفظ شعار د وهابیانو دی. یا په بل نام موحدینو، یا په بل نام اهل الحدیث د دی زمانې، یا په بل نام سلفیانو د وخت حاضر

**مسئله**: غیر د دغو ځایو په بل ځای کی رفع د لاسو نسته. زمونږ د امام اعظم ره په مذهب کی او نور مذهبو والا یې د تکبیر سره د رکوع او د پورته کیدو د رکوع نه، او د بعض نورو په نزد د لمانځه په وخت کښې لاسونه غوږو ته پورته کوي. **پوښتنه**: که څوک حنفی په دغو تکبیرو کی لاسونه غوږو ته پورته یې لمونځ یې فاسدیږی او که نه!!

**جواب**: بعض فقهاء وائې فاسدیږی لکن فتوی پر دې ده چې نه فاسدیږی کما فی النهر الفائق وهو الصحیح کما فی السراج» ط قال المصنف ره

**وَمُقَارَنَةُ اِحْرَامِ الْمُقْتَدِیْ لِاِحْرَامِ اِمَامِهٖ** او سنت دی یو ځای والی د تحریمې مقتدی د تحریمې سره

د امام. او دا هم دی مذهب دامام اعظمؒ. دَلیل یہ دادی چې علیه الصَّلٰوۃ وَالسَّلَام وَائیٔ إِذَا كَبَّرَ ای الامام فَكَبِّرُوْا او کلمہ د فاء دَوَخت دَپارہ ده نو معنیٰ دَحَدیث دا ده چې تاسی تکبیر وایاست پہ وخت کی دَتکبیر وَئیلو دَامام، او پَہ بل ځای کښی دقرانِ مبارک داسی راغلی دی، وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاَنْصِتُوْا او پَل ځای داسی فرمائی. وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا او دا خو ظاهره خبره ده چې زمانه دقرائت دَقرآن او د انصات یاد استماع خو یوه ده لکن دمقارنت د پارہ دا شرط دی چې دالله لفظ یا د اَكْبَر لفظ به تر امام د مخه نه وَائیٔ.

امام طحطاویؒ وَائیٔ که چیری مقتدی لفظ د اَللّٰهُ د مخه تر امام وَوَائیٔ او اَكْبَرُ ورو سته تر امام وَوَائیٔ. او یا اَللّٰهُ سره د امام ووائیٔ یا ورو سته تر امام مگر اَكْبَر یه تر امام د مخه وَوَایه لایصح شروعه فی اظهر الروایات وهو الاصح. ولی مقتدی چې شروع کوونکی په لمانځه گرځی په تهوله جُمله د اَللّٰهُ اَكْبَر. **حاصل دا چې** د امام اعظمؒ په نیز ثواب د تحریمې بیله مقارنت مقتدی ته نه پَیدا کیږي. او رویش وَائیٔ چې مراعات د امام اعظمؒ د مذهب په تحریمه کی ډیر غور او فکر غواړی. کما لایخفی.

او یا رانؒ وَائیٔ چې په هغه حَدیث کښی چې تیر شُو "فا"، د پارہ د تعقیب دہ نو تحریمه د مقتدی دی بلا فصله تر امام تحریمی وروسته وی. قهستانیؒ وَائیٔ چې الف دَلفظ د اَللّٰهُ د مقتدی په "را" سره د اَکبَر د امام جوت وی. امام سرخسیؒ وَائیٔ چې نور افعال د مقتدی او د امام هم په دا غه اختلاف دي. قَالَ المُصَنِّفُ فِی المَرَاقی: وَلَاخِلَاف فِی الجَوَازِ عَلَی الصَّحِیحِ بَل فِی الاولویّه. لکن شیخ الاسلام وَائیٔ چې مقارنت په اجماع سره افضل دی. وَقَالَ بَعْضُ الفُقَهَاءِ چې مختاره فتوی دَپاره په تحریمه کی افضلیت دَ تعقیب دی. او درویش هم وَائیٔ چې په سبب د آسانی د مذهب د یاراتو ؒ نو هم فتوی د دوی په رائیه ورکوم.

نو مَوافق د مذهب سره د یارانوؒ فضیلت او ثواب دا د ادراک دَتحریمی تر څه وخت پوری دوام لری په بعض کتابو کښی وَائیٔ چې تر وخت دَتمام وَالی د سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ آه او بعض علماءؒ وَائیٔ چې تر تهولی فاتحې وَیلو پوری، او په مضمرات کی وَائیٔ چې تر تمامه د اول رکعت وَهُوَ الصحیح او رویش وَائیٔ: چې دا فراخه دَتهولو مذهبو دی. لکن سره د هغه مبادرت ومقارنت تر ښکاره دی





بلا ریب. لکن د نیت تر لوسود ایان په دی باره کښی د تاسف وړ دي. او سلام گرځول د مقتدی او امام په نیز د امام اعظمؒ لکه تحریمه افضل یه اقتران دی او امام طحطاویؒ خبره نوره هم لیں اوږده کړی ده. قَالَ المُصَنِّفُ.

## وَوَضْعُ الرَّجُلِ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى تَحْتَ سُرَّتِهٖ

او سنت دی ایښوول د نر ښی لاس پر چپه لاس لاندی تر نامه. یعنی څرنگه چې اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَوَایه دستی دی لاسونه کښته ایله کړی تر نامه لاندی دی وَنیسی. دا سی دی نه کوی لکه بعض جاهلان د وخت چې څه وخت چې اَللّٰهُ اَكْبَر وَوَائی بیا لاسونه کښته ایله کړی چې ښه لاسونه سیده ایله سوه بیا نو بیرته لاسونه رابورته کړی پر نامه یې وَنیسی.

**پوښتنه**: چې په یوه حَدیث کښی داسی رَاغلی دي وَوَضْعُ يَدِهِ الْيُمْنٰى آه چې د دی حَدیث روایت حضرت علی رضی الله عنه کړی دی. او په بل حَدیث مرفوع کی لفظ د اَخَذَ رَاغلی دی. نو زمونږ مشائخو د جهت دَعَمَل بالحدیثین داسی کیفیت یه مختار کړی دی چې باطن د ښی لاسته وَرغوی دی پر ظاهر د چپه وَرغوی کښیږدی چې دا به وَضع سی. او بټه گوته او کچنۍ گوتی دی پر بند د لاس را وگرځوی دا به اخذ سی.

## قَاعِدَه کُلِّیَه

هر وَلاړه چې په هغه کښی ذکر مسنون وي که څه هم حکمًا وَلاړه وی لکه سرې چې پر نا ستی لمونځ کوی په هغه وَلاړه کی دی لاس پر نامه نسی. نو بناءً عَلٰی هذه القاعدة په وَلاړه کی د رکوع څخه او د سجدی څخه او په مَا بین کی د تکبیرو د اخترو وَضعُ الید نشته لعدم الذکر المسنون. او په سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ سره سوال نه وارېږی وَلی چې مراد دَقیام څخه قیام دَقرار ده. **پوښتنه**: چې په نیز د امام اعظمؒ او امام ابو یوسفؒ وضع الید د هغی قیامی سُنت دی چې په هغه کښی ذکر مسنون وي او په نیز د امام محمدؒ سُنت دی د هغی قیامی چې په هغی کښی قرائت وي نو په حال کی د سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ او یا دعاءِ قنوت لاس ایله نسی په نیز د امام محمدؒ یا د جنازی په لمانځه کی

قـال المصنفؒ **ووَضعُ المَرئَةِ يَدَيْهَا عَلىٰ صَدرِهَامِنْ غَيرِتَحلِيقٍ**

اوسنت دی ايښوول دښځی دواړه لاسونه پرځيگربانډی بيله اَلغه کولو ديوه پربل باندی يعنی پردی کی ددی ستر ډيردی. او په دی سُنت دی مينځه اوځوسره برابری دی. قـال الامام الطحطاویؒ چی ښځه دنره څخه مخالفه په څومسئلوکی. اودا تولو مخالفت په سبب دستر د دي دئ. (۱) وضع المرئة آه (۲) لا سونه د لستونړو څخه نه راباسي په وخت کی د تحريمی (۳) اوپورته کوی به لا سونه په تحريمه کی تراوږو پوری (۴) اوګوتی به د رکوع په وخت کی فراخه نسی (۵) اوپه رکوع کښی به ډيره نه کښته کيږي چی داهيئت ددی دپاره استردی (۶) اوسجدی په وخت کی به نس د ورنوسره جوړته وی اوبازوگان دی دبغلو سره يوځای کی (۷) اوښځه به تورك کوی په هره ناسته کی يعنی پرچپه کُناتی دی کښينی اودواړه پښی دی په ښی اړخ استرخواوباسی. او يو وړون دی پربل کښيږدي.

اوراسته پښه ی دی پرچپه پښه ی کښيږدی مجمع الانهر (۸) ښځه کرئ څهم نرمحرموی امامت نسی ورکولای (۹) او ښځو يوازی جماعت مکروه دی (۱۰) کـه سره دکراهته دوی جماعت کاوی امام ښځه به په ما بين کی ددوی وي. (۱۱) اوپـه جهري لمانځه کی به جهرنه کوي. (۱۲) او ښځو په حق کی دسحار لمونځ پـه تاريکه کی ښه دی. اوکه سړی تلاش په لمونځوکی وکړی ددی څخه علاوه نورفرقونه به هم پيدا کړی. چی يو دادی (۱۳) چی ځوانانی ښځی به دجماعت دپاره مسجد ته نه ځی.

**تبصره**: امريکايان اوغربيان وائي چی ښځی دی په نيکرانوکی ميله کوی اوتروږنو پوری دی لڅی ښو وځيونه ځی. غرض ددوی دادی چی مسلمانان په فواحشو اخته سی نوبيا په کفارو هيبت کم سی» قـال المُصنفؒ.

**وَالثّنَاءُ وَالتَعَوذُ لِلقِرَائَةِ وَالتَسمِيَةُ اَوّلَ كُلِّ رَكعَةٍ**

اوسنت دی سُبحَانَكَ اللّٰهُمَّ ويل په اول رکعت کی هرلمونځ گذاره لره نومقتدی دی سُبحَانَكَ





اللّٰهُم هغه وخت چی امام په قرائت شروع نه وی کړی. که په اول کی د لمانځه ورسره شريك وی اوکه مسبوق وي اوله ونځ جهري وی اوکه خفيه وي. ط، م،

**پوهسه**: چی اَعُوذُ بِا الله تبع د نفس قرائت ده د الحمدُ لله تبع نه ده ددی وجهی که سړی بيله الحمد لله بل سُورة وايه اعوذ با لله به وائي. م ط، **مسـئله** مختاره په ويلوکی داَعُوذ با لله دغه الفاظ دي. اَعُوذُ بِا للهِ مِنَ الشَّيطٰنِ الرَّجِيمِ وهواختيارابي عمروؒ اوعاصم اوابن كثيرمكی دئ. په قراء سبعه وو کی. اودا مختاره د اکثروحنيفيا نو ده وَهوَالمنقول من استعاذة النبی صَلی الله عليه وسلم دی. نوهغه الفا ظ چی صاحب د هدايهؒ اوامام هندوانیؒ خوښ کړی دي يعنی اَستعيذُ بِا للهِ آه ضعيف دی» ع، ط، اوسبب د دوی دا ختيار مذکوره الفا ظو لره موافقت دی دلفظ قرآني: فَاستَعِذْ بِاللهِ الخ

**پوهسه**: چی د تعوذ مشروعيت دپاره دقرائة القرآن دی کی په خارج کی د لمانځه قرانِ مبارك وايه هم اول اَعُوذ بِا لله ويل سُنت دي. اوکی په لمانځه کی قرائت وايه اَعُوذُ بِا لله ويل د مخه ترشروع په قرائت وروسته تر سُبحَانَكَ اللّٰهُمَّ سُنت دُی. وجه د مشروعيت دَتعوذ قبل القراءت دا دی چی قاری ته شيطان په وخت کی دقرائت وسوسی ورو نه چوی. اودامذهب دی دامام اعظمؒ اود امام محمدؒ.

اوامام ابی يوسفؒ وائي چی تعوذ تبع د سُبحَانَكَ اللّٰهُمَّ ده» نوپه نيزد طرفينوؒ مقتدی به اَعُوذُ بِا للهِ نه وائی. ولی چی ده لره قرائت نسته. اوپه نيزد امام ابی يوسفؒ مقتدی به تعوذ وائي ولی چی سُبحَانَكَ اللّٰهُمَّ خودی وائي. اودغه رنگه دا ختر په لمانځه کی به امام په اول رکعت کی پس له تکبيراتو زوائدو به اَعُوذُ بِا لله وائي ولی چی هغه وخت قرائت شروع کيږی. اوامام ابی يوسفؒ وائي چی ترسُبحَانَكَ اللّٰهُمَّ وروسته تر تکبيراتوزوائدو د مخه دی اَعُوذ بِا لله وائي. اوهم هغه مقتدی چی امام يو رکعت يا بالا څُندی تيرکړی په وخت داقتداء په امام پسی دي اَعُوذ بِا لله نه وائي. ولی چی په دغه وخت کښی ده ته قرائت ويل نسته بلکه هغه وخت به اَعُوذ بِا لله وائي چی خپل تير سوی لمانځه ته ولاړ سی يعنی قرائت شروع کوی.

او امام ابی یوسفؒ وائی چې هم به اَعُوْذُ بِاللهِ داقتداء په امام پسې وائی او هم ورو ستہ
پې دی د تیر سوی رکعت وقضاء راوړی، بحر، عن، ط، د ر،

## دبِسْمِ اللهِ په باره کی لنډ تحقیق

**پوهسه** : چې بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ یوایت دقرانُ څخه زمونږ حنیفیانو په
نیز، او امام مالكؒ او امام اوزاعیؒ او بعض علماءِ د حنیفیانو چې بِسْمِ الله آیت د
قرآن نه ده صرف او صرف دیاره د پیژند لود جلا والی د سورتو نازل سوی ده. چې آنحضرت
صَلی الله علیه وَسَلم فصل دسورتو هم په دغه سره پیژندی **تنبیه** : دا اختلاف
په دغه بِسْمِ اللهِ کی دی چې په اوائلو کښی دسورتو ده. نه هغه ځای» اِنَّهُ مِنْ سُلَیْمَانَ
وَاِنَّهُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ط ولی هغه خو بالاتفاق جزء دقرآن ده. او امام شافعیؒ
وائی چې په اول کی د هر سورة چې بِسْمِ الله موجوده وی هغه دهغه سورة جزء ده. نو
بناءً علیٰ هٰذا په عدد کی دآیاتو دقرآن مجید په مابین کی دحنیفیانو او شافعیانو ډیر
فرق ستر، کما لَا یخفیٰ»

او په نیز د امام اعظمؒ په یوازی بِسْمِ الله سره لمونځ نه دی روا. ولی چې قرائت په لمانځه کی فرض بالیقین
دی. او د بِسْمِ الله په قرآنیت کی امام مالك اوزاعیؒ مخالف دی. نو په قرآنیت کی شبه پید اسوه.

**فائده** : دقرآنیت څخه د بِسْمِ الله په اوائلو کی د سورة منکر کافر نه دی. ولی که څه هم په
تواتر سره په قرآن کښی لیکل کیږی. اَمّا قرانیت یې متواتر نه دی. او سړی په هغه آیت سره کافر کیږی
چې څندی منکر سي. چې قرآن والی یې تواتر وی. امام قهستانیؒ وائی چې بِسْمِ الله په حق کی دمسه کولو
محدث حکم دقرآن لري. یعنی مسه یې محدث ته نه ده روا. نه بجواز کی د لمانځه. او بحر الرائق کی وائی
چې جنب ته یې ویل هم ناجائز دی. مگر په نیت د تبرک یا د ذکر دپاره.

**مسئله** : بِسْمِ الله ویل په اول کی د هر رکعت د مخه تر اَلْحَمْدُ لِلّٰه سُنت دی. مصنفؒ په مراقی
الفلاح کی وائی: وَالْقَوْلُ بِوُجُوبِهَا ضَعِیْفٌ لِعَدَمِ ثبوت المواظبة عَلَیْهَا. لکن امام زیلعیؒ په باب کی د
سجود السهو وائی چې بِسْمِ الله واجب ده. حتی که سهوًا پاتی سی سجده سهوه به کوی.





لود اغر رایه دوجوب صحیح گنڼلی ده علامه مقدسی شارح النظم او په معراج الدرایه کی د معلی څخه
چې هغه روایت د امام اعظمؒ څخه کوي. چې بِسْمِ الله په هر رکعت کی واجب ده. او هم د لته قول
دیارانو دی. او په روایت کی د الحسنؒ د حضرت الامام څخه داسې راغلی دی چې صرف بِسْمِ الله
په اول رکعت کی واجب ده. لکن صحیح دا ده چې په هر رکعت کی واجب نه. وَ اِلَیْهِ مَالَ ابن
وهبانؒ او د فقیر هم دا رایه خوښه ده
امام طحطاویؒ وائی چې که سهوًا بِسْمِ الله په یوه رکعت کښی پاته سی سجده سهوه دی وکړي. څرنګه چې
عن هذا الخلاف،، **تنبیه** : که مصلی په رکعت کی پوره سورت وایه دغه دی اَعُوْذُ
بِاللهِ او بیا دی بِسْمِ الله ووائی لکن دا کار سُنت دی. او که پوره سُورت نه وایه بلکه یو څو
آیته یې ویل نو اَعُوْذُ بِاللهِ دی ووائی بِسْمِ الله نه غواړي. تعوذ هم سنت دی.

**مسئله** : د بِسْمِ الله په ویلو کښی د جهري لمانځه او د سري لمانځه فرق نسته کما ذکره
لکن زمونږ په نیز دی جهر په بِسْمِ الله سره نه کوي. او مصنفؒ په شرح کښی د در وائی چې بِسْمِ الله
ویل په مابین کی د اَلْحَمْدُ لِلّٰه او د سُورة مکروه نه ده بلکه ښه کار دی. لکن قهستانیؒ وائی چې
بِسْمِ الله دی په مابین کی د اَلْحَمْدُ لِلّٰه او سورة نه وائی. په نیز د امام اعظمؒ امام ابویوسفؒ. قَالَ
فی المضمرات والفتوی عَلیٰ قولهما. او د امام محمدؒ څخه روایت دی چې په سري لمانځه کی په
مابین د فاتحه او سورة بِسْمِ الله ویل سُنت دی نه په جهري کښی ،،

**درویش وائی** : چې دا خلاف په سُنت والی کی د بِسْمِ الله دی ورنه په دی کی شك
نسته چې ویل یې ښه کار دی. قَالَ الْمُصَنِّفُ **وَالتَّامِیْنُ** او سُنت دی اٰمین
ویل وروستہ تر فاتحې امام له مقتدی له چې جهري لمونځ وی. او دغه سُنت دی قاری
له د فاتحې سره د باندی تر لمانځه »مر« په حدیث مبارك کی آنحضرت صَلی اللهُ عَلیه وَسَلمَ
فرمائیلی دي. لَقَّنَنِیْ: وما ته ښوولی دی جبرئیل علیه السّلام: عِنْدَ فِرَاغِیْ مِنَ الْفَاتِحَةِ، په
وخت کښی د فارغ والی زما د فاتحې څخه: اٰمِیْن. وَ اِنَّهُ قَالَ او جبرئیل وویله. اِنَّهُ کَالْخَتْمِ
عَلَی الْکِتَابِ، چې دا لکه مهر دی پر کتاب باندې. او په صحیح حدیث کی چې روایت یې بخاری
وغیره کړی دی، قَالَ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ: اِذَا اَمَّنَ الْاِمَامُ فَاَمِّنُوْا : څه وخت چې امام اٰمین

وایه تا سی هم امین وایاست. فان من وافق تامینه تأمین الملائکة غفر له ما تقدم من ذنبه: ولی که دچا امین برابر سو د امین سره د ملکو ده نو، بخښل کیږی هغه گناهونه چی ده د مخه کړی وي. **پوهسه**: چی مراد په حدیث شریف کی برابروالی دی پر وخت کی د ویلو. او بعض علماء وائی چی مراد موافقت په اخلاص کی دی.

**فائده**: شیخ رحمه الله وائی چی امین سریانی لفظ دی لکه قابیل، ولی چی داو رانو څخه د کلام د عربو نه دی. او دا لفظ اسم فعل دی، په معنی د امر دی یعنی افعل یا الله کما قال، او قلت، یعنی کی د بل دعا امین کاوه نو به وائی کما قال، او کی پر خپله دعا امین کاوه نو کما قلت. چی په معنا د اسکت دی.

او مصنف په مراقی کښی وائی چی امین د قرآ نه څخه نه دی. او مجتبی والا وائی چی په قرائت کی اختلاف سته، ط، م، **مسئله**: لفظ د امین په مد سره او قصر سره دواړه روا دی په تخفیف د میم په دواړو کښی. او کی په مد سره و وائی سره د تشدید د میم خطاء دی. په ټولو مذهبو کښی لکن په نیز د امام ابو یوسف لمونځ نه په فاسدیږی لوجوده فی القرآن: ولا آمین البیت الحرام، الآیة

## د امین په معنی کی اختلاف

یو معنا خو هغه وه چی مونږ ذکر کړه، او جمهور وائی چی معنا یه: استجب دعائنا، ده. او امام ثعلبی په خپل سند سره د ابن عباس رض څخه روایت کړی دی چی ابن عباس رض وویله چی ما د امین د ه معنا پوښتنه وکړه د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه د ه مبارک وویل چی معنا یه افعل ده، او بعض فقهاء وائی چی معنا یه، لا یخیب الله رجائنا، او محدث عبد الرزاق د ابی هریره رض څخه په سند ضعیف روایت کوی. چی امین د خدای پاک نوم دی. نو معنا یه داسی ده یا امین استجب فحذف منه حرف النداء واقیم المنادی مقام مثل یوسف اعرض عن هذا، د ر ولیش وائی چی بعض فقهاء چی په قصر سره د امین ویل روا نه بولی په دغه وجه چی د خدای پاک نوم دی. او بعض علماء وائی چی امین یو خزانه ده د خزانو څخه د عرش چی په تاویل یه بی خدایه بل څوک نه پوهیږی.





قال المصنف **والتحمید** او سنت دی ربنا ولک الحمد، منفرد له په اتفاق لکن ورسته تر سمع الله لمن حمده. **اختلاف**: بعض فقهاء وائی چی منفرد دی سمع الله لمن حمده، چی د رکوع څخه پورته کیږی و دي و وائی. او ربنا ولک الحمد چی سجدی ته کښته کیږی و دی وائی مگر فتوی پر دی ده چی ربنا ولک الحمد دی په ولاړه کښی پوره کړی کذا فی مجمع الانهر وجزم به فی الدر، وهو ظاهر الجواب وهو الصحیح قاله القهستانی وعلیه فتوی الفقیه

او مقتدی دی هم اتفاقا وائی. او امام دی هم وائی په نیز د یارانو. ولی چی په حدیث شریف کی راغلی دی په روایت د ابی هریره رض: انه علیه السلام کان یجمع بینهما، رواه البخاری ومسلم او په عقلی دلیل په دا دی چی امام نور خلک پر حمد ویلو باعث کړه نو خپل ځان دی نه هیروی. او د حضرت الامام هغه حدیث دلیل دی چی روایت انس او ابو هریره رض کړی دی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم وویله: اذا قال الامام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لک الحمد، متفق علیه) نو آنحضرت ص سمع الله لمن حمده امام ته ور کړه او ربنا لک الحمد یه و مقتدی ته مخصوصه کړه. وقالوا التقسیم قاطع للشرکة، قال المصنف

**والاسرار بها** او کرار دی وائی دغه مذکوره شیان یعنی ثنا وغیره په دلیل د هغه حدیث چی علیه السلام وائی: خیر الذکر الخفی، وخیر العبادة اخفاها وخیر الرزق ما یکفی، قال المصنف:

## والاعتدال عند التحریمة من غیر طاطأة الرأس

او سنت دی سم درېدل په وخت کښی د تحریمی بیله کښته کولو د سر د تحریمی د پاره لکه چی عادت د عوامو بلکه د بعض ملایانو خصوصا په ژمی کی چی گرم پټو یه پر سر اچولی وی او دا سنت والی د تحریمی د سر څخه بیا تر پایه پوری، قال المصنف

**وجهر الامام بالتکبیر والتسمیع** او سنت دی په زوره ویل د امام په تکبیر سره یعنی په ټولو

رکعتوکښې. ولې چې امام ضرورت لري چې خلک په شروع د لمانځه او په انتقالاتو خبر کړي. او منفرد او مقتدي خو ضرورت نه لري.

**فائِدَهٔ مُهِمَّه**: که چیري د امام اواز د تکبیرو عیره قوم ته رسیدی بیاد بل تکبیر ویونکی تکبیر مکروه دی. امام طحطاوي په ص۲۱۲ ده السیرة الحلبیة څخه نقل کړی دی، "اتفق الائمة الاربعة- اتفاق کړي دی د څلورو مذهبو امامانو چې" أن التبليغ فی هذه الحالة بدعة منكرة، یعنی رسول د تکبیرو د امام په دا غسې حالت یعنی چې د امام صوت بخپله هم رسیږي بدعت منکر دی. او که چیري مکبر ته ضرورت وو، یعنی چې د امام آواز د الله اکبر، او سمع الله لمن حمده ټوله جماعت والا ته نه رسیدی یا خود امام آواز ضعیف وو او یا د جماعت خلګ ډیر وه. بیا نو تکبیرو نه ویل د مقتدیانو مستحب کار دی. او که چیري موظف مکبرنه وو نو په هر صف کی دی یو سړی اَللّٰهُ اَکْبَر وائی چې ټوله په خبر سی.

**سَوال**: د تکبیر ویلو خو ضرورت دی ولې چې اول صف والا د امام انتقالات په سترګو وینی دو هم صف والا اول صف والا وینی ثم وثم. **جوابُ**: که په صفو کی ړندیان وه نو هغه خو انتقالات د امام یا صفو په سترګو نه وینی"

**مَسْئَله**: که د امام په تکبیر افتتاح کی فقط وفقط خبرول د خلګو مطلب وو شروع په لمانځه یه نه صحیح کیږي. او کی صرف احرام د لمانځه غرض وو نو شروع په لمانځه یه صحیح سوه. او کی دواړه کار مطلب وی خدای پاک به دوه ثوابه ورکړي.

**ضَرُورِی خَبَره** که د تکبیر ویونکی (یعنی اول تکبیر) فقط د خلګو خبرول غرض وه په احرام تړلو د امام د ده لمونځ خونه دی صحیح. او د هغو خلګو لمونځ هم نه دی صحیح چې د مکبر څخه اخسته کوی. ولې چې دا نور خلک په هغه چا پسې اقتداء لري چې هغه په لمانځه کی نه دی یعنی مکبر، **پوهسه**، چې دا ټوله بیان مخصوص په اول تکبیر پوری دی. او هر چه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ، ده د امام دخوا. او رَبَّنَا لَکَ الْحَمْد د مکبر د خوا یا تکبیرونه د انتقالاتو دی لکه د رکوع یا سجدی وغیره د پاره په هغو کښی قصد د ذکر نه دی





لازم بلکه لمونځ یه صحیح دی. بهرصورت بلکه نیت د ذکر د پاره د ثواب دی. او که مقتدیانو په قول د دغه بل که عمل وکړي د هغو لمونځونه نه دی فاسد بلکه صحیح دی. ولی دغه مکبر اول تکبیر په سبب چې په نیت د ذکر یه وو ایه په لمانځه کښی داخل سو. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

فَلَا يَلْزَمُ الْاِقْتِدَاءُ بِمَنْ لَيْسَ فِى الصَّلٰوةِ.

او سنت

**وَتَفْرِيْجُ الْقَدَمَيْنِ فِى الْقِيَامِ قَدْرَ اَرْبَعِ اَصَابِعَ** دی لیری کول دیوی پښی د بلی پښی څخه په ولاړه کی په اندازه د څلورو ګوتو. **پوهسه** چه د غه اندازه نژدی ده د لمانځه وخشوع ته. دا روایت دی د کتاب اثر د امام اعظم څخه لکن دغه اندازه د هغه سړي د پاره ده چې عذر نه لري، او که یو سړی ډیر چاغ وی او یا چوره وی یعنی کلمی په خایونته راشوه کیږی. چې پر داسی دوو خلګو باندی لیری کول د پښو تکلیف وی یعنی دوی ته چې پښی ډیري ازادی کړي راحت وی نو هغوته اجازه سته چې پښی ډیري سره آزادی کړي:

**فائِدَه**: د فقهی شریفی په کتابو لفظ د تَرَاوُح، راغلی دی چې معنا یه دا ده چې په ولاړه کښی یو ګړي پر یوه پښه تکیه وکی او بل ګړي پر بله پښه تکیه وکړي. د تراوح پر باره کښی مصنف په مراقی کی وائی. وَالتَّرَاوُحُ اَفْضَلُ مِنْ نَصْبِ الْقَدَمَيْنِ» یعنی د تراوح کول په ولاړه کی سنه دی تر پښو په یو ځای ټینګ نیولو. ولې چې په دی کی آسانی ده پر لمونځ کوونکی باندي. او پر طول القیام باندی ډیر قدرت ورکوی. او په فتاوای ظهیره کی وائی چې د امام اعظم څخه روایت دی چې تراوح ښه معلومیږی ما ته تر نَصْبُ الْقَدَمَيْنِ" بلکه ابن امیر الحاج وائی چې تراوح سُنت دی. او په فتاوای هندیه کی هم داغسی وائی. لکن په منیة المصلی کی وائی چې تراوح مکروه ده. او صاحب د بنا یه د کشف څخه نقل کړی دی چې تراوح مکروه ده **نوواوره**: چې امام طحطاوي دا اختلاف د فقهاوو داسی دفع کړی دی" چې تراوح په دی دول چې په ولاړه کښی ګړي ګړي پر راسته او چپه پښه تمایل او کړیږی یعنی په ما بین کی فصل نه ورکوی لکه بعض

عوام، یا د در واغو پیلان چې کوي دا خو یقیناً مکروه دئ. او مراد دَ مُنیَة المصلی او فتاوی بنا یه هم دا غه تراوح دَی. او یو داچې یو وار په یوه پښنه تکیه وکی یوګړي ورو سته بیا په بَله پښنه تکیه وکړي دغه معَنا مراد ده د حضرت الامام الاعظمؒ او دَ مصنفؒ په مَراقی کی او هم دغه معَنا مراد ده د فتاوای ظهیریه، او فتاوای هندیه انتهی بزیادة من العبد العاصی،،

**فَائِدَة** په تاریخ کی د حضرت الامام الا عظمؒ داسی راغلی دی چې دی رحمه الله چې یوه شپه دحج په موقع کی د بَیت الله شریفي په خونه کی هغه شپه تیره کړه د دوو رکعتو نفلی لمونځ نیت یه وکړي. او نیم قرآن کریم یه په یوه رکعت کښی وَوایَه. او نیم یه په بَل رکعت کی. بعض نا قصَه مُلایان ددی تعبیر داسی کوي.

چې امام علیه الرحمة په یوه رکعت کی یوه پښه پرهغه بله پښه کښیښوَل او نیم قرآن یه ووایه او په بل رکعت کی هغه لاندی پښه پر هغه بَله پښه کښیښول او نیم قرآن شریف یه ووایَه... دا تعبیر شرعًا او عقلًا غلط دی، ولې چې اوس اوس تیره سَوه چې حضرت الامام تراوح دَپاره دآسانۍ دولاړي افضل بولی. نو ده په خپله وَلی خلاف د هغه کاوَه. او از روی عقل داسی وَلاړه او دومره اوږده د عَقل ډیره لیري ده. بلکه مراد په دَغه روایت کی هغه تراوح ده چې امام علیه الرحمه افضله وَبله.

قَالَ المصنفؒ

اوسنت دی چې **وَاَنْ تَكُوْنَ السُّوْرَةُ الْمَضْمُوْمَةُ لِلْفَاتِحَةِ مِنْ طُوَالِ**

او وی به هغه سورة چې جوتول کیږی د الحَمد لله سَره د قسَمه دَطوال المفصل سُورتو

**الْمُفَصَّلِ فِي الْفَجْرِ وَالظُّهْرِ وَمِنْ اَوْسَاطِهٖ فِي الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ**

څخه د سحار په لمانځه کی او د مَاپښین په لمانځه کی. او میانه سورتونه دی وَلئی په ماز دیګر او ماخستن کی:





**وَمِنْ قِصَارِهٖ فِي الْمَغْرِبِ لَوْكَانَ مُقِيْمًا وَيَقْرَءُ اَىَّ سُوْرَةٍ شَاءَ**

او د کوچنی سورتو د قسمه څخه په ماښام کی. او دا سنت والی هلته دی چې سَړی مقیم وی او که مسافر وی نو هر سورت چې دده خوښه وی وائی دی په هر لمانځه کی چې وی

**لَوْكَانَ مُسَافِرًا** که چیرې مسافر وُو: **مسئله**: دَدغو سورتو اوږدوالی میانه وو او لنډوالی د پاره دامام او منفرد دواړو سُنت دی.

**دعِبَارَت ځای دی**: چې بیخی کم امامان به دمَاپښین په لمانځه کی دونه قرائت وائې لکه د سحار د لمانځه چې د وخت تیرولو څخه سَړی په پوهیږی. بلکه دمَاپښین او مَازدیګر چندان فرق یه نه وي. او بله دا خبره ده چې مُلایي دسحار لمونځ یو وخت یوائې کوی خدای خبر چې دی به طوال مفصل په کښی وائې **پوهسَه**: چې په دی عبارت کی طِوال او قِصار په زیر دَاول حرف وایه جمع دَطویلَةٌ او قَصیرَةٌ دی. او تانیث یه په اعتبار د ی دَئ چې موصوف یه سورة دئ. او طُوال په پیښ دَطاء جګ سَړی ته وائې. او په زَوَر سره جګی ښځی ته وَائې. نو پیښ او زور دلته غلط دي.

**پوهسَه**: چې مفصل کوم سورتونه دی په دې کی اختلاف دی دا احنافو مذهب دادی چې د سورة حُجرات څخه بیا تر وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ، پوری طوال مفصل دي. او د سُوَرة وَالسَّمَآءِ آه څخه بیا تر لَـمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ «آه پوری اوساط مفصّل دی او بیا د هغه ځایه څخه بیا ترپایه پوری د قرآن قصار مفصل دي وبهذا صرح فی النقایه، او دی سورتو ته چې مفصل وَائې د جهته څخه د ډیرو فصلو یعنی جلا والی په بسم الله سَره، او بعض عُلماء وائې چې دا لفظ مشتق د تفصیل څخه دی په معنی د محکم وَالي. یعنی د دغو سُورتو احکام محکمه دی. ولی چې منسوخ لږ په کښی دی

**فَائِدَة**: دا سورتونه چې په نوموړو لمونځو کښی سنت دی په وخت کی

دعدم ضرورت اوعدم عذر،، لکه وخت تنګ وی یا نروی. اویا لمونځ کوونکی ناجوړی وي. اویا بل عذر وی لکه د دښمن څخه بیریږی وغیره.
او په وخت کی دعذر او ضرورت دی مصلی خپل حال ته ګوری چی ده څومره قرائت ګنجائش وی هغومره دی ووایئ.

**حکایت** یو وخت پر امام ابویوسفؒ دسحار لمونځ بیخی ناوخته سوی وو او امام اعظمؒ پسپه ده پسی اقتداء وکړه ابویوسفؒ دوه ایت د الحَمْدُ په هر رکعت کښی وَوَئیله ده لمانځه څخه چی فارغ سُو. امام اعظمؒ وَوَیل یَعقوبُنَا صَارَ فقیهًا، یعنی یعقوب زموږ چی د امام ابویوسفؒ نوم وو اوس فقیه وګرځیدئ. ولی چه په قدر د تنګ والی دَوخت یی لند قرائت ووایه قرط،

**اِخْتِلافُ الآثار پوښتنه**: چی اثارو اقوال په باره کی دقرائت د پنځو لمونځو مختلف دي. په جامع الصغیر کی وایئ چی دسحار په لمانځه کی په مجموع دواړو رکعتو کی څلویښت یا پنځوس یا شپیته ایته وایئ ما سوا دالحَمْدُ لله څخه،

او حسنؒ د حضرت الامامؒ څخه داسی روایت کړی دی،، چی په ما بَین دشپیتو بیا تر سلو ایتو پوری بی وایئ. په دواړو رکعتو کی. نو سل ایته هغه لوړ عدد دئ چی په دواړو رکعتوکی به وایئ: او څلویښت یی هغه لږ عدد دی دواړو رکعتو، نو څلویښت ایته دی پر دوه رکعتو وویشی یا ۲۵ په اول رکعت کی یا په اول رکعت کی، ۳۰ - په دوهم کی باقیمانده. تر څلویښتو پوری یعنی یا ۱۵ په دوهم رکعت کی اویا لس په دوهم رکعت کی،،

**تنبیه**: نو امام یا منفرد ته لازمه ده چی په ټولو څخو روایاتو دی عَمَل کوی په قدر د امکان، نو ۴۰ د ضعیفو خلګو د پاره دی او ما بَین د ۵۰ تر ۶۰ پوری د میانه وو خلګو د پاره دي. او ما بین د ۶۰ تر ۱۰۰ پوری دعاشقانو د لمانځه د پاره دی. او بعض فقهاءؒ وایئ که شپی اوږدی وی او لږ ده سورتونه دي





وایئ. او که شپی لنډی وی بیا دی کم عدده سورتونه وایئ. او بعض علماءؒ وایئ که امام حَسَن الصوت وو او پر او ریدونکو یی په قرائت ښه تاثیر کاوه نو دی اوږده سورتونه وایئ.
او که امام کریه الصوت وو او خلګو ته خوند ور نکاوه نو دی لند قرائت وَوایئ چی ۴۰ دي. او دما زدیګر په لمانځه او دماخستن په لمانځه کی دی ۲۰ ایته په دوو اولو رکعتو کی وایئ. علی رأی المحیط. او ۲۵ دخلاصی پر رایه، وهو ظاهر الروایة.
او دماښام په لمانځه کی اندازه داوږ دوالی ۵، ۵، په هر رکعت کی یا یو لند سورت

**مسئله**: تر ټولو د در وآیاتو پوره کچنی سُورت افضل دی. نو څکه په بحر الرائق کښی داسی وایئ چی زموږ مشائخو داخوښه کړی ده. چی امام دی په لمونځو کی مفصل سُورتونه وایئ. تا چه خلګ یه واوری او زده ئی کړي.

## مَسَائِلِ قِرائَةِ الاِمَام

په روایت کی دعمر رَضِیَ اللهُ تعالیٰ عَنهُ داسی راغلی دی،، چی ده به دماښام په لمانځه کی قصار مفصل سورتونه وَیل. او په ماخستن کی بی اوساط المفصل وَیله. او دسحار په لمانځه کی بی طوال مفصل وَیله او دما پښین لمونځ لکه دسحار لمونځ دی د سَبَبه دفراخی دوخت هم دارایه د اکثرو کتابو د فقهی شریفی ده. او بعض علماءؒ چی ما پښین لکه مازدیګر دی په قرائت کښی وَلی چی خلګ په مهماتو کاروا خته وي.

**پوښتنه**: چی د مذهب په مراعات باید مقلدین دَتشدد او تعصب څخه کار وانغلی. چنانچه په روایت کی دابی هریرةؓ داسی راغلی دی چی آنحضرت صَلی اللهُ عَلیهِ وَسَلم دَجُمعی دَورځی دسحار په لمانځه کی بی په اول رکعت کی الٓمٓ تَنْزِیلُ الکِتاب، پوره سورة وایه او په دوهم رکعت کی بی،، هَلْ اَتیٰ عَلیَ الاِنْسَانِ، پوره سورة وایه. نو حنیفیانوؒ داسُنت یک لخته

پری ایښی دی. مګر نادر علماءُ دی مذهب چی ګاهې ګاهې عمل په کوي.
اوشافعیانُ پردغه سُنت دوام کوی مګر نه نادر ددوئ څخه چې هغه ګاهې ګاهې پرېږدي. پس ځاهلانود دوارو مذهبو پر بل باندی الزام دبطلا ن دلمانځه ګوی مثلاً. حنیفیان وائی که چا دادوه سورة دجمعی دسحار په لمانځه کی وویل لمونځ یه باطل دئ،،
اوشافعیانُ وائي کی دغه دوه سورته یه نه وویل لمونځ یه باطِل دئ،،لکن انصاف اوحق دادی چې نه یَك لخته ترک ددی دوو سورتو به کاردی اونه پرځان لازم ګنړل په کار دئ. **مسَئَله**: دضرورت په وخت کی هرسُورت چې په هَرلمانځه کښی ددوی څخه وویل سِی رَوادی. په حَدیث مبَارك کښی رَاغلی دی چې یوه ورځ آنحضرت صلی الله علیه وَسَلم دسحار پَه لمانځه کښی" قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ،، او" قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ" په یوه اوبَل رکعت کی ووَیل د لمانځه چې آنحضرت صَلی الله علیه وَسَلم فارغه سوخلګو وَرته ووَیل" قَدْ اَوْجَزْتَ،، یعنی دسحار لمونځ دی کوتاه کړی. دہ مبارك پہ ورته وَوَیله قَدْ سَمِعْتُ بُکَاءَ الصَّبِيِّ،، فَخَشِيْتُ اَنْ تُفْتَنَ اُمُّه،، ترجمه: ما واوریدله ژړا دکشنی چې مور یې په لمانځه کښی شامله وه نوزه وبیریدم که زه لمونځ اوږد کړمو بی په فتنه کښی واقع سِی یعنی یا به لمونځ فاسِد کړي او یا نوله فکره بی دکشنی په ژړا کی وي نوځکه لمونځ کوتاه کړي.
**مسَئَله**: که دد ښمن څخه بیره تراندازه تیره سَوه اوسَړی په هر رکعت کی یو یو ایَت وواېه ګناه ګاره نه دئ. او لمونځ یه صحیح دی نقَله الطحطاوی عن الشرنبلالیه. **پوهسَه** چې داغه چې اوس ذکر سَوه. مریض اوکاروالا اوضعیف سَړی ټوله د ضرورت په حکم کی داخِل دی. **فَائِدَه**: که په امام پسی معلوم څوکسَه وَلاړوه اوهغه ټوله ضعفاء وه یا مَریضان یا اربابُ الحاجة وَه. خود هغود ضرورت سره موافِق دی قرائت وَوَائي.





اوکه ټول اقویا وه اودتطویل القرائت شوقیان وَه،، نودی امام په هَر لمانځه کښی هغه اعلیٰ درجه قِرائت وَوَائي. اوکه مقتدیا نو حال دپړی له کښاله نه معلومیږي نو په هر لمانځه کښی هغه کښته اوان دهغه لمانځه قرائت ووائی. خوامام دې ډیره سعیه کوي. چې خلك په سبب دَتطویل القراءت دجماعت څخه متنفره نه سِی،، قالوفی المحیط والخلاصة والکافی وغیرها کذا فی القهستانیٌ. ط
**مسَئَله**: دسفر پَه حالت کی تقلیل القراءة بیله کراهته روادیُ. که حال د قرار وی اوکه دعجلت وی. په حدیث شریف کی راغلی دي چې علیه الصلوٰة والسلام دسحار لمونځ په معوذ تینوسره ادا کړی دی یعنی په سفر کې.
اوهغه چې صاحب الهدایه دحال دَ قرار اوتلوار د قرائت په باره کی فرق بیان کړئ دئ هغه فرق امام طحطاویٌ په دی الفاظو رد کړی دی،، لَیْسَ لَهٗ اصل یعتمد عَلیه من جِهَة الروایة وَلامِن جهة الدرایة آه وَاللهُ اَعْلَمُ: قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَاِطَالَةُ الْاُوْلٰى فِي الْفَجْرِ فَقَط** اوسُنت دی اوږدَول داول رکعت دسحار په لمانځه کښی فقط یعنی دسحار دَلمانځه په اول رکعت کی دی اوږد سورت تردوهم رکعت وائیُ اودا هم سنت دئ. اوپه نورو لمونځو کی نه دئ سُنت اوامام محمدٌ وائي چې زما خوښه داده چې اول رکعت دې په ټولو لمونځو کی تردوهم رکعت اوږد دوي. اودسحار په لمانځه کی اوږدَول داول رکعت تردوهم رکعت دزمانی څخه دآنحضرت صَلی اللهُ عَلیه وَسَلم تراوسه پورې په میراث پاته دی اوعقلی دلیل یه دادی چې سحار چونکه وخت دَخوب دی اودغفلت دی نو داول رکعت په اوږدیدو سره خلګو ته به ټوله جماعت نیولو موقع برابره سِي. کذا فی الغایه والمراقی.
**مسَئَله**: ددوهم رکعت اوږدَول تر اول رکعت مکروه دی بالاتردوه ایَته اتفاقًا لکن مکروه تنزیهی دی. ط. **مسَئَله**: په نفلواوپه سُنتو کښی

اطالۃ اوږدول د دوهم رکعت پر اول رکعت په قرائت کې پرواه نه لري، كذا في العناية والمراقي والفتاوى جميعها۔

ددې سبب هغه لمونځ د څاښت چې اولياء الله دپاره د فراخۍ د رزق په دې ترتيب بيان كړي دي. چې په اول ركعت كې دې وروسته تر اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ سورة وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا آه ووائي۔ او په دوهم ركعت كې دې، وَاللَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى آه ووائي۔ او په دريم ركعت كې دې وَالضُّحٰى آه ووائي او په څلورم ركعت كې دې اَلَمْ نَشْرَحْ آه ووائي كه څه هم وَاللَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى تر وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا، په تعداد كې دا ايتونه ډيردي. لكن چونكه نفل دي هيڅ پروا نه لري.

**خبرتيا** ددې لاندې بلكه په ټولو نفلي لمونځو چې څلور ركعت كوي د ميا په ناسته كې. به اَللّٰهُمَّ صَلِّ، اَللّٰهُمَّ بَارِكْ وائي. او چې دريم ركعت ته ولاړسي، سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ به وائي. او دا لمونځ دې په څاښت كې كوي.

قَالَ المصنفُ **وَتَكْبِيْرُ الرُّكُوْعِ** او سنت دي اَللّٰهُ اَكْبَرُ ويل د ركوع دپاره ولې چې په حديث شريف كې راغلي دي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم تكبير وايه د هر تكبير كښته كيدو دپاره او د پورته كيدو دپاره يعني ما سوا د رفع د ركوع څخه ولې چې په هغه كښې سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ به ويله۔ قَالَ المُصَنِّفُ۔

**وَتَسْبِيْحُهٗ ثَلَاثًا** او سنت دي تسبيح ويل په ركوع كې. لِقَوْلِ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اِذَا رَكَعَ اَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وذالك ادناه وَاِذَا سَجَدَ فَلْيَقُلْ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى ثلاثا وَذالك ادناه، **پوښتنه**: چې ضمير د اَدْنَاهُ په دواړو ځايونو كښې راجع دې و لفظ غير مذكور ته چې د مقام څخه فهميږي؛ قَالَ في المراقي اي ادنى كماله المعنوى وهو الجمع المحصل للسنة. وقيل ادنى كمال السنة. وقيل ادنى كمال التسبيح وقيل ادنى كمال القول المسنون، په هر تقدير كې جمع لغوي چې





پر دوو هم صادقه ده مراد نه ده۔ نو كمال د سنت د تسبيح د ركوع او سجدې درې مرتبې لري ادنى يې ۳ دي او ۵ يې اوسط دي او ۷ يې بالا۔ تر هغه اعلى دي. په بحر رائق وائي چې زيادت د تسبيحاتو په ركوع او سجده كې افضل دي لكن تاك دې وي يعني ۳ يا ۵ يا ۷ يا ۹ وغيره.

ولې چې په حديث د بخاري او مسلم دا سې راغلي دي۔ اِنَّ اللّٰهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ، يعني خداى پاك تاك دى او تاك يې خوښ دي. او د غه درې مرتبې په منية المصلي كې او په مضمرات كې هم راغلي دي **پوښتنه**: چې امر په حديث نبوي كې يعني فَلْيَقُلْ دپاره د استحباب دى. نو كې تر درې واره كم ووائي ثواب د سنت نه پيداكيږي بلكه مكروه تنزيهي دى. حتى كه مقتدي ۳ واره تسبيح نه وي پوره كړي او امام سر را پورته كې د امام متابعت دې وكړي. م۔

**مسئله**: كه يو عامي سړى وو چې لفظ د ظاء د عظيم يې په خپل مخرج كې نه سوای ويلاى بلكه داسې ويله "عزيم"، نو هغه ته لازمه ده چې سُبْحَانَ رَبِّيَ الْكَرِيْمِ دې ووائي ولې چې عَزِيْم بې معنى لفظ دى. په دې ځاى كې. **پوښتنه**: چې چونكه په ركوع كې تذلل او خضوع ده. نو بايد خداى پاك ته مقابل د خضوع ثابت كړي چې عظمت دى۔ او سجده چونكه غاية التسفل او كښته والى دى. نو دې و خداى ته مقابل د هغه چې علو ده ثابت كړي. لكن مراد بې علو رتبې او قهر او غلبه وي. علو مكاني دې مراد نه وي. ولې خداى لره مكان نشته، كما ثبت في عقائد اهل السنة والجماعة خلافا للوهابية والسلفية چې دوى عرش د خداى جل جلاله مكان بولي و للتفصيل موضع آخر. **مسئله**: امام دې په ركوع او سجده كښې ډونه ډيرې تسبيح نه وائي چې قوم په ملال كښې واقع سي، م، او منفرد لره تر هر څو پورې اختيار بلكه ثواب دى لكن ختم بې پر تاك باندې كوي كما مرّ، **مسئله**: كه امام زيادت والى وكړي په تسبيحاتو كې د ركوع چې يو سړى چې امام ته احساس وسو چې راځي نو دغه سړى به دا ركعت وموندي. لبعض علماء وائي داسې كار مكروه دى. او بعض علماء وائي چې

لمونځ یې فاسدېږي۔ او بعض علماء وائي چې امام په دغه کار سره کافر شو۔ او بعض بیا وائي کې راتلونکي نه پېژندي بیا کراهت نشته۔ او بعض علماء وائي کې راتلونکي مسکین سړي وو نو په زیات والي کې کراهت نشته۔

**لکن دَدَروَیش رَایَه دَادَهْ** لکه چې قهستاني او زاهدي کې چې راغلي کې مقصود په زیاتولو کې ثواب وو نو بیا کراهت نشته. او ورته قول په بحر الرائق او نهر کښې هم راغلي دي۔ هغه وائي۔ ان قصد غیر القربة فلا شك في کراهته وان قصد به القربة فلا ریب في عدم کراهته» بلکه فقیه ابو اللیث السمرقندی لا تر دې لوړه خبره کړېده۔ چې زیاتول د تسبیحاتو په رکوع کښې دپاره د دې چې راتلونکي دا رکعت ونیسي. ډېر مستحسن کار دی. لقوله تعالیٰ. وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ» ترجمه: تاسې یو بل سره کومک کوئ په ښه کارونو او تقویٰ باندې» لکن درویش وائي چې قول د سمرقندي بناء پر دې دی چې دغه کومک د امام دپاره دا رکعت مبني پر غرض دنیاوي نه وي لکه د رئیس سره د محلې، یا د مسجد چاپلوسي کول او یا راتلونکي ډېر شتمني والا او امام ته ډېرې کات ورکوي.

ولې چې په داسې صورت کې کراهت خوښ کوي پر امام بېره د کفر ستته، او بعض فقهاء وائي چې تسبیحات د رکوع او سجدې او تکبیرونه دغو تولو واجب دي۔ م» نو په ترک سره دغو سهوًا سجده سهوه لازمېږي، او په قصد پرېښودلو سره یې لمونځ ناقص ګرځي» ط» او ابو مطیع البلخي چې د امام اعظم شاګرد هم دی یوه نادره خارج د مذهب څخه دکتا بو څخه کړېده چې دی وائي چې تسبیح د رکوع او سجدې رکن ده لا څکه دې په ترک سره که عمدًا وي او که سهوًا وي لمونځ یې باطلېږي **فَائِدَه**: شافعیان دفرضي او غیر فرضي لمونځو په رکوع کې وروسته تر تسبیح دا توري هم وائي. اَللّٰهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ وَلَكَ خَشَعْتُ وَلَكَ اَسْلَمْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ: او په سجده کې دا راتلونکي الفاظ زیاتوي.





سَجَدَ وَجْهِيَ لِلَّذِي خَلَقَهُ وَصَوَّرَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ فَتَبَارَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ» کما روي عن علي او مونږ حنیفیانو دا زیاتوالي په نفلي لمونځو کې مروي بولو» ط م» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَاَخْذُهُ رُكْبَتَيْهِ بِيَدَيْهِ وَتَفْرِيْجُ اَصَابِعِهِ وَالْمَرْاَةُ لَا يُفَرِّجُهَا

او سنت دي یعنې په حال کې د رکوع نیول د دواړو زنګنونو په دواړو لاسونو او خلاص والي د ګوتو۔ او ښځه دې تفریج د ګوتو نه کوي» په حدیث شریف کې داسې راغلي دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم د خپل خادم انس رضی الله تعالیٰ عنه ته داسې وویل: اِذَا رَكَعْتَ هر کله چې ته رکوع کوې فَضَعْ كَفَّيْكَ عَلٰى رُكْبَتَيْكَ» پس کښېږده ته ورغوي پر خپلو زنګنو وَفَرِّجْ بَيْنَ اَصَابِعِكَ: او ته خلاصې و نیسه خپلې ګوتې» وَارْفَعْ يَدَيْكَ عَنْ جَنْبَيْكَ: او پورته و نسه لاسونه د بغلو څخه۔ په داسې کولو کښې غوړول د ملا نښراځي او چونکه مبني د حال د ښځې پر ستر دی نو ددې کېبله دې ګوتې نه سره ګوښه کوي.

**مسئله**: په رکوع کښې تفریج الاصابع سنت دی۔ او په سجده کې جوړول د ګوتو سنت دی او په نورو لا څخه کې دې ګوتې پر حال خپل پرېښې دي۔ قَالَ الْمُصَنِّفُ.

## وَنَصْبُ سَاقَيْهِ وَبَسْطُ ظَهْرِهِ وَتَسْوِيَةُ رَاْسِهِ بِعَجُزِهِ

او سنت دي سمول او سم درېدل د پنډیو او سنت دي غوړول د ملا یعنې ملا دې بګه نه نیسي او سنت دي برابروول د سر د کناټو سره. **پوهه سه**: چې نصب الساقین د عصر نبوي څخه په میراث پاتې دی۔ نو ساقین لکه قوس نیول مکروه دي» م» دا دري سره سنت د حال د رکوع دي. او په حدیث شریف کې راغلي دي چې علیه الصلوٰة والسلام به په رکوع کښې ملا مبارکه داسې نیوله که ددې پر ملا

مبارکه داوبو کتهوری ایسنو وَل سوی وای نه بـه وای بنوړیدلای" لِاسْتِوَاءِ ظَهْرِهٖ"
اوپه بل حدیث شریف کی راغلی دي چې، علیه الصّلوٰة والسّلام چې به رکوع کوله
نه بی سر پورته کاوه اونه بی کښته کاوه. وَلٰکِن بَیْنَ ذٰلِکَ"
**پـوه سـه:** چې په رکوع کی دی خنګلی لیری کوی د بغلو څخه **بنهانه فائده**
په طحطاوی کی په ص۲۱۶ د رکوع په بحث کی وائي وَالْصَاقُ کَعْبَیْهِ فِیْهِ. او
سنت دی جوتول د ښجلکو په رکوع کی: او ورته عبارت په بعض فتاواوو کی
کی هم راغلی دی. لکن نور فقهاء وائي چې اِلْصَاقُ الْکَعْبَیْنِ په باره کی د تسویة
الصف راغلی دی. او هغه هم محمول پر مبالغه دی په دی کی چې په صف کی دي
فرجه نه پرینږ دي.
حقیقت یه مراد نه دی یعنی چې دیوه مصلی ښجلکه بـه د همسایه مصلی د ښجلکی
سره مَښلوی لکه بعض نافهم عوام چې کوی هغه خپلی دوی پښی دومره ازاد سره
اینږ دی چې یوه ښجلکه دده دیوا ړخ د همسایه د ښجلکی سره وَمښلوی او بـله
ښجلکه د بـل همسایه د ښجلکی سره. نو په مَا بین کی دده دوو پښو تخمیناً نیم متر
ځای وی او سره ددی چې د مخه دَولاړی په بحث کی تیر سول چې په ما بَین
د دوو پښو د مصلی دی څلور ګوتی قدر ځای وي. جوتول د ښجلکو په رکوع
کښی په هیڅ مُعتمد کتاب کی د فقهی نسته. او نه د ائمه څخه د مذهب کـم
روایت پر دی باره کی موجود. په دی باره کی رد محتار او شرح ته د رافعی رجوع وکړه
قَالَ الْمُصَنِّفُ

# وَالرَّفْعُ مِنَ الرُّکُوْعِ

او سنت دی سر اپورته
کول د رکوع څخه. او بعض روایتونو کښی د امام اعظمؒ داسی نقل هم چاکړی دی چې
رفع د رکوع څخه فرض دی. د درویش وائي که څه هم ظاهر ددی مَتن او نورو متنو
دادی چې تعدیل دارکانو سُنت دی. لکن مصلی دی په دې سُنت کښی سُستی
نه کوی لکه بعض جَهلة العوام چې کوی. یعنی چې د قیام څخه صرف ملا کږه کړي رستی





د هغی رکوع څخه سجدی ته جُځ. یعنی د رکوع څخه سر نه راپورته کوي. او چې سجدی
ته صِرف ور سیدی بلا ځنډه سر بیرته محض راپورته کړي یعنی په ما بین
کی د سجد تینو نه کښینی. ولی چې نهر فائق کی د مجتبٰی څخه نقل دی چې
هغه صدر القضات ته حواله کړیده. چې اتمام د رکوع او اکمال د هر رکن واجب
دی په نیزد امام اعظمؒ او امام محمدؒ. او په نیزد امام ابی یوسفؒ فرض دی.
او د غه رنګه پورته کول د سر رکوع څخه او سم دریدل او آرام کول په ولاړه کښی
او په مَا بین کی د دوو سجدو سم کښینستل واجب دي. حتیٰ قالوا کی پریښوی
د د غو کارو څخه سهواً سجده سهو پر لازمه ده. او کی قصداً پرینږ دی لمونځ به
ناقص اوٌ مکروه تحریمی کار مشتمل سو. قال ابن امیر الحاج وَهُوَ الصَّوَابُ ط"

قَالَ الْمُصَنِّفُ

# وَالْقِیَامُ بَعْدَهٗ مُطْمَئِنًّا وَوَضْعُ رُکْبَتَیْهِ ثُمَّ یَدَیْهِ

او سنت ده ولاړه پس له سر پورته کیدو څخه د رکوع څخه په اطمنان سره. ولی داغسی
کول په توارث سره د عصر نبوی ؐ څخه رانقل سوی دَه. او سُنت دی چې اول به
زنګنونه پر ځمکه اینږ دي. او ورو سته دی لاسونه اینږ دي. قَالَ الْمُصَنِّفُ

# ثُمَّ وَجْهَهٗ لِلسُّجُوْدِ وَعَکْسُهٗ لِلنُّهُوْضِ

او بیا دی مخ اینږ دی د سجدی دپاره
لکن ابتداء دی د پزی په اینښوولو سره کوی تر تندی د مخه. او عکس د ما قبل دی کوی دپاره
دولاړی. یعنی اول دی مخ پورته کوی بیا دی لاسونه او بیا دی زنګنونه لکن
لاسونه دی پر زنګنو کښیږدي. او د پښو پر سینو دی وَلاړ سی. یعنی کښینی به نه
او شافعیانؒ وائي چې جلسه خفیفه دی دې ره د استراحت کوی. ولی چې په صحیح
حدیث کښی راغلی چې آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ به یو وار کښینستی او بیا
به ولاړیدی. مونږ حنیفیان وایو چې د غه ناستی په هغه وخت کی وه چې د علیه
السلام مبارک جسم اطهر مبارک دروند سو او دی ضعیف سُو:

په دلیل د هغه حدیث صحیح: کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ یَنْهَضُ عَلٰی صُدُوْرِ قَدَمَیْه «رواه اصحاب السنن»

**پوه سه**: چې د غه کیفیت د سجدې کول او یا د سجدې نه د راپورته کیدو هغه چاله سنت دی چې دی عُذر نه لري او که عذر موجود وو بیا پرهر ډول چې سجدې ته ځي یا پورته کیږي روادي «مثلاً یو سړي چې په بدن ویرچاغ وي هغه چې د ځمکې لاسونه نه کښیږي سجده نه سي کولای. نو هغه سړي ته روا ده چې لاسونه د ځمکې او نګنونه ورو سته کښیږدي. وعلی هذا القیاس نور معذورین. قال المصنف

## وَتَكْبِيْرُ السُّجُوْدِ وَتَكْبِيْرُ الرَّفْعِ مِنْهُ

او تکبیر ویل سُنت دی د تکبیر د سجدې د پاره او تکبیر د پاره د راپورته کیدو د سجدې نه «دلیل په هغه حدیث دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په وخت کی د هري وضع او رفع وایه». قال المصنف

## وَكَوْنُ السُّجُوْدِ بَيْنَ كَفَّيْهِ

او سُنت دی چې سجده بی په ما بین کښې د ورغوي وي یعني محل د سجدې چې مخ دی په ما بین کښې د دوو ورغوو ایږدي «په مسلم شریف کښې حدیث دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم: کَانَ اِذَا سَجَدَ وَضَعَ وَجْهَهٗ بَیْنَ کَفَّیْه، لکن په بخاری شریف کی بیا داسی روایت راغلی دی: چې علیه السلام چې به سجده کوله ورغوی بی برابر د اوږو ایښوله» او دا د شافعیؒ مذهب دی. او د کمال الدین بن الهمامؒ رایه جمع ده هغه یې جمع داسی کړیده: چې ګاهی به علیه السلام داسی کوله او ګاهی بی هغسی کوله. لکن په افضلیت کښې اختلاف سته، په یوه نسخه کی د مراقی داسی راغلی دی «وان کان بین الکفین افضل، که څه هم چې سجده بین الکفین افضل ده. او په بله نسخه کی داسی راغلی دی: وان کان بین الکفین افضل» د رویش وایې چه چونکه دواړه طرزه سجده د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه ثابته ده بیا نو مراعات





د کتابونو فقهي حنیفي افضل دی. قال المصنفؒ

## وَتَسْبِيْحُهٗ ثَلَاثًا

او سنت دی تسبیح ویل یعني سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی دري واره. او طحطاوی دا هم په سنتو کی د سجدې زیاته کړې ده چې ګوتي د لاسو او د پښو بی و طرفته د قبلې وي. قال المصنفؒ

## وَمُجَافَاتُ الرَّجُلِ بَطْنَهٗ عَنْ فَخِذَيْهِ وَمِرْفَقَيْهِ

او سنت دی لیري کول د نر نس خپل د خپلو ورنو څخه، او ګونبه کوي دی څنګلی د

## عَنْ جَنْبَيْهِ وَذِرَاعَيْهِ عَنِ الْاَرْضِ

د تغو څخه او پورته کوي به با نو ګان د ځمکې څخه» لکن دا هلته سُنت دی چې ازدحام د خلګو نه وي ولې چې ازار رسول و بل چا ته حرام دی. او د ازار په پوره نه نیولو کښې د ذراعینو د ځمکې څخه نه راځي. البته په هغو نورو دوو کښې متصور دی» په صحیح حدیث کی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم چې به سجده کوله» دونه تجافي بی کوله که چیري د میږي کشنی وري چې» بَهْمَةٌ» یه بولي تیر یده غو بښتا ی په ما بین کښې د لاسو ده تیر سوی به وای. او په بل صحیح حدیث کښې داسی راغلی دي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم د سجدې په وخت کی دونه لاسونه د تغلو څخه لیري نیول چې د شا و سړي ته د ده مبارک د تغلو سپین والی معلومیدی»

**فائده**: د رسول الله صلی الله علیه وسلم تغلو وېښتان نه در لوده کذا فی کتب الشمائل، ولهذا قال بیاض ابطیه، او اکثر اوقات به آنحضرت صلی الله علیه وسلم: قمیص نه وُو: قال المصنف فی نور الایضاح»

## وَانْخِفَاضُ الْمَرْأَةِ وَلَزْقُهَا بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا

او سنت دی کښته والی د ښځي په حال کی د سجدې او جوتول د نس د دی په ورنو پوري، په حدیث مبارک

کې راغلي دي چې عليه الصلوٰة والسلام يو وخت تېر يدئ. پر دوو ښځو باندې يو چې
هغوي سجدې کولو په وخت کې نرما ننه سجده کوله. نو عليه الصلوٰة والسلام ورته
وو ئيل، چې تاسې چې سجده کوئ بعض غوښې خپل چې ئس دي و بعض نورو غوښو ته
يعني ورنو ته ورجوتې کړئ. ولې چې ښځه په سجده کې نر غوندې نه ده. ولې چې
ښځه عورتِ مستوره ده:

**پوهه سه**: چې سجده په خالي ځمکه افضله ده. او بيا په هغه شي چې د ځمکې څخه شنه
کېږي لکه بخوا خنګو به په مسجد وکښې لوڅې، يا اذخر يعني سرګړې او بوريا بې اوارول
ولې چې د لمانځه بناء په خشوع ده او خشوع په دغو شيانو باندې په سجده کولو کښې
ډېره ده. مګر د پاره د دفع د يخ يا ګرمي که بل شئ اوار کړي لکه سترنجي توشک کراستر
وغيره جائزه ده. لکن ننن صبا په مساجدو کښې د بنار وخصوصًا د پاکستان په
بنارو کې هغسې مفروشات فاخره نقش په نقوش دقيقه وو سره آواره وي چې
که صحرائي لمونځ کوونکې راسي تو له فکر بې په لمانځه کښې په هغو مفروشاتو کښې وي
او د هغو و نقشونه به حيران پاتروي لکن د عموم بلوي د سببه څوک څه نه سي ويلائ.

قَالَ المصنفؒ:

**وَالْقَوْمَةُ** او سنت دي پوره کيده د سجدې څخه **پوهه سه**

چې مصنف په مراقي کې وائي يعني اتمامها لان الرفع من السجود فرض الى قرب القعود،
واتمامه سنة» معنى داده چې تام والې د قومې سنت دي يعني پوره او کامل پورته کيده.
ولې چې نفس پورته کيده د سجدې څخه تر داسې اندازې پورې چې و ناستې ته نزدې وي
فرض دي، نو اتمام په سُنت دئ. د روايت وائي: چې په دې حکم سره د ډيرو اميانو
لمونځ فاسد دئ. ولې چې دوي صِرف سر د ځمکې څخه جلا کوي او بيا بيرته په اين دي
دبلې سجدې د پاره. لکن امام طحطاويؒ وائي چې په مجمع الانهر ده مطلب څخه
نقل دي چې صحيح مذهب د امام اعظمؒ دا دي چې نفس انتقال ديوې سجدې څخه بلې ته
فرض دي او پوره کيده سُنت دي. نو په دې روايت د هغو عوامو چې ذکر سوله لمونځ





په د خطر څخه د فساد خلاص دي که څه هم مکروه دئ او د صاحب الهدايهؒ هم دغه رايه ده

قَالَ الْمُصَنِّفُ: **وَالْجِلْسَةُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ** او سنت ده ناسته په مابين کښې د دوو سجدو
مقصود د دې ناستې څخه طمانينت د قومې دي. او مقدار د دې ناستې يو تسبيح
قدر دی. او په دې ناسته کې کوم ذکر مسنون نسته کما في السراج، او په نيز د
امام ابويوسفؒ دا جلسه فرض ده، د روايت وائي:
چې د اميانو هغه فعل چې ذکر سو د خطر خلاص نه دی. نو واما نو ته د مساجدو
او واعظانو ته پکار ده چې په ځاى کې د قصو که رښتيا وي او که د دروغ اميانو ته
دغه د لمانځه احکام وښيي. او دوی د لمانځه د فساد څخه په ورته افعالو بيره وي

**مسئله**: لکه چې په ناسته کې د دوو سجدو تر مابين چې ذکر مسنون نسته دغه
رنګه په وخت کې د رفع د رکوع څخه هم ذکر مسنون نسته. **پوښتنه**: په
صحيح حديثو کښې راغلي دي چې آنحضرت صلى الله عليه وسلم به په وخت کې د
رفع د رکوع او دغه رنګه په ما بين کښې د دوو سجدو بې ډيرې دعاګانې کولې. **جواب**
هُو... لکن هغه د تهجد په لمانځه کې، کذا في مجمع الانهر» د روايت وائي چې
د عمومي نفلي لمونځو د پاره دائره د دعاګانو په هر موقع کښې فراخه ده»، کذا في
غير كتاب من كتب الفقه من الشروح والفتاوى، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَوَضْعُ الْيَدَيْنِ عَلَى الْفَخِذَيْنِ فِيمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ**

او سنت دي ايښوول د دواړو لاسو په ورنو باندې په مابين کې د دوو سجدو لکه
**كَحَالَةِ التَّشَهُّدِ** د التحيات په حال کې. ولې په احاديثو مبارکه وو کښې د
آنحضرت صلى الله عليه وسلم هم داغسې ايښوول سوي دي
د لمانځه حال. لکن په فتح القدير کې وائي چې اطراف د ګوتو د زنګنو سره وصل کړي. يعني داسې
دې نه کوي چې لاسونه دې په ورنو باندې په مابين د زنګنو څخه ليرې وي.

اوداسې دې هم نه کوي چې ګوتې پرانګنو ورا وړي. قَالَ المُصَنِّفُ

## وَافْتِرَاشُ رِجْلِهِ الْيُسْرٰى وَنَصْبُ الْيُمْنٰى وَتَوَرُّكُ الْمَرْأَةِ

او سنت دي پرې ايستل د ښي ځپې. او دَ ول درا ستې ښي. يعنې دا خو سنت دَ نر
دپاره دي او د ښځې دپاره سُنت دادي چې پر کنا تو دې کښينې او ښي دې وباسي
پر استه طرف او يو ورون دې پر بل ورون کښيږدي چې په دې کې پوره ستر د
ښځې راځي **مسئله**: نر دې په ناسته کې دراستې ښي د ګوتو سرونه دې وقبله
ته کوي سوا د ځنجري ګوتې ولې د هغې سر و قبلې ته کول ډير مشکل دي، قَالَ المُصَنِّفُ

## وَالْإِشَارَةُ فِي الصَّحِيحِ بِالْمُسَبِّحَةِ عِنْدَ الشَّهَادَةِ يَرْفَعُهَا

او سنت ده اشاره کول په صحيح روايت کې په مسبحه ګوته سره چې سبا به يه هم بولي ده په
نيزد اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ"

## عِنْدَ النَّفْيِ وَيَضَعُهَا عِنْدَ الْإِثْبَاتِ

ګوته دې پورته کوي په
وخت کې د نفي. او بيرته دې ايږدي په وخت کې د اثبات" دروليش وائي چې د
اشارت په باب

## داشارت په باره کښې تحقيق

دادي.

**پوهه سه**: چې پر اشاره کښې مختلف اقوال دي. په بعض کتابو کې وائي چې اشاره
مکروه ده. دا قول نهايت تجاسر او دلاوري ده چې فعل ته د آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ
عليه وَسَلم مکروه وائي. نعوذ بالله مِنْ ذالك، او ډير مشائخ زموږ د مذهب
ودي نه تللي دي چې اشاره دې په سبابه سره په وخت کې د کلمه شهادت و يلو نه کوي
به. ولوالوجيه او په تجنيس کې وائي وعليه الفتوى. دا کسان که د فعل داشارت
راً سًا منکروي يعنې چې عليه السلام اشاره نه ده کړې خو دا بيخي غلطه خبره ده.





ولې چې په صحيح مسلم کې اشاره د عَليه السّلام څخه ثابته ده هم قولًا او هم فعلًا.
اويا به دوي وائي چې اشاره خو وه لکن بيا منسُوخه سوه. لکن په هيڅ کتاب کې
دحديثو مبارکه وو نه صحيح او نه ضعيف د نسخ څا ليدلې دي. بلکه امام محمد
ابن الحسن الشيباني چې شاګرد دي دامام اعظم، حديث داشارې يه په مؤطا
کښې چې ده امام محمدؒ کتاب دي په حديث کې راوړي دي. او په اخير کې
وائي: وَبِهٖ نَاْخذُ وَبِهٖ قَالَ ابوحنيفة". او مولوي عَبدالحيؒ په حَاشيه کې د موطا
وائي وبه قال ابويوسفؒ في الامالي. او کمال الدين ابن الهمامؒ په فتح القدير کې
وائي چې اشاره سُنت ده. او ابن عابدين الشاميؒ صاحب د ردالمحتار علحده
رساله په اثبات کې داشارې ليکلې ده. او د رد محتار والا وائي چې اشاره کول
سنت ده روايةً و درايةً. پس قول په عدم داشارې تګه مخالف د احاديثو نبويّه
څخه دی د غه رنګه مخالف د مذهب حنفي څخه دی ولې ائمه ثلاثهؒ د مذهب څوله
داشارې په کولو سره قائل دي. او په مجتبٰی کې وائي: اِتَّفَقَتِ الروايات عَنْ
اصحابنا جميعًا في کونها اي الاشارة سنة وکذا عن الکوفيين والمدنيين او بحر
رائق وائي چې اخبار او اثار په باب کې داشارې ډيرې دي فالعمل بها اولٰى.
**پوهه سه**: چې مياں فقيرالله هم داشارې په سنت والي او اثبات کې ښه
لويه په زره پورې رساله تصنيف کړيده:
**مسئله**: بعض جاهل کسان په وخت کې داشارې ګوته ښوروي دا مکروه
کار دی کذا في شروح المشکوٰة لملا علي قاريؒ **مسئله**: کې دراسته لاس
سبابه ګوته پرې وه يا مريضه وه چې اشاره يه نه سواى په کولاى په بله ګوته
دې اشاره نه کوي نه د راسته لاس او نه د چپه لاس. کما في النووي شرح المسلم ط"
او بعض ددې زماني ناپوهه مُلايان وائي چې اشاره په دې سبب ممنوع ده که سړي
يوه ګوته پورته کول دوې ګندې پورته سوې نو دا خو شرك دی. **جواب**:
په حديث کې د ابي هريرة رض راغلي دي چې يوې سړي په دوو ګوتو اشاره کوله نو عَليه

السلام ورته وفرمايل اَحَدْ، اَحَدْ، يعني په يوه ګوته اشاره وکه. او د اشارې څخه ئې منع نه کړې. **مسئله**: اشاره د ګوتې بايد وطرف ته د قبلې وي نو بعض کسان چې ګوته دونه پورته کوي چې سر د ګوتې په د اسمان وخوا ته ګرځي مکروه دی. ابن السکنؒ په خپل صحيح کتاب کې د ابن عمرؓ څخه روايت کړی دی چې آنحضرت صلی الله عليه وسلم وويلې: چې الاشارة بالاصبع اشد على الشيطن من الحديد.

## کيفيت د اشارې

هر وخت چې مصلی په ناسته کې وَاَشْهَدُ اَنْ لَآاِلٰهَ ته ورسيږي نو په وخت کې د ويلو د لَآاِلٰهَ دې د راسته لاس مسبحه ګوته پورته کړي. د دې پورته کولو معنیٰ نفي د خدائي دی د غير څخه د خدای جل جلاله او هر وخت چې اثبات ته يعني اِلَّا اللّٰهُ ته ورسيږي ګوته دې بيرته کښته کړي. د دې مطلب اثبات د الوهيت دی وخدای جل سلطانهٗ ته. **پوهه سه**: چې مصنفؒ په مراقی کښې وائي: وَاَشرنا اِلى انه لا يعقد شيئًا من اصابعه. يعني په وخت کې د اشاره کولو دې هيڅ ګوته نه کښته کوي. لکن صحيح داده چې ګوتې دې کښتوي. قال طحطاويؒ قد صرح فی النهر بترجيحه. يعني په ترجيح د ګوتو د کښتولو وانّهٗ قول کثير من مشائخنا وعليه الفتوى كما فی عامة الفتاوى.

**درويش وائي**: که څه هم د ګوتو د کښتولو په باره کې هم اختلاف شته. لکن په عمومي توګه د اکيفيت اولیٰ دی او ښه دی. کشنۍ ګوته او وړې ښې ګوته دې دواړې کت کړي. او د مياڼۍ ګوته او بټه ګوته دې سره اَلْغه وار وکړي. او په مسبحه دې اشاره وکړي.

**مسئله**: د ختم د تشهد يعني اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ الا الله دې ګوتې نه کښتوي او ليس له کښتيدو څخه او اشاره څخه ګوتې هغسې کت وي تر سلام ګرځيدو پورې.

او بعض علماء وائي: چې څرنګه چې اشاره وکړه د ښتې دې ګوتې ايله کړي مخ وقبلې ته





**پوهه سه**: چې د اشارې ګوتې ته چې سبابه وائي. په دې سبب چې د ښکنځلو په وخت کې اکثره خلګ په دغه ګوته اشاره کوي. او بعض علماؤ چې ورته ګوتې ته سبابه ويل مکروه دي ابن امير الحاج د هغه ذکر کړيدي. ولې چې په صحيح مسلم او نورو کتابونو کښې په حديث کې د ابن عمرؓ دې ګوتې ته سبابه ويل شوي ده. او دې ګوتې ته مسبحه په دې سبب ويل کيږي چې د تسبيح معنیٰ تنزيه او پاکول دی نو چونکه په دې ګوته سره توحيد ته د خدای اشاره کيږي. نو په دې ګوته سره نفي د شريکانو د خدائ څخه کړه کيږي نو آله د تسبيح ده. نو په محله مسبحه په صيغه د اسم فاعل د باب د تفعيل مجازًا بولي.

## شپاړسمه فائده

**پوهه سه**: چې اشاره په لمانځه کې مذهب دی د امام اعظمؒ او امام شافعيؒ، او امام مالکؒ او امام احمد بن حنبلؒ او د هغه مذهب حنفي لويو څخه کښې فقهاؤ د اشارې په سنت والي سره تصريح کړيده لکه امام ابو يوسفؒ، امام محمدؒ، فقيه ابو جعفر الهندوانيؒ ابی نصر بن سلامؒ ملا علی قاريؒ، امام خواهر زاده، امام کرخيؒ او حضرت مولانا عبد الحيؒ، او ميان فقير الله الجلال آباديؒ وغيرهم، او دغه کتابونه په هم سنت بولي، کتاب المشيخة، محيط، ملتقط، مختار النوازل لصاحب الهدايه، مواهب الرحمان، سراج الهدايه، فتح القدير عرف شذی، شرح ترمذی، شرح وقايه در مختار، رد المحتار، طحطاوی، حجة الله البالغة، نور الايضاح، مراقی الفلاح، نوازل، ذخيرة العقبی، غنيه خليه، بحر الرائق، مجتبیٰ، شرح مجمع البحرين، درر البحار، غرر الافکار، تحفه، بنايه شرح هدايه، شمنی، کفايه شرح هدايه، فتاوی عزيزی، وغيرها من کتب المذهب، په درويش ودا بيان. او س نو هر سړی دې په زړه کې د انصاف څخه کار واخلي. که اشاره کوي او که نه کوي:

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه وقد كتبه احقر فضل الحق حقانی غفرله

## تنبیه

**پوښتنه:** په افغانانو کی خصوصًا دافغانستان په خلکو کی سبب دنه رواج داشارې څه دئ. **جواب:** چونکه اغلب خلک دافغانستان د طریقت او تصوف سره ډیره علاقه لري اودوی دخپلو مرشدانو څخه اشاره نه ده لیدلی نو ځکه دوی یې هم نه کوي. اوبل سبب یې دادی چې نامورې مرشد حقانی عالم رباني د طریقه نقشبندیه په خپل یوکتاب کی خپل وقول ته ولوالوجیه او تجنیس وغیره ته ترجیح ورکړې یعنې چې اشاره دی نه کوي» وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَاب.

قال المُصنفُ **وَقِرَاءَةُ الْفَاتِحَةِ فِيمَا بَعْدَ الْاُوْلَيَيْنِ** اوسنت دی ویل دالحمدلله شریفې. په وروسته کښې ددوو اولو رکعتو. که یو رکعت وی لکه دمابنام لمونځ اوکه دوه رکعته وی لکه څلور رکعته فرضې لمونځونه **پوښتنه:** چې صحیح روایت داماماعظم اوظاهرالروایة هم د غه سنت والی دئ. او په بل روایت کی راغلی دي چې واجب دی ویل د اَلحَمدُلِلّٰهِ» کمال الدینؒ ودې روایت ته ترجیح ورکړیده. لکن امام طحطاویؒ وائي چې داخلاف دمذهب دی کما فی سکب الانهر»

**سؤال:** چې داماماعظمؒ څخه دوجوب روایت ثابت دی نو څرنګه دکمالؒ د قول چې خلاف المذهب دی صحیح دئ **جواب:** جسارت د طحطاویؒ یعنې چې مذهب دکمالؒ یې نقل کړی دی په حذف دمضاف دئ. ای خلاف ظاهرالمذهب» اوپه بل روایت کی راغلی دی چې مصلی اختیار لري که فاتحه وائي. اوکه تسبیح وائي. اوکه ساکت دریږي.

**فائده:** مقصود دروایت څخه د تخییر دادی چې قرائت الفاتحه متعینه نه دی دامقصود نه دی چې په ثواب کښې فرق نه سره لري. ولې چې هرسړي پوهیږي چې قرائت القرآن تر تسبیح افضل دئ. او تسبیح ویل تر سکوت افضل دئ.





قال المُصنفُ **وَالصَّلٰوةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجُلُوْسِ الْاَخِيْرِ** اوسنت دی ویل ددرود پرنبی علیه السلام په اخیږ ناسته کی.

**پوښتنه:** چې درود (۲) شپږ قسمه دی ۱ فرض دی هغه په ټوله عمر کی یو وار لِقَولِهِ تَعَالٰی: اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰئِکَتَهٗ یُصَلُّوْنَ الاٰیة ۲ واجب دی هروخت چې نوم د علیه السلام ذکرسي. لکن امام فقیه ابوجعفرالطحاویؒ وائي چې درود ویل پرهرسامع واجب عین دی. لکن ظاهر داده چې واجب کفائي دی قاله الطحطاویؒ ۳ سنت دی په اخیږ ناسته کی. ۴ مستحب دی په ټولو اوقاتو کی دامکان ۵ مکروه دی په لمانځه کی ماسواد اخیري ناستی اودعائي قنوت ۶ حرام دی په نیز دحرام عمل کولو لکه دشرابو خوړلو په وخت کی یا دچرسو څکولو په وخت کی وغیرذالك.

**مسئله:** که دکاندار یوشئ ددوکان راپورته کړي اومشتري ته دپاره د اظهار د ښه والي د هغه شي درود وائي حرام دی بلکه ټوله اذکار په دغه نیت حرام دي. ط»

**پوښتنه:** که دیوچا څخه بعض رکعتونه تیرسوي وه نوپه اخیږه ناسته کی به دی په سلسله التحیات څه شی وائي **جواب** درود دِ وائي بلکه اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا دی هم وائي» واختاره صاحب المبسوط وهو اختیار الفقیه ایضًا للاعتیاد بذالك فی غیر تلك الحال» اوابن شجاعؒ وائي چې کلمه شهادت دی مکرره وي دامام تر سلام پورې. ابوبکر رازيؒ وائي چې ساکت دی کښینی اوقاضیخانؒ اوبحرالرائق والا اوخلاصه والا صحیح اومفتی به دا بولی چې په التحیات کښې دی ځنډ وکړي یعنې په تکرار کرار دې وائي.

## د درود الفاظ په لمانځه کی

داامام محمدؒ څخه چا پوښتنه وکړه چې د لمانځه درود څرنګه ویل کیږي هغه داسې ورښوول: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ

وَعَلَىٰ اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَىٰ اِبْرَاهِيْمَ وَعَلَىٰ اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ وَبَارِكْ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ وَعَلَىٰ اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَىٰ اِبْرَاهِيْمَ وَعَلَىٰ اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ فِي الْعَالَمِيْنَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ط. مراقی وائي چې لفظ د فِي الْعَالَمِيْنَ په صحیح مسلم کې شته. نو خوک چې دا لفظ ممنوع بولي ضعیف دي.

**مسئله**: بعض خلک په لمانځه کې داسې وائي: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ آه بعض علماء وائي چې دا لفظ مندوب دی. ولې چې په دې لفظ کې اظهار د ادب د جناب نبوی دی. لکن حافظ ابن حجرؒ وائي چې متابعت د اثار واردۀ وو په دې باب کې ترجیح لري. یعنې لفظ د سیدنا دې نه وائي په لمانځه کې ولې چې په هیڅ اثر نه د صحابهؓ وو او نه د تابعینوؒ دا لفظ راغلی دی. نو که مندوب وای پردوی به پټ پاتې وو. هان، پر یوه حدیث ضعیف کښې د ابن مسعودؓ په روایت سره راغلی دی. او په اصول الفقه کې وائي چې مراعات د ادب ښه دی او که مراعات د اثارو ښه دي نو دوی ترجیح وثانی ته ورکړی ده:

**پوښتنه**: په نحوه کې قانون دی چې مشبه به اولی وافضل دی تر مشبه. نو دلته د تشبیه څخه د درود فهمیږي چې درود د خلیل الله علیه السلام افضل دی تر درود د حبیب الله صلی الله علیه وسلم نو بیا به حضرت الخلیلؑ افضل وي تر حضرت الحبیبؐ **والجواب** من وجوه: اول دا چې د تشبیه دلالت پر افضلیت د مشبه کول ممنوع دی. ولې چې په علم بیان کې وائي. چې کاهې شئ په سبب د شهرت مشبه به وګرځول سي. وَلَا شَكَّ اَنَّ اِبْرَاهِيْمَ عَ م كَانَ اَشْهَرَ عِنْدَ الْعَرَبِ.

دوهم چې دا درود چې مشتمل پر تشبیه دی هغه وخت آنحضرت صلی الله علیه وسلم ویلی ده تر څو پورې تفضیل پر حضرت الخلیل علیه السلام نه وو معلوم. لکن بیس له معلوم والي هم درود د آنحضرتؐ پر خپل حال پریښود: دریم تشبیه دلته په مطلق درود کې ده. نه په قدر کې د هغه. او ځنې نور جوابونه هم او ړي دي چې د ضعف خالي نه دي. او حمید فعیل په معنی د مفعول دی یعنې ستایل سوی





په ښو صفاتو. او مجید فعیل په معنی د فاعل دی. یعنې ماجد چې معنی یې ذوالمجد والشرف ده. **فائده**: د وجوب څخه د درود په وخت کې د سماع د نامه د علیه السلام وجوب اصطلاحی دی. ولې چې په دې باب کې ډېر احادیث راغلی دي. که څه هم احاد دي لکن مفید د وجوب کیدای سي: کذا فی البحر، قال المصنفؒ

# وَالدُّعَاءُ بِمَا يُشْبِهُ اَلْفَاظَ الْقُرْاٰنِ وَالسُّنَّةِ لَا كَلَامِ النَّاسِ

او سنت دی دعا کول یعنې وروسته تر درود ویلو لکن په داسې الفاظو چې مشابه وي الفاظو سره د قرآن کریم وي. او یا مشابه دا الفاظو سره د حدیث نبویؐ وي. نه په هغو الفاظو سره چې د کلام الناس د قسمه وي. الفاظ د قرآن مشابه لکه. رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا آه. رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً آه او نور. او د الفاظو سره د حدیث مشابه هغه دعا ده چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم و ابوبکر رض ته وښوول چې کله ده پوښتنه ځندی وکړه. چې ما ته و ښیه داسې یوه دعا چې زه یې په لمانځه کې دعا په کوم. هغه دعا دا ده.

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا وَاِنَّهٗ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ فَاغْفِرْ لِيْ مَغْفِرَةً مِّنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِيْ اِنَّكَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ، او نورې دعا گانې چې په حدیث مبارکه کې راغلی دي. **مسئله**: روا ده دعا د مغفرت و ټولو مؤمنانو ته د ټولو گناهو څخه شفقةً عَلٰى اِخْوَانِهٖ. او داسې مغفرت خو ممکن دی که څه هم واقع نه دی ط، الايات والاحاديث الواردة فی ادعية المؤمنين، او په هغه شیانو چې عادةً محال وي دعا کول حرام ده. لکه چې ووائي: اَللّٰهُمَّ اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً مگر نو نبی ته، په حدیث مبارک کې راغلی دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمایله: اِنَّ صَلَاتَنَا هٰذِهٖ لَا يَصْلُحُ فِيْهَا شَيْءٌ مِّنْ كَلَامِ النَّاسِ، ترجمه: په تحقیق زموږ د دغه لمونځ نه دي په کښې روا یو شئ د خبرو څخه د خلکو لکه چې یو سړی ووائي په لمانځه کې، اَللّٰهُمَّ زَوِّجْنِيْ فُلَانَةً: او یقول اعطني كذا من الذهب والفضة،

اواجعل فلان رحیمابی. وامثال ذالك. ولې چې د اسې خواستونو قبلیده د بندګانو دخوا هم کیدای سي. بخلاف اللّهم ارزقني رزقا حلالا واسعا. یا. اللّهم احفظني من جمیع الأفات والفتن»

**مسئله**: که سړی په لمانځه کې هغسې خواست وکړي چې د مخلوق څخه طلب کیدای سوای. نوکه د مخه ترناستې په قدر د تشهد یې وکړي لمونځ یې فاسد سو. اوکې تېـله ناستې څخه وکړې واجب چې وتل د لمانځه څخه په لفظ د سلام دی فوت سو. ولې په هغه دعا سره دی د لمانځه څخه خارج سو: م»

**مسئله**: خارج تر لمانځه هره دعا روا ده که مشابه د کلام الناس سره وي اوکه قرآني یا حدیثي دعاوې وي. **فائده**: په هدایه کې وائي چې طلب د رزق په لمانځه کښې دی نه کوي. ولې چې د رزق طلب د مخلوق څخه هم کیږي. لکن صاحب د غایة البیان وائي: چې رازق حقیقةً خو خدای پاك دی او اسناد د رزق و بندګانو ته مجازي دئ. **فائده**: که سړی داسې ووایل اللّهم ارزقني فلانة: په خلاصه کښې وائي لمونځ یې فاسد دئ اوکې داسې ووئیله: اللّهم ارزقني الحج صحیح داده چې لمونځ یې نه فاسدیږي. په مضمرات کې وائي که سړي ووایل اللّهم اقض دَیني لمونځ یې فاسد دئ. لکن فیه نظر لانه قد ورد في السنة: اللّهم اقض عنّا الدین واغننا من الفقر» اللّهم الا ان یقال ان الماثور کان خارج الصلوٰة. قال المصنف:

## وَالْاِلْتِفَاتُ يَمِيْنًا ثُمَّ يَسَارًا بِالتَّسْلِيْمَتَيْنِ

اوسنت دی مخ اړول و راسته طرفته او چپه طرفته د دوو سلامو سره.

په حدیث صحیح کې راغلي دي چې علیه الصلوٰة والسلام به سلام وایه په راسته طرف او داسې بي ویل: السلام علیکم ورحمة الله: حتی یُرٰی بیاض خدّه الایمن: یعني تر داسې اندازې بې مخ کړاوه چې لیدل کیدی به سپین والی د راسته بارخو دده. یعني د شا صف به لیدی. او په چپه طرف بې ویل: السلام علیکم ورحمة الله حتی یُرٰی





بیاض خدّه الأیسر: **مسئله**: کې ترد غو الفاظو که بود وکړي مثلا ووی ویله السلام علیکم، یا. سلام علیکم، ګناه کاردی په سبب د ترك د سنت او لمونځ یې صحیح دی»» م» **فائده**: په مراقي کې وائي چې لفظ د» وبرکاته» دی نه زیاتوي ولې چې هغه بدعت دی او په دې کې کم حدیث ثابت نسته. او امام نووي یې هم بدعت بولي. لکن امام طحطاوي وائي چې دا خبره چې برکاته بدعت دی مردوده ده. ولې چې په سنن ابي داؤد کې د علقمه بن وائل او هغه د خپله پلاره څخه داسې روایت کړي دی چې زما پلار ووئیله چې ما لمونځ وکړي سره د علیه السلام. فکان یسلم عن یمینه السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

وعن یساره السلام علیکم ورحمة الله فقط. بلکه امام حلبي د کتاب مختلف الروایات څخه داسې نقل کړي دي چې په دواړو سلامو کې دی وبرکاته» وائي.

**مسئله**: که سړي په هیره یا په قصده اول په چپه طرف سلام ووایه نو حکم یې دا دی چې په راسته طرف دی وګرځوي. او د چپه طرف دا دې بیرته نه راګرځوي. سوی د ګناه کاردی بل څه یې نسته هغه د عمد په صورت کې. **مسئله**، کې او سلام مخامخ وګرځاوه بل سلام دی و چپه طرفته وګرځوي.

**مسئله**: که یې د چپه طرف سلام هیر سو او ولاړ سو بیرته به کښیني او په چپه طرف به سلام اړه وي. مراقي وائي چې تر هغو پوري چې د مسجده نه وي وتلی او یا به خبري نه وي کړي. لکن صحیح هغه ده لکه په در مختار کې چې وائي چې تر هغه وخته چې قبلې ته شا سوی نه وي. ط» قال المصنف:

## وَنِيَّةُ الْاِمَامِ الرِّجَالَ وَالْحَفَظَةَ وَصَالِحَ الْجِنِّ

اوسنت دی چې نیت به کوي امام د نرو او د حفظ وچې ملکې دی او د صالح د جنیاتو

## بِالتَّسْلِيْمَتَيْنِ فِي الْاَصَحِّ

په دواړو سلامو ولې په اصح روایت. او بعض فقهاء وائي چې صرف په اول سلام کې دې نیت

کوی او بعض وائی چې صرف اشاره کافی ده. **مسئله**: چې مصنف په مراقی
کښې نیت د ښځو او د کوچنیانو او نرښځیانو هم زیات کړی دی که په جماعت
کښې وه د عزکسان، او هغه خبره چې نهر، وَالاکهیده چې د ښځو نیت دی نه کوی
ولې چې حضور د دوی وجماعت ته مکروه دی. امام طحطاوی ذکر کړې چې د کراهت
الحضور ذمه وار خوښځې دي. او د دوی نیت په سلام کښې خو پر امام وي
نو جهت د کراهیت او سنتیت مختلف دي.
**مسئله**: چې حفظ جمع د حافظ ده او دا ملکی حافظ په دی بولې چې د انسان
قول او عمل نوشته کوي. نو کاتب الحسنات ته رقیب وائي چې هغه پر راستر
او نه وي، مره. او کاتب السیئات ته یه عتید وائي چې هغه پر چپه اونه وي.
په یو حدیث کی داسې هم راغلی دي: چې مسلمان چې مړ شي د هغه دوی ملکی خدای
جل جلاله امر کړي چې دوی د دې مړي د قبر سر او سي. او حمد د خدای جل جلاله
او تسبیح او لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، او اَللّٰهُ اَکْبَرُ وایا ست. او د دې ټولو ثواب و صاحب
القبر ته نوشته کیږي. تر هغه وخته چې دی بیرته راوندی کیږي.
**زاویلش وائی**: چې دا خولویه د خوشحالی خبره ده. او دا ملکی د سرې څخه نه
جلا کیږي مگر په وخت کی د بولوا و غولو. او بل په وخت کی د جماع او د ماینځ ره
او کیفیت د نوشتی او هغه شی چې دا نوشته پر کیږي خاص دی په علم پوری د خدای
پر صحیح مذهب ط. **مسئله**: صحیح داده چې د کافر اعمال هم نوشته کیږي
صحیح داده چې هغه قول یا عمل چې په هغه کی ثواب یا عذاب وي. نوشته کیږي
مباحات قولونه یا عملونه نه نوشته کیږي. او بعض علماء وائي چې ټوله نوشته
کیږي. لکن حدیث نبوی تاکید د اول مذهب کوي. هغه دا چې په صحیح حدیث
کښې راغلی دي چې کاتب الحسنات امیر دی پر کاتب السیئات باندې. نو که
مسلمان ښه کار وکړي کاتب الحسنات بر سمدستی یو په لسه ثواب نوشته
کوي. او که مسلمان گناه وکړي نو کاتب الحسنات و کاتب السیئات ته وائي چې





تی اوس مه نوشته کوه. تر ۷ ساعته پوری یا تر ۶ ساعته پوری. گوندی دی
په توبه وکاږی که کبیره گناه وي. او یا به تسبیح ووائي خدای به عفوه ورته
وکړي: او بعض علماء وائي: چې حفظه یه په دی بولې چې سړی د هلاک د
ځای څخه او د پیریانو څخه ساتي.
**مسئله**: تعیین د عدد د حفظه ملکو دی سړی نه کوی. ولې چې په بعض روایاتو
کښې راغې چې حفظه پنځه دي. او بعض وائي چې شپیته ملکی دی. او بعض روایات
داسې هم سته چې یو سل او شپیته دي. په قرآن مبارک کی لفظ د کِرَامًا کَاتِبِیْنَ
راغلی دی. وَلَهٗ مُعَقِّبَاتٌ هم راغلی دی. او رَقِیْبٌ او عَتِیْدٌ هم راغلی دي. دا ټوله
په باره کی د دغو ملکو دی چې د انسانانو سره ورسره دي. نو د دې اختلاف د کبله نفس
پر وجود د ملکو د انسانانو سره ایمان لازم دی. لِثُبُوتِهٖ بِالْقُرْاٰنِ وَالْاَحَادِیْثِ
النبویه واجماع الامة: او د عدد علم یه و خدای جل جلاله ته موکول دئ. اما
نفس ملائکه په اسمانو او په ځمکو کی او پر جنتو او دوزخو مقرر ملکی او
پر نورو کارو د هغو خو هیڅ حساب نه په قرآن مبارک کی او نه په احادیثو کی
مبارکه وو کښې راغلی دی. وَلَا یَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ. ایته کریمه دئ.
د دې والی د ملکو اندازه د دی حدیث څخه معلومیږي چې رب جل وعلا د بیدا کولو
سره د آسمانو سره په څلورم آسمان یوه خونه پر برابر د کعبې شریفی جوړه کړیده
چې هغه معبد د ملائکه وو ده. او په هر شبانه روز کی اویا زره ملکی ورځي
او هغه ملکې چې اول وار ورغلي وي هغو ته بیا تر اوسه نوبت نه دی ور رسیدلې.
او کما قال رسول الله صلی الله علیه وسلم» قال المصنف.

# وَنِيَّةُ الْمَأْمُوْمِ اِمَامَهٗ فِيْ جِهَتِهٖ وَاِنْ حَاذَاهُ نَوَاهُ

او سنت دی نیت کول د مقتدی په سلام کی د امام په جهت کی د امام یعنی
کی امام په راسته اړخ وو په اول سلام کی دی نیت وکړي او کی امام په چپه اړخ کی

کبنی وو، په دوهم سلام کبنی نیت وکړي. قَالَ المُصنفُ

## فِی التَّسلِیمَتَینِ مَعَ القَومِ وَ الحَفَظَةِ وَصَالِحِ الجِنّ

په دواړو سلامونو کبنی دی نیت وکړي په هرصورت کی سره دَقوم او دحفظه وو او دپیریانو نیکانو صالحو
درویش وائی چه په خوله هیڅ وینا نه غواړی بلکه د زړه قصد کافی دی لکن کاشکی
دا د زړه نیت هم چا کولای بلکه زما په عقیده ډیر عوام به په دې
سنت هم خبر نه وي. عوام خو کوی دخوا مو چی دا سُنت هم وو معلوم وی په وخت کی
دسلام بی ود ې نیت ته فکر لا نه وي. ولی چی دا وسنی لوځګو نکو دلو ځو ځخه
حضور د زړه نه وی بلکه دحضوره ځخه خالی وی. اِلَّامَنْ شَآءَاللّٰهُ،،

نو بنه به داوی چی مُلایان دمساجدو دا مسئله په مکرر ډول وخلګوته بیان کی، تا چی
امام دَ تعلیم او مقتدیا نو ته دَفعل ثواب خدائ ورکړي: چی په کتابو کبنی دفقه شریفی
وائی چه ژوندی کول دیوه سنت نبوی چی خلګو پری ایښی وی تر بناء دمدرسی د
علوموددینیه ووافضل دئ. قَالَ المُصنفُ:

## وَنِيَّةُ المُنفَرِدِ المَلَائِكَةَ فَقَط

اوسنت دی نیت کول دیواځی لمونځ کوونکی د ملکو فقط.

**پوه سه:** چی مصنفؒ لفظ دحفظه نه وَوَایه بلکه ملکی یه ذکر کړی چی تر حفظه عامی دی. ولی چی امکان لری چی پرده پسی نور و ملکو اقتداء کړی وی. کی خو هم دی نه وینی. کما مرفی باب الاذان فی الفلات» عاصی وائی چی بناء پر دغه احتمال دا احتمال هم سته چی بعض صالح الجن دی هم په ده پسی اقتداء کړی وي. نو که منفرد په ځای کی د ملکو د مَن اِقتدٰی بی نیت وکړی هغه به ټولو ته شامل وی کذا فی ط.

قَالَ المُصنفُ

## وَخَفضُ الثَّانِيَةِ عَنِ الأُولىٰ

اوسنت دی کبنته یعنی کراروَیل ددوهم ددوهم سلام تر اول سلام. لکن پوه سه چی دا خفض الصوت صِرف دامام دپاره





سنت دی. ولی خو امام دی چی جهر په اذکارو دا انتقالاتو کوی. نه منفرد او نه مقتدی. وقد ذکره هذا فی مَتن منية المصلی خصه الحلبیؒ ایضًا بالامام وذکره السید ایضًا. قَالَ المُصنفُ:

## وَمُقَارَنَتُهُ لِسَلَامِ الإِمَامِ

او سنت دی یوځای والی دَسلام دمقتدی دسلام مه سره دامام. لکن دا مذهب دی دامام اعظمؒ او په نیز د یارانو دی پس له سلام د امام مقتدی سلام گرځوي.

قَالَ المُصنفُ

## وَانتِظَارُ المَسبُوقِ فِرَاغَ الإِمَامِ

اوسنت دی چی انتظار به کوی هغه مقتدی چی اول دَلمانځه دامام ځنډی تیر سوی وي. دامام د دواړو خوا وو سلام ته. ولی چی پر مقتدی خو متابعت دامام لازم دی په سجده کبنی هم نو چی امام دواړو خوا وو نه سلام وګرځاوه مقتدی ته به معلومه سی چی پر امام سجده سهوه نسته. نو که مقتدی د مخه تر فراغ دامام وَلاړ سو دا کار یه مکروه دی تحریمي. ط"

**پُوه سَه:** چی امام طحطاویؒ یو خو بیخی نادری مسئلی راوړي دی چی په هغو کی مقتدی نه دامام تر اول سلام وروسته دَستی وَلاړ مباح دَه. هغه دا چی مقتدی بیریږی کرزه دَامام دمکمل فِراغ انتظار وکړم. دسحار د لمانځه وخت به راسر تیر سی. او یا د جُمعی د لمانځه یا د اختر د لمانځه وخت به تیر سی. او یا مقتدی معذوره وي بیریږی چی وخت به ووزی او زما او دس به مات سی.

قَالَ المُصنفُ

# فَصْلٌ وَمِنْ اٰدَابِهَا

دا فصل دی د آدابو ځخه د لمانځه داو روسته را تلونکی افعال.،، درویش وائی سه
از خدا خواهیم توفیق ادب... بی ادب محروم ماند از فضل رب. **فَائِدَه:** مصنف پر آداب

باندی مِنْ د تبعیض داخل کړي اشاره ودې نه ده چې مصنفؒ تول اداب لمانځه
نه دی بیان کړي اشاره هم دا غرده. مثلاً په مسجد کی به د لمانځه د جماعت انتظار کوي.
او پس له لمانځه دا اذکار هم مستحب دي. استغفار درې واره. خصوصاً سید الاستغفار
اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْقَیُّوْمُ وَاَتُوْبُ اِلَیْهِ. ایة الکرسی یو وار
قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ یو وار. سُبْحَانَ اللّٰهِ ۳۳ واره. الحَمْدُ لِلّٰهِ واره. اَللّٰهُ اَکْبَرُ
۳۳ واره. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰی
کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ. یو وار» در مختار»
او بل ادب لاسونه دی پرته نګنو نه نسی په وخت کی دولاړیدو. که ورته تکلیف
نه وو لکه سپین ږیری. یا مریض. او بل ادب په ما بین کی د الحَمْدُ لِلّٰهِ او سورة
بِسْمِ اللّٰه ویل. او بل الحَمْدُ لِلّٰه ویل دی په اخیرو رکعتو کی چې هغه تر تسبیح وغیره
افضله ده» ط»
**پوهسه:** چې مصنفؒ په مراقی کښی وائي. چې ادب هغه کار دی چې آنحضرت
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم یو وار. یا دوه واره. یا درې واره. کړی وی. حاصل دا چې ټینګ
والی په نه وی پر کړي. لکه تسبیحات د رکوع او سجدی ۵ واره. یا او وواره یا بالا.
او یا په لمانځه کی تر قرائت مسنونه بالاویل. او مندوب او مستحب هم هغه ته
وائي. په نیږدا صولیینو. او ادب په لغت کی ښو اخلاقو ته وائي. لکه حلم، تواضع،
قلة الغضب، قلة الکلام، عدم اشتغال په ما لا یعنی سره او نور، او په عرف حادث
کی ادب تول علوم عربیه وو ته وائي لکه نحو، صرف، معانی، بیان، بدیع. او نور.
د ادب حکم دا دی چې په نه کولو کی ګناه نسته او نه ملامتیا شته. او نه سره نشی
بلکه کول یې افضل دی او ثواب لري. او ادب د پاره د تکمیل د سنت دی لکه سنت
چې د پاره د اکمال د واجب دی او واجب د پاره د ښه والي د فرض و دی» لکن دا خبره د
اکما لا تو تول بناء پر غالب ده. فلا یرد ما یتوهم من عدم الاطراد فی جمیع الاداب
والسنن والواجبات». فافهم»





قال المصنفؒ **اِخْرَاجُ الرَّجُلِ کَفَّیْهِ مِنْ کُمَّیْهِ عِنْدَ التَّکْبِیْرِ**
او بل دا دا بو ښخه د لمانځه دی راوستل د نرخپل ورغوی د لوستونړو ښځه په وخت
کی د اَللّٰهُ اَکْبَرُ ویلو **پوهسه:** چې مراد د تکبیر ښخه اول تکبیر دی
د شروع د لمانځه. ولې چې دا ایستل د کبر ښخه لیری والی او تواضع ته نږدې والی دی
مګر که ضرورت وو چې ډیر یخ وو.
**مسئله:** مصنفؒ په مراقی کی خو لکه ما چې ووئیله د تکبیر افتتاح مراد کړی دی
لکن په مجمع الانهر کی وائي چې په ټولو حالاتو کی د لمانځه باید نر ورغوي
تر لوستونړو د باندی وي. **او درویش وائي** چې مناسب د تواضع سره هم دغه
کار دی. او ښځه دی ورغوی نه راباسی که څه هم عورت نه دی د دے سببه چې بنا ید
بازو ګان یې چې عورت دی ښکاره نه سي. لکن دا د حرة ښځی د پاره. او مینځه په دی
باره کی لکه نر ده» ط». قَالَ الْمُصَنِّفُؒ
**وَنَظَرُ الْمُصَلِّیْ اِلٰی مَوْضِعِ سُجُوْدِهٖ قَائِمًا** او بل ادب د لمانځه دا دی چې لمونځ
کوونکی به وځای ته د سجدی ګوري په ولاړه کی. تا چې خشوع پر ځای سی. او یوه
خو بل خوا ته نه ګوری چې شغل ته د لمانځه یې تاوان ور سیږي. او که سړي په
ناستی لمونځ کاوه هم به ځای ته د سجدی ګوری چې دا ناسته په حکم کی د ولاړي ده
قال المصنفؒ **وَاِلٰی ظَاهِرِ الْقَدَمِ رَاکِعًا وَاِلٰی اَرْنَبَةِ اَنْفِهٖ سَاجِدًا**
او بل ادب دا دی چې وظاهر ته د پښو دی ګوري په رکوع کی. لکن په ناستی لمونځ کوونکی
دا حکم نسته. او و نرمی ته د پزی دی ګوري په سجده کی» قَالَ المصنفؒ.
**وَاِلٰی حِجْرِهٖ جَالِسًا** او خپل غیږ ته دی ګوري په ناسته کی یعنی هغه
ځای ته چې د غیږ پر برابر ده.

سوال: که څوک په کعبه شریفه کی یعنی حرم شریف کی لمونځ کاوه. نو کعبی ته کتل به دی او که خپل ځای ته. امام طحطاوی وائی. ولو کان مشاهدا للکعبة علی المذهب.

پوښتنه: چی ددی مذکوره ادابو تولو مقصد دا دی چی دسړی لمونځ پر احسان سی چنانچه په یوه اوږده حدیث کی چی بخاری او مسلم یې روایت کړی دی دآنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه چی پوښتنه وسوه چی ما الاحسان. علیه السلام دا س جواب ورکړی. الاحسان ان تعبد الله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک. ترجمه: داحسان دا دی چی ته به عبادت کوی دخدای جل شانه لکه ته چی خدای وینی او که ته نه وینی دی خو دی وینی. مطلب دا چی په لمانځه کی تول توجه وخدای ته وي: قال المصنفؒ

وَاِلٰی مَنْکِبَیْنِ مُسْلِمًا او ببل ادب دا دی چی و اوږوته به گوري چی سلام اړوي **پوښتنه**: دا تولی کتنی چی ذکر سوی داخو په هغه ځای کی دی چی په سترگو وینی نو ړوند به څه کوي!

**جواب**: ړوند په اندازه دسترگو. وفوق الذکر ځایو ته متوجه وي. قال

وَدَفْعُ السُّعَالِ مَا اسْتَطَاعَ او دفع د توخی دی کوي ترهغه ځایه چی وس یې وي. او که توخي مجبور کړی وو لکه په بعض حالاتو کښی د نر کام بیا دی دفع نه کوی ولی په دفع کی د توخی د لمانځه څخه فلی اوږي. **مسئله**: که سړی امام وو او قرائت یې په جهر وو نو په ستونی کی بلغم بیدا سو چی قرائت یې نه سوای ویلای او یا یې جهرته تاوان رساوه. نو دی ... ... بلغم دی دفع کړي.

**مسئله** ... ضرورت توخی لکه بعض چی ... چی عادت لری او یا غاړی تازه کول ... فاسده وی، کما فی المراقی. **مسئله**: دارنږمی په لمانځه کی حکم دا دی چی ... دی دفع به دی وکړی چی ... شونډان به غابنو ټینگ کړی او که په هغه دفع نه کیده بیا به غابنو وه. بیا دی لاس یا لوستوڼی پرخوله ونسی. او که په غابنو یې دفع کیدای سوای بیا لاس یا لوستوڼی پرخوله نیول مکروه دی، کذا نقل عن الامام الاعظمؒ خلاصه، وهذا معنی قول المصؒ

وَكَظْمُ فَمِهٖ عِنْدَ التَّثَاؤُبِ او خوله دی تولوی په وخت کی دارنږمی

وَالْقِيَامُ حِيْنَ قِيْلَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ او ولاړیږی دی یعنی امام او قوم تول په نیږدې هغه کلمه چی حَیَّ عَلَی الْفَلَاح ... داخو که امام په محراب کی وو، او که امام به حجره کی وو نو قوم دی ولاړ سی ترڅو چی امام راځی. ددی سببه دا دی چی اقامت کوونکی امر وکړی په ځانونو سمولو مره نو امام او قوم باید قبلولو نه وکړی. او حسن بن الزیادؒ او امام زفرؒ وائی چی پر حَیَّ عَلَی الصَّلٰوة دی ولاړیږی ده سکب الانهر والاحواله وه ابن الکمال ته کړیده او هغه حواله ورڅخه ته کړیده: قال المصنفؒ:

وَشُرُوْعُ الْاِمَامِ مُذْ قِيْلَ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ او شروع دی کوی امام یعنی په لمانځه کی د هغه وخت څخه چی اقامت کوونکی ووائی» قَدْ قَامَتْ آه دا مذهب دی د امام اعظمؒ او امام محمدؒ او امام ابویوسفؒ وائی چی تول اقامت خلاص سی بیا دی شروع په لمانځه کوی. او که شروع د لمانځه تر تمامیدو د اقامت وځنډول په اتفاق سره پروا نه لري ط. **مسئله**: که امام د مسجد د پاسه دخوا څخه راغلی په هره صف چی راځی هغه به ولاړیږی. **مسئله**، او که د مخ دخوا راغلی څرنگه چی مقتدیانو دی ولیدی تول به ولاړیږی. **مسئله**: که مؤذن په اقامت شروع کړې وه او یو سړی مسجد ته داخل سو کښیدینی به او ولاړی به نه دریږی، ده اقامت تر پوره کیدو پوری چی دا کار مکروه دی مض قد، ط، **پوښتنه**: چی مذهب دائمه ثلاثه ترمونږ دا دی چی داختتام سره داقامت دی سمدستی امام تکبیر تحریمه وائی او شروع دی په لمانځه کوي. لکن دا اتصال مستحب دی، نه ټینگ سنت دی، او نه واجب

دی لکه بعض فقهاء چې وائي. په شرح کی دمجمع وائی وهوالاصح او ط وائی وهواعدل المذاهب وهوالحق " ن"

**پوښتنه**: که یو سړی دوه رکعته سنت وکړی پس له اقامت حکم یه څه دی؟ جواب، ګناه ورباندی نشته" **پوښتنه**: که اقامت خلاص سو او امام بنه ګړی وروسته راغلی اقامت به راګرځوی که څنګه؟ **جواب** نه دی راګرځوی. منح بزازیه په دلیل د هغه حدیث چې بخاری یه د انس رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چې یو وخت د لمانځه اقامت خلاص سو او نبی علیه الصلوٰة والسلام ته یو سړی په څنګ کښی ودرېدی لیعنی د یو کار د پاره نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم د لمانځه د شروع څخه بند کړی. یو ګړی نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم محراب ته راغلی ز وشروع په لمانځه وکړه یعنی اقامت یه نه راوګرځاوه. قال المصنفؒ

# فَصلٌ فِی کَیفِیّةِ تَرکِیبِ اَفعَالِ الصَّلوٰةِ

ترجمه، په بیان د ډول دیوځای کولو د افعالو د لمانځه، **پوښتنه**: چې په خودی نسخه کی، د نورالایضاح لفظ د افعال نشته، لکن په هغه نسخه د نورالایضاح کی چې په مراقی الفلاح کښی موجوده ده په هغی کښی لفظ د افعال سته، نو څه وائې چې مراد د افعالو څخه عامه معنیٰ ده چې اقوالو ته هم شامله سی. لهذا اصلی نسخه د نورالایضاح ډېره زیباده چې توجیه ته د ضرورت نه لري. **پوښتنه**: چې دا کیفیت د ترکیب چې مصنف بیان کړی دی دسره تر پایه پوری دی. دروېش وائې چې دا ډېر په زړه پوری فصل دی ګویا د ټوله ما قبل اجمال دی" او د متفرقو افعالو او اقوالو یو ځای بیول دي. قال المصنفؒ

**اِذَا اَرَادَ الرَّجُلُ الدُّخُولَ فِی الصَّلوٰةِ اَخرَجَ کَفَّیهِ عَن کُمَّیهِ** او څه وخت چې اراده وکړي سړی د داخلېدو





یعنی شروع کولو د لمانځه هر لمونځ چې وی که فرضی وی او که واجب یا سنت یا نفل وی، راو دی باسی څپرې د لوستونړو څخه د څه تیره سوه چې ښځه بی نه راباسی او د غه رنګ په وخت کی د ضرورت چې نی راو باسی پروا نه لري. قال المصنفؒ

**ثُمَّ رَفَعَهُمَا اِلیٰ حِذَاءِ اُذُنَیهِ** او بیا دی پورته کړي تر برابر پوری د غوږو، **پوښته**: چې په عمومی کتابو کښی د فقهی داسی وائی چې بتی ګوتی په برابری سی د نرمیوسره د غوږو، او مصنفؒ په مراقی کی د متن چې مجمل وو موافق د عمومی کتابو سره تفسیر کړی. **تنبیه**: پوښته چې باطن د اوړغوو بی قبلی و خواته وی او ګوتی به جګی نسی" او پرخپل حال دی پرېږدي. نه دی ډېری جوتوی او نه بی ډېری خلاصه وي. او که سړی عذر درلودی لاسونه یه دومره نه سوای پورته کولای نو تر هغه ځایه چې طاقت وی پورته دی کړي. لکن سر راکښته کول مکروه دي. او د ښځی هم دغه حال دی. لکن حره ښځه بی تر برابره د اوږو پورته کوي.

**فائده**: په هیڅ کتاب کی د فقهی شریفی داسی نه دی راغلی چې بتی ګوتی به د نرمی سره د غوږو مسه کوي. مګر په قاضیخان او فتاوای ظهیریه کی په نقل د قهستانی د مسه کولو لفظ راغلی دی. او نقایه والا د هغه دلیل داوائي چې محاذات و بنه تحقیق ته ورسیږي. لکن دا دلیل دومره ثبوت نه دی ولی چې د محاذات په تحقیق بیله مسه کولو هر سړی پوهیږي. او مسه کول په هیڅ حدیث کی هم نه دی راغلی، لهذا د عمومی فقهی د کتابو عبارت ډېر زیبا دی.

**حِکمَتْ دَرَفعُ الیَدَینِ** څوک وائی اشاره ده و توحید الهی ته. او څوک وائي چې اشاره ده و دې ته چې ما امور د دنیا تر شا وغورځول او یک لخته و لمانځه ته متوجه سوم، لکن فی دلالة رفع الیدین علی الاشارتین خفاءٌ"، او څوک وائی د دی دپاره

چې ټول اعضاء یې وقبلې ته مخامخ سي. او بدر الدین العینی الحنفیؒ په شرح کښې د بخاری د عبد الله بن عمرؓ څخه داسې روایت کړی دی چې پورته کول د لاسو تر شانه د لمانځه دی. او دغه ګوتې به پورته کیدو سره لشلکې ور کول کیږي.

قَالَ **ثُمَّ كَبَّرَ بِلَا مَدٍّ** وروسته دی الله اکبر ووائی بیله مده

**فائده**: د عبارت څخه د مصنفؒ داسې واضح معلومیږي چې لاس پورته کول به د مخه تر اَللهُ اَکبَر وي. ولې ده وویل ثُمَّ کَبَّرَ، او مختار د صاحب الهدایه هم دا طریقه ده، او په قدوری کې وائی: يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيرِ، لاسونه دی د تکبیر سره یوځای پورته کوی. وهو المروی عن ابی یوسف والطحاوی، لکن اکثر مشائخ او له رایه اصح بولي: ولې چې حکمت د رفع الیدین او الله اکبر ویلو دا دی چې په پورته کولو کې د لاسو اشاره ده ونفی ته د کبریا د ماسوا څخه د خدای او په اَللهُ اَکبَر اثبات د کبریا دی وخدای ته او نفی خو تر اثبات د مخه وي لکه: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ او بعض فقهاءؒ وائي چې تکبیر دی تر رفع الیدین د مخه وائي. لکن ملایان باید په دې درو کیفیتو ډیر جنجال ونه کړي. ولې چې بحر رائق وائي چې دغه دری سره کیفیتونه د علیه السلام څخه مروي دي.

البته اول چې کوم کیفیت دی هغه دی مصنفؒ بیان کړی دی. او ترهغه وروسته کیفیت د قدوری دی. او اخیر کیفیت تر ټولو مرجوع دی،،

**دمد بیان** **پوهسه**: چې مد په اول کې د اَللهُ یعنې په اول همزه کې مانع دی د شروع په لمانځه کې او کې د لمانځه په مابین کښې ووائی لمونځ یې فاسدیږي. ولې چې په دې صورت کې د استفهام نقشه راځي او کې په قصد څوك ووائي کافر کیږي په سبب د دې چې په کبریا کې د خدای به شك راوستی. او کې په مابین الف کې مد وکړی نو که دوه حرکته قدر وو د لځو د الف مد طبعی دی پروا نه لري بلکه صواب هم دی. او که تر دوه حرکته بالا وو.





دا کښ والي نو مکروه دی لکن لمونځ نه په فاسدیږي. قاله ابن امیر الحاج او په سراج کې وائي چې خلاف الاولیٰ دی. فالحاصل ان الکراهة تنزیهیة،

او کې اشباع او مد په حرکت کې د هاء د الله وکړي، نو دا خطاء من حیث اللغة ده او لمونځ نه په فاسدیږي. او یا لفظ د ها ساکن ووائی د لغت د لاري خو خطاء ده اما لمونځ نه فاسدیږي. او کې مد د اکبر په اول کښې وکړي شروع په لمانځه نه صحیح کیږي. او کې په مابین کې د لمانځه دغه مد وکړي لمونځ یې فاسد سو. او که دی مد د باء په زور کې وکړي یعنې اکبار بعض فقهاء وائي چې لمونځ یې فاسد سو. ولې چې اکبار جمع د کبر ده چې هغه طبلې ته وائي. او د اولا د څخه د شیطان دیوه نوم دی» ط، او په قنیه کې وائي لمونځ نه په فاسدیږي ولې دا اشباع د حرکت ده. او لعض اقوام د عربي ژبو دوی اشباع عادت ده. لکن زیلعیؒ وائي چې اشباع د حرکاتو صرف په اشعارو کې روا ده یعنې د سببه څخه د برابرو لو د بیت پر بحر باندی کما تقرر فی علم العروض وقت التقطیع للابیات،

**مسئله**: که مؤذن اکبار ووائي حکم یې څه دی! **جواب**: ر اګر څوك د اذان خوبنه غواړي ولې چې په اذان کې فراخي ده، قاله فی السراج، او کې په قصد ووائي او معنیٰ یې هم مراد وي چې ورباندی تیره سوه کافر کیږي. او کې معنیٰ نه وه قصد کافر کیږي خو نه ویستغفر ویتوب د الله څخه دی عفوه وغواړي او توبه دی وکاږي. مض ط، **مسئله**: کې مد وکړي په لخیر کې د اکبر د حرکت. فقیل تفسد صلوته لمونځ یې فاسد سو لیعنی کرد لمانځه په مابین کې وو. او پر دی مذهب که د لمانځه په اول کې دا مد وکړي شروع په لمانځه یې نه ده صحیح، او عنایه والا وائي چې لمونځ دی سړي نه په فاسدیږي او شروع په صحیح ده.

**فَائِدَةٌ ضَرُورِيَّةٌ** که یو لمونځ کوونکی او یا قسم اخستونکی او یا د حیوان ذبح کوونکی هغه مد چې ده مابین پر لام د ی د اَللهُ پر لیښو لیعنې اَللهُ اَکبَر

په ووایه او یا دغو درو کسانو لفظ د هاء د الله حذف کړی یعنی اَللّواکبر په
ووایه، امام طحطاوی وائی چې په صحت دَشروع د لمانځه اودَ قسم په انعقاد کی
اودغه رنګه د مذبوحې په حَلال والې کی اختلاف سته، نو نه دی پرېښ دی د
جهته د احتیاط، او قاضی بیضاوی په خپل تفسیر کی پر خلاف ده هغه دی
یعنی نه ئی شروع په لمانځه صحیح کیږی. او نه ئی قسم غوټه کیږی، او نه
ذبیحه حَلال ده، لکن درو لیش وائی دَ جهته ځنه دعموم ابتلاء حکم قطعی دی
مفتی نه کوی قاله السید ط، قَالَ المُصنفُ

## نَاوِيًا اِفْتِتَاحَ الصَّلوٰة

یعنی په تکبیر ویلو سره بې نیت دَشروع د لمانځه وی، دا شرط د صحت د تکبیر دی

**پوه سه**: چې لمونځ کوونکی شارع ګرځی په لمانځه کی په نیت سره د الله اکبر
او نه یوازی په تکبیر شارع ګرځی او نه یوازی په نیت سره بلکه په دواړو سره شارع
ګرځی. او روا دی تقدیم د نیت پر تکبیر په دی شرط چې فصل دی په اجنبی فعل
سره نه وی کړی. **مسئَله**: پر ګونګی باندی ښوروَل د ژبې لازم نه دی نه
د الله اکبر په وخت کی او نه د قرائت په وخت کی وهوالصحیح. ولی چې داصل
واجب ځنه خودی عاجزه دی نو بَل شیٔ پر لازمول چې تحریك اللسان دی دلیل
غواړی، در ط، قَالَ المصنفُ:

## وَيَصِحُّ الشُّرُوعُ بِكُلِّ ذِكْرٍخَالِصٍ لِلّٰهِ تَعَالٰی

او صحیح ده شروع د لمانځه
په هر ذکر سره چې خالِص حق د خدای پاك وی. یعنی د مقصد ځنه د بنده خالی وی
نو په اَللّهمّ اغفِرلِیْ سره شروع نه ده رَوَا، لانهٗ لِطَلَبِ المغفرة، او نه په وَلاحول
وَلَا قوة اِلا بالله سره. ولی دا کلمه دَپاره د طلب د حول او قوت دی د خدای ځنه،
او نه په لبِسْمِ الله سره ولی چې بِسْمِ الله خو د پاره د تبرك یعنی طلب دَبرکت
او یا د پاره د طلب د کُمک ده د خدای ځنه،





**مسئَله**: شروع دَ لمانځه په غیر د الله اکبر وقادر سړی ته مکروه تحریمی دی
م، ط، **فائِدَه**: دپاره د شروع په ماسوا د اَللّهُ اکبر دا شرط دی چې
هغه ماسوا به هم تام جمله وی لکه اَللّهُ اکبَرُ، قَالَ المراقی وهوظاهرالروایة
وهوالمختار، در، وهوالاشبه، ابن امیرحاج.
مثال د ذکر خالص چې جمله تامه هم وی، لَااِلٰهَ اِلا اللّهُ، اَلحَمْدُ لِلّه، سُبْحَانَ اللّهِ،
سره د فعل محذوف سُبْحَانَ الله هم جمله تامه ده. او په روایت کی د حسن د ابی حنیفه
ځنه په مفرد نامه سره د خدای هم شروع صحیح ده خلافاً لمحمدؒ، در، قَالَ المُصنفُ

## وَبِالْفَارِسِيَّةِ

او صحیح ده شروع په فارسی ژبه، بلکه په ټولو ژبو سره
نو تخصیص د فارسی چې مصنف کړی دی دپاره د احتراز د نورو ژبو ځنه نه دی بلکه
د دی سَببه دی چې اقرب د ژبو وعربی ته په فصاحت او بَلاغت کی فارسی ژبه
ده، او چا چې سبب د تخصیص دا ګنړلی دی چې حدیث شریف راغلی دی، لِسان اهلِ
الجنة العربیة والفارسیة الدریة، غلط دی ولی چې مُلا علی قاری دا حدیث موضوعی
ګنړلی دَی. نو ابوسعید البَرادعی په دی دَلیل وَیلو کښی سهوه دی. قَالَ المصنفُ

## اِنْ عَجَزَ عَنِ الْعَرَبِيَّةِ وَاِنْ قَدَرَ لَا يَصِحُّ شُرُوعُهٗ

اوهغه چا ته شروع په فارسی رَوَا ده چې دی عاجز وی د عربی تکبیر وَیلو ځنه، او که سړی
قادر وی پر عربی عبارت

## بِالْفَارِسِيَّةِ وَلَا قِرَائَتُهٗ بِهَا فِی الْاَصَحِّ

نو بیا شروع په فارسی
ژبه نه ده صحیح. او نه قرائت د قرآن په لمانځه کی په فارسی ژبه رَوَا دی په اصح
مذهب کی چې مذهب د یارانو دی. چې امام اعظمؒ هم وهغه ته رجوع کړی ده، کمافی
کتب الفتاوٰی، والشروح فی الفقه، درو لیش وائی چې شروع په لمانځه په غیر عربی
ژبه د امام اعظمؒ په نیز صحیح ده قادر ته پر عربی ژبه لکن سره د کراهت تحریمی کامل،

اوبعض کتابونه وائي چي په مسئله کی دشروع په غیرعربي یارانوُ وقول تہ دامام اعظمؒ رجوع کړی ده، ولي چي شروع دلمانځه په ذکرخالص پوری اړه لری اوذکرخالص په هره ژبه کیدای سی.

اوقرائت خو په قران مبارك پوري اړه لری اوقران مبارك خونوم دی دنظم اومعنی دواړو په اتفاق داصولیونو. نو په فارسي ژبه کښي مثلاً کرخه هم معنا دقران مبارك اداء کیږی خونظم یې پاتیږی. نو ددی کبله امام اعظمؒ چي اول یې قرائت په فارسي ژبه رواباله وقول تہ دصاحبینوؒ یعني ابویوسفؒ اومحمدؒ رجوع وکړه: درویش وائي چي پس له ثبوت دوجوع دامام اعظمؒ وقول تہ دیارانوؒ هغه توجیهاتو تہ چي صاحب دنورالانوار اوبعض نوروکتابونو دپاره دتوجیه دقرائت په فارسي په نیزد امام اعظمؒ ذکرکړي دی هیڅ ضرورت نسته، بلکه صحیح هم نه دی. ولی داتوجیهات خوپرامام اعظمؒ دالازموی چي دی قرائت په فارسی ژبه وقادرته پرعربي ژبه روابولی. ولیس کذالک کمامرّ،

**سبحانه خبره** پوره سه چي تلبیه په حج کی اوسلام گرځول دلمانځه څخه او قسمونه، اوپه ذبیحه باندی ذکرو قادرته پرعربي به نورو ژبو روادی په اتفاق سره. قال المصنفؒ

## ثُمَّ وَضَعَ يَمِيْنَهُ عَلٰى يَسَارِهِ تَحْتَ سُرَّتِهِ عَقِيْبَ التَّحْرِيْمَةِ

بیادی نوکښیږدی راسته لاس پرخپل چپه لاس باندی لاندی ي ترنامه

**بِلَامُهْلَةٍ** وروسته تراَللهُ اَکبر بیله ځنډه.

**اختلاف الائمة**: دحضرت الامام الاعظمؒ اودحضرت الامام ابویوسفؒ په نیز لاس ایښودل یوپربل سنت دولاړی دی بلکه دوی دوهٔ وائي چي ایښودل دلاسویوپربل سنت دی په هری هغی ولاړی کی چي په هغی کښي ذکرمسنون وي. لکه په حال کی دسُبحانَ اللهِ آه اوپه





حال کی ددعاء قنوت اودجنازي په لمانځه کی. اوچونکه په مابین کی دتکبیروداخترو ذکرمسنون نسته نوځکه دِ لاسونه ایله پریږدی. اوپه نیزد امام محمدؒ ایښوول دلاسوسنت دی دقرائت، نوپه حال کی دسُبحانَكَ اللّٰهُمَّ دی لاسونه کښته ایله نسی، چي الحمد لله شروع سوه بیادی لاسونه یوپربل باندی کښیږدی: والفتوی علی الاول"

**فائده**: مصنفؒ کیفیت دایښوولو دلاسو یوپربل نه کړی ذکرکړدی کبله چي په ظاهرالروایه کښي نه دی راغلی، لکن دفقهي شریفي په کتابو کښي په بعضو کی لفظ د "وضع" راغلی دی لکه په عبارت کی دمصنفؒ اونوروکتابوهم چي دوضع معنا نفس ایښول ده. اوپه لعض کتابوکی لفظ د اخذ راغلی دی چي دهغه معنا نیول ده" بحرائق وائي چي مختار داده چي راسته ورغوی دی دچپه لاس پرشاه داسی کښیږدی چي بټه گوته اوکشنی گوته دی دچپه لاس اُلغه کړي اودري نوري گوتي دی دراسته لاس پرچپه باندی کښیږدی. بحرائق دادلیل وائي چي نیول دلاس وضع لره مستلزم دی لیعني چي چپه لاس په راسته لاس ونیول سته لاس پرچپه هم سو: اوایښول نیولو لره نه دی مستلزم نوپه مختار کیفیت کی عمل په وضع اواخذ دواړوسره راځی، فافهم، قال المصنفؒ

## مُسْتَفْتِحًا وَهُوَ اَنْ يَّقُوْلَ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ

په داسی حال کی چي شروع کوي داسی دی وائي: پاکی ده تالره دهرعیب اونقصان نه څخه یاالله اوسره دحمده ستا یعني پرصفات کمالیه ووستا،

## وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ

اومبارك دی ستا نوم یعني توله اسماء الحسنیٰ ستا، او لویه ده ستا غِنیٰ چي دهرمخلوق څخه بې پروائي. اویالوړدی ستا قدرت چي پرهرشئ ممکن قادرئی: **وَلَا اِلٰهَ غَيْرُكَ** اونسته په حقه سره معبود بیله تا

**مسئله**: که یو سړی داسی هم ووائی ... وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ، ځوك دی نه منع كوی. او كه ځوك نه ووائی ځوك دی په ویلو نه امر كوی. ط، **پوښتنه**: چې سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ تركیب نحوی په لویو كتابونو كی مذكور دی چې په دی سبب چې د مبتدیانو د فهمه سره لائق نه وو نو ما پرېښو، او بعض فقهاء وائی چې واو د "وَبِحَمْدِكَ" دپاره د عطف دی او متعلق د باء محذوف دی" ای أَبْتَدِئُ بِحَمْدِكَ" او دا جمله عطف ده په هغه عامل محذوف ده سُبْحَانَكَ ای أُسَبِّحُكَ سُبْحَانَكَ ٥ او د حضرت الامام الاعظمؒ نه روایت دی كه ځوك واو نه ووائی یعنی سُبْحَانَ اللّٰهُمَّ بِحَمْدِكَ" هم روا دی لكن په دی تقدیر باء د وَ بِحَمْدِكَ دپاره د ملابست ده ای أُسَبِّحُكَ مُتَلَبِّسًا بِحَمْدِكَ" لكن ویل د واو اولیٰ دی. لان فیه زیادة المعنیٰ كما لا یخفیٰ" مَرَاقی الفلاح د سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ معنا په عربی ښائسته الفاظو داسی بیان كړی ده: چې محذوفو الفاظو نحوی ووتې هم اشاره كړیده:

نَزَّهْتُكَ عَنْ صِفَاتِ النَّقْصِ بِالتَّسْبِيحِ. وَ اَثْبَتُّ لَكَ صِفَاتَ الْكَمَالِ بِالتَّحْمِيدِ وَتَبَارَكَ ای دَامَ وَ ثَبَتَ وَ تَنَزَّهَ اِسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ ای اِرْتَفَعَ سُلْطَانُكَ وَعَظَمَتُكَ وَغِنَاءُكَ بِمَكَانَتِكَ وَلَا اِلٰهَ غَيْرُكَ فِي الْوُجُودِ مَعْبُودٌ بِحَقٍّ" او د دی ښائسته الفاظو معنا په شرح كی د طحطاویؒ وګوره" قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَيَسْتَفْتِحُ كُلُّ مُصَلٍّ** او سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ به هر لمونځ كوونكی وائی كه فرضی لمونځ كوی. او كه نفلی، او كه امام وی او كه مقتدی وی، كه منفرد، كه جهری لمونځ وی او كه سرّی لمونځ وی. لكن تر هغو پورې چې امام په قرائت شروع نه وی كړی. او كه امام قرائت شروع كړی وو بیا دی مقتدی سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ نه وائی.

**پوښتنه**: په جهری لمانځه كی خو امام شروع په قرائت معلومیږی په سری لمانځه كی خو مقتدی ته شروع د امام په قرائت نه وی معلومیږی. **جواب**: په سری لمانځه كی اعتبار ظن غالب ته د مقتدی دئ په قرائت نو سره:





**مسئله**: كه سړی امام ته په ركوع كی ور سیدی نو كه د سړی دا خیال وُ چې زه سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ به ولاړی وو وایم د امام سره لی ركوع هم نیولای شم نو سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ په تلوار تلوار دی وه وائی. او بیا دی د امام سره په ركوع كی ځان شریك كړی. او كه خیال داوو چې د امام ركوع به ځنی تیریږی. بیا دی سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ نه وائی. كذا فی النهر" او بعض علماء وائی چې په سری لمانځه كی دی مقتدی سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وائی والاول هو المعتمد

قَالَ الْمُصَنِّفُ **ثُمَّ يَتَعَوَّذُ سِرًّا لِلْقِرَاءَةِ** بیا دی أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ووائی د پاره د شروع په قرائت كنی

ترجمه د اعوذ باللّٰه ٥ زه پناه او ساتنه غواړم په خدائ سره د هغه شیطان نه چې رانده او شړلی د خدائ د دربار نه دی. ولی شیطان دا غواړی چې په دی ښائسته عبادت كی چې لمونځ دی ستا زړه د حضور نه د خدائ بلی خواته مصروف كړی. او ستا د غه لمونځ د احسان د لاری نه واړه وی. كما ورد فی الحدیث الطویل الذی رواه البخاری و مسلم حین سئال رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم: عن الاحسان فقال أَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهُ يَرَاكَ كما مر مع الترجمة: نو شیطان كه څه هم ته نه وینی لكن خدائ پاك خو یې وینی. او دده په دغه فساد هم خبر دی نو ته هغه ذات پاك ته پناه وړه چې دهغه لعین د وسوسو نه دی وساتی.

**مسئله**: أَعُوْذُ بِاللّٰهِ به تر قرائت د مخه وائی. او بعض اصحاب الظواهر او امام نخعیؒ او ابن سیرینؒ وائی چې أَعُوْذُ بِاللّٰهِ به تر قرائت وروسته وائی. دوی د دلیل وائی چې خدای پاك داسی ویلی دی" وَاِذَا قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ٥ او كلمه د فا خو د پاره د تعقیب او وروسته والی ده په اتفاق د اهل اللغة والنحو لكن دا د دلیل د دوی فاسد دئ. ولی چې د دی ایت معنا نوله مفسرینؒ داسی كړیده ٥ اِذَا اَرَدْتَّ قِرَاءَةَ الْقُرْاٰنِ فَاسْتَعِذْ ٥ او د لیل د دی مجاز دادی چې نوله صحابه رض وو أَعُوْذُ بِاللّٰهِ تر قرائت د مخه ویله او قولاً چې به چا پوښتنه ځندی وكړه. جواب به یې په تقدیم د أَعُوْذُ بِاللّٰهِ وركاوه. او بل جواب دادی چې كلمه د فاء په دی ایت مبارك كی د پاره د تعقیب نه ده بلكه

پاره دحال ده لکه چې نحاة دفا په معنیٰ کی دحالیت معنا م راوړې ده.. کما یُقال اذاقرئت فقل بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ نومعنا دایت مبارکه داسی ده، "چې ته قرائت دقران پاره کوې په داسی حال کی وکړوچې تا دی پناه په خدای ج حاصله کړي وي"، یعنی أَعُوذُ بِاللهِ دی وئیلی وی. نو بیا ته اعوذ بالله تر قرائت دمخه سوه» قَالَ الْمُصَنِّفُ

فَيَأْتِيْ بِهِ الْمَسْبُوْقُ پس را تګ دی کوي یعنی وائی به أَعُوذ بِاللهِ هغه سړی چې اول د لمانځه دامام څخه تیر سوی وی»، یعنی هغه وخت چې دی قضاء راوړی دتیر لمانځه لپاره سُبۡحَانَ آه وجه د تفریع داده چې چونکه مسبوق اول سُبۡحَانَكَ آه او أَعُوذُ بِاللهِ نه وئیله په سبب ددې چې ده لره هغه وقت قراءت نه وو په قضا ئې کښتو کی ده ته قرائت پیدا سونو ځکه أَعُوذُ بِاللهِ به وائی، لکن ته سُبۡحَانَكَ اللّٰهُمَّ وروسته کی سُبۡحَانَكَ اللّٰهُمَّ په اول کی د اقتداء نه وه وئیلی په سبب دشروع د امام په قرائت سره. بعض علماء وائی چې مسبوق دی سُبۡحَانَكَ اللّٰهُمَّ په حال کی د سکتا تود امام وائی. او أَعُوذُ بِاللهِ دی په قضائی کی وائی.

**مسئله:** مقتدی به أَعُوذُ بِاللهِ په رکوع کی نه وائی او تکبیرونه د اختر د لمانځه که څندی تیر سوی وه که په اول رکعت دی او که په دوهم رکعت کی وی هغه په رکوع کی وائی ولی چې هغه واجب دی. **مسئله:** مقتدی به أَعُوذ بِالله نه وائی ولی چې أَعُوذ بِالله تبع د قرائت ده او مقتدی لره قرائت نسته. او امام ابویوسف وائی چې أَعُوذُ بِاللهِ تبع د سُبۡحَانَكَ اللّٰهُمَّ ده نو مقتدی بې وائی لکه سُبۡحَانَه چې وائی **مسئله:** د اختر د لمانځه په اول رکعت کی به أَعُوذُ بِاللهِ ترزوائد تکبیرو وروسته وائی ولی چې دا تبع د قرائت ده، قرائت په اول رکعت کی خو تر زوائدو تکبیرو وروسته شروع کیږي

قَالَ المصنف وَالتَّسْمِيَةُ أَوَّلَ كُلِّ رَكْعَةٍ وَالتَّأْمِينُ وَالتَّحْمِيدُ وَالْإِسْرَارُ بِهَا او بیا دی بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ وائی په اول کی د هر رکعت که نفل وی او که فرض وی





لکن ته الحمد لله دمخه. او هغه څوک خطا وتلی دی چې وائی بِسۡمِ اللّٰهِ دی صرف په اول رکعت کی وائی ط»، **فائده:** په لمانځه کی پوره بِسۡمِ اللّٰهِ وائی او د اسه په شروع کی او د ذبیحه په وخت کی پوره بِسۡمِ اللّٰهِ وئیل لازم نه ده بلکه هر ذکر کافی دی لکن فقهاء ره وائی چې د او د اسه په شروع کی افضل داده چې پوره بِسۡمِ اللّٰهِ وائی او د ذبیحې په وخت کی بِسۡمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَکۡبَرُ افضل دی.

مصنف په مراقی کی وائی چې بِسۡمِ اللّٰهِ وئیل په مابین کی د الحمد لله او سورة نه ده او نه وئیل مکروه دی. لکن بعض فقهاء چې افضل داده چې بِسۡمِ اللّٰهِ دی په مابین کی د الحمد لله او سورة وائی. **فائده:** کی چیری لمونځ کوونکی پسله الحمد لله څخه پوره سورة نه وایه بلکه یو څو ایته یې وئیل نو بِسۡمِ اللّٰهِ وئیل د هغو ایتو د پاره مکروه ده»، او د بِسۡمِ اللّٰهِ په وئیلو کی جهري او خفیه لمونځ برابر دی. او بیا دی په نیږد ختم د الحمد لله امین وائی که منفرد وی او که امام او که مقتدی وی لکن د اهلته چې امام قرائت په جهر وائی. او بیا دی رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وائی کله چې دی مقتدی وی. او دا دری سره به کرار وائی»، چې خپل ځان په واوری»

**فائده:** که لمونځ کوونکی منفرد وو سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ به دواړه وائی. او که امام وو سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فقط په ټولو لمونځو کښې په جهر وائی بنها نه **فائده:** د حنیفیانو او د شافعیانو په دی کښې اختلاف دی چې بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ شریفه جزء د الحمد لله بلکه د هر سورت سوا د سورة براءت څخه جزء ده او که نه ده» حنیفیان وائی لا، او شافعیان وائی نَعَمۡ، لکن سره د دی اختلافه دواړه ډلی پر دی متفق دی چې بِسۡمِ اللّٰهِ دی ته الحمد لله شریفی د مخه که څه لمونځ جهري وی کرار وائی. ددی اتفاق څخه مذهب ته د حنیفیانو تقویت پیدا کیږی»، ولی که بِسۡمِ اللّٰهِ جزء د الحمد لله وائی نو په جهري لمانځه کی څه سبب دی چې بعض اجزاء د الحمد لله چې بِسۡمِ اللّٰهِ ده کراره وئیل کیږی او نور اجزاء یې په جهر سره. او بله خبره داده چې د عصر نبوي ص څخه الی یومنا هذا هیڅ چا

جهر په بِسْمِ اللّٰه سره نه دی کړی، اَللّٰهُمَّ اِلاّ ما ندر عن رسول الله صلی الله علیه و سلم احیانًا للتعلیم، قال المصنفؒ.

## ثُمَّ قَرَأَ الْفَاتِحَةَ وَاَمَّنَ الْاِمَامُ وَالْمَامُوْمُ سِرًّا

او بیا دی الحمد لله شریفه ووائی او اٰمین دی ووائی امام او مقتدی په پټه خوله سره. قَالَ المصنفؒ

## ثُمَّ قَرَءَ سُوْرَةً اَوْ ثَلَاثَ اٰیَاتٍ

او بیا دی ووائی یو سورت یا دری اٰیاتہ یعنی که لنډ اٰیتونه وَه، او که یو اٰیت طویل (اوږد) وی هم کافی دی لکن دا سورة یا دری اٰیته ویل پس له الحمد لله څخه واجب دی کما مَرّ، قَالَ المصنفؒ

## ثُمَّ كَبَّرَ رَاكِعًا

بیا دی اَللّٰهُ اَكْبَرُ وائی هر لمونځ کوونکی چې وې. **مسئله** د تکبیر شروع دې د کښېدو سره د رکوع یوځای وې او تکبیر به ختموی په ختمیدو سره د رکوع تاچې شروع په تسبیح وکړې. قَالَ المصنفؒ

## مُطْمَئِنًّا مُسْتَوِیًا رَأْسَهٗ بِعَجُزِهٖ اٰخِذًا رُكْبَتَیْهِ بِیَدَیْهِ

په آرام سره دی رکوع وکړی په داسی حال کی چی برابر به وې سر ئې ده د پاې سره دده. او نیوونکی دی وې دواړو زنګونو لره په دواړو لاسو او پر زنګنو دی ګوتی خلاصی ونسی **مسئله**: پنډی به سمی ولاړې وی او کږول د زنګنو او پنډې تکه کمان مکروه دی، او ښځه دې ګوتی خلاصی نه سِی، م، قَالَ المصنفؒ:

## وَسَبَّحَ فِیْهِ ثَلَاثًا وَذٰلِكَ اَدْنَاهُ

او تسبیح دی ووائی په رکوع کی یعنی هر لمونځ کوونکی. چې هغه سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْم دی، او کی ظاء په خپل مخرج کی نه سوای ویلای لکه اکثر عوام، چې دوی یه داسی وائی. سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَزِیْم، نو هغه چونکه دا لفظ غلط دی نو دوی دی





سُبْحَانَ رَبِّیَ الْكَرِیْم، دی وائی، دری وارہ۔ او دغه دری وارہ که درجه ده د تسبیح ویلو

**فَائِدَه**: پوهه: چی مصنفؒ په مراقی کی وائی ای اَدْنٰی کمال الجمع المسنون" د دی عبارت څخه دا معلومیږی چی په یو وار تسبیح ویلو هم مطلق سنت پر ځای کیږی لکن د کمال د سُنت کمه درجه یه ۳ دری وارہ ده. او ورته عبارت صاحب هدایه هم ویلی دی» قَالَ المصنفؒ:

## ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ قَائِلًا سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ

او بیا دی سر راپورته کړی په داسی حال کی چی وائی به سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ که چیری

## لَوْكَانَ اِمَامًا اَوْ مُنْفَرِدًا وَالْمُقْتَدِیْ یَكْتَفِیْ بِالتَّحْمِیْدِ

امام وی لمونځ کوونکی یا یه وازی وی او مقتدی دې یواځې رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وائی.

**پوهه**: چی معنا د سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ. داسی د "سَمِعَ اللّٰه"، قبلونکی دی خدای جل جلاله حمد لره د هغه چا چی د ده حمد ووائی. په عرف کی د" سَمِعَ" ترجمه قبول دی. لکه چی وائی" سَمِعَ الْاَمِیْرُ كَلَامَ فُلَانٍ اَیْ قَبِلَهٗ، وكما وَرَدَ فی الحدیث النبویؐ. اَعُوْذُ بِكَ مِنْ دُعَاءٍ لَا یُسْمَعُ" ای لا یقبل ولا یُستجابُ".

**پوهه**: چی هاء د ضمیر د پاره نه ده بلکه هاء السکت والاستراحة ده م، او په مستعفی کی وائې چی هاء د ضمیر ده.

**الاختلاف**، جمع کول د سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَه. سره د رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ" امام لره مذهب د امام ابو یوسفؒ او امام محمدؒ دی او یو روایت د امام اعظمؒ څخه هم دی. او دا مذهب لکه مختار د مصنفؒ چی دی حاوی قدسی او الفضلیؒ او طحاویؒ او بعض نورو متأخرینو هم دا مذهب مختار کړی دی. او د مدینې والا وو هم دغه رواج دی. لکن په هدایه کی وائې چی امام به رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ نه وائی. او دا مذهب دی د امام اعظمؒ دلیل د مذهب د امام اعظمؒ دا دی چی په حدیث مبارك کی راغلی دی» اِذَا قَالَ الْاِمَامُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ، فَقُوْلُوْا رَبَّنَا

لَكَ الْحَمْدُ نو داخو تقسيم دى او تقسيم قاطع د شركت دى. لهذا مقتدي سَمِعَ اللهُ لمن حمده نسته زمونږ په نيز خلافًا للشافعیؒ، او فتح القدیر په اول جلد ص ۲٦۱ کی وائی. وفی البحر المحيط فی التحميد اربع مرات، رَبَّنا لَكَ الحَمْدُ، رَبَّنا وَلَكَ الحَمْدُ، اللهمر رَبَّنَا لكَ الحَمْد، اللّٰهُمَّ رَبَّنا وَ لَكَ الحَمْدُ، وفی المراقی الافضل اللهم رَبَّنا وَ لكَ الحَمْدُ، وَيليه اللهمر بنا لكَ الحَمد، ويليه رَبَّنا وَلكَ الحَمْدُ، او طحطاویؒ وائی چی داواو خولك وائی زائد دی. او خولك وائی داواو عاطفه دی تقدیر داسی دی رَبَّنا حَمِدَ ناكَ وَ لكَ الحَمْد والاظهر هوالاول، درویش وائی چی د عطف پر تقدیر عطف د جمله اسمیه پر فعلیه لازمیږی، چی لعض نحاة یه نه خوښوی، قال

ثُمَّ كَبَّرَ خَارًّا لِلسُّجُودِ ثُمَّ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ يَدَيْهِ ثُمَّ

وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ بیادی الله اکبر ووائی شروع دې د کښته کید و څخه وي او ختم یه چی تندی پر ځمکه کښیږدی دا تکبیر د سجدی د پاره بیاد زنګنونه کښیږدی او بیادی لاسونه کښیږدي یعنی که دغه کیفیت څخه عذر نه وو لکه د چا چی بدن عیبی وی یا بل عذر وي. او بیادی مخ کښیږدی په مابین کی دا ر غوو، **پوهسه**: چی لفظ د خارًّا اسم فاعل دی د خرور څخه مشتق دی چی معنا یه سقوط دی. قَالَ المُصَنِّفُ:

وَسَجَدَ بِأَنْفِهِ وَجَبْهَتِهِ مُطْمَئِنًّا مُسَبِّحًا ثَلاَثًا وَذَالِكَ أَدْنَاهُ

او بیادی سجده وکړی پر پزه، او تندی په آرام سره او تسبیح ویونکی بروي. یعنی سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى دری واره او دا کم حصه د تسبیح د سجدې ده. یعنی ادنیٰ د کمال مسنون یه ده کما مر في الركوع: قَالَ المُصَنِّفُ:

وَجَافٰى بَطْنَهُ عَنْ فَخِذَيْهِ

وَعَضُدَيْهِ عَنْ إِبْطَيْهِ فِي غَيْرِ زَحْمَةٍ او ګوښه دی کړی نس خپل





د ورنو څخه، او بازوګان دی ګوښه نسی د تخرګو څخه پر وخت کی د دی چی ازدحام نوی د خلګو. او که ازدحام وو بیا دی لاسونه په بغلو پوری ونسی. تاچی همسایه ته ضرر ونه رسوي: **پوهسه**: چی دا حکم د نرانو دی او ښځی دی نس په ورنو پوری او لاسونه په بغلو پوری جوت نسی لان هذه الكيفية استر لها. قال

او مخا مخ

مُوَجِّهًا أَصَابِعَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ کوونکی دی ګوتی د دواړو لاسو او دواړو پښو و طرفته د قبلی شریفی **پوهسه** چی ګوتی د لاسو دی ډیری جوت نسی په سجده کی او بیله سجدی بل ځای ضم د ګوتو نسته، مراقی وائی چی د سجدی په حال کی رحمت د خدای نازلیږي. او په ضم سره ډیر رحمت پلاس ورځی.

**پوهسه**: چی ایښول د پښو په ایښولو د ګوتو کیږی. نو ګوتی دی لږ کت کړي تاچی سر و نه یه و قبلی ته سی. قال الطحطاویؒ ویکفی وضع اصبع واحدة. قال

وَالْمَرْأَةُ تَخْفِضُ وَتَلْزِقُ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا

او ښځه دی بیته پریوزي په سجده کی او نس دی جوت وی د ورنو سره وقد مر نا التفصیل

قال المصنف وَجَلَسَ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ وَاضِعًا يَدَيْهِ عَلٰى فَخِذَيْهِ

مُطْمَئِنًّا او بیادی کښینی په مابین کی د دوو سجدو په داسی حال کی چی لاسونه بی ایښی وی پر ورنو په ارامه سره **پوهسه**: چی پر دې ناسته کی ذکر مسنون نسته. په لعض احادیثو کی چی د آنحضرت صلی الله علیه وسلم بعض دعا ګانی یې ذکر و نه ر اغلی دې هغه د تهجد په لمانځه کی وه.

— — — — — — — — —

سه چی دا شرحه ښه واضح کړ کندهاري بیا ئې خط هم ښه جلی کړی حقانی.

قَالَ المصنفؒ **ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مُطْمَئِنًّا وَسَبَّحَ فِيْهِ ثَلَاثًا وَجَافٰى**

بیا دی الله اکبر ووائی یعنی د بلی سجدی دپاره او سجده دی وکړی په آرام سره او دی دی

**بَطْنَهٗ عَنْ فَخِذَيْهِ وَاَبْدٰى عَضُدَيْهِ** وواٸی په سجده کی او لیری دی ساتی نس خپل دورنو څخه او ښکاره دی کړی بازوگان یعنی د بغلو څخه وان تسبیح دی

قَالَ المصنفؒ **ثُمَّ كَبَّرَ لِلنُّهُوْضِ بِلَا اعْتِمَادٍ عَلَى الْاَرْضِ بِيَدَيْهِ**

**وَبِلَا قُعُوْدٍ** او بیا دی تکبیر ووائی دپاره د ولاړی یعنی و دوهم رکعت ته بیله تکیه کولو د لاسونو ځمکه باندې او بیله ناستی **پوهه سه** چې دا حالت دی چې عذر نه وي لکه سړی چې سپین ږیری وی بیله تکیه کولو د لاسو پر ځمکه نه سی ولاړ ږدای او یا بدن د روند وی چې بیله تکیه ولاړه ور ته مشکل وی

**پُوهه سه**: چې پسله اول رکعته یو وار کښېنستل او بیا ولاړیدل جلوس د استراحت بولي. او دا ناسته په نیزد امام شافعیؒ سُنت دہ. دلیل په هغه حدیث مبارك دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به پس له اوله رکعته یو وار کښېنستی بیا به ولاړ دی۔

**جواب**: زمونږ دَخوا دادی چې دا حدیث محمول پر حال د کِبر سن او ده بدن مبارك د د روندوالی په وخت کی وُو. په دلیل د دې چې په صحیح حدیث کی راغلی دی "کَانَ يَنْهَضُ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَلٰى صُدُوْرِ قَدَمَيْهِ: ترجمہ: وو رسول الله ص ولاړیدی به و ر کعت ته پر سینه د پښو" قَالَ المُصنفؒ

**وَالرَّكْعَةُ الثَّانِيَةُ كَالْاُوْلٰى اِلَّا اَنَّهٗ لَا يُثْنِيْ وَلَا يَتَعَوَّذُ**

او دوهم رکعت لکه اول رکعت دی مگر دا فرق دی چې په دوهم رکعت کی دی سُبحانك اللّٰهم او اعوذ بالله نه ستیله"





دلیل دا دی چې سُبحَانَكَ اللّٰهُمَّ دپاره د شروع د لمانځه فقط، او اعوذ بالله نه دی وائی لره دی جهته چې مجلس نه دی بدل سوی که څه هم اعوذ بالله دپاره د شروع د قرائت ده. او دلته لمونځ یو دی بدل سوی نه دی، او دا مسئله ده چې په یوه مجلس کی که هر څو ځله قرائت سرې ووائی یو وار اعوذ بالله غواړی بل وار ویل ئی بدعت دی۔ قَالَ المُصنفؒ او سنت نه ده پورته

**وَلَا يُسَنُّ رَفْعُ الْيَدَيْنِ** کول د لاسو یعنی په وخت کی د تکبیر د رکوع یا د قیام د رکوع څخه، لکه نور مذهبونه چې په نورو تکبیر کی د لمانځه وائې. او کی پورته کړی صحیح دا ده چې لمونځ نه په فاسدیږی، قَالَ

**اِلَّا عِنْدَ افْتِتَاحِ كُلِّ صَلٰوةٍ وَعِنْدَ تَكْبِيْرَاتِ الْقُنُوْتِ فِى**

**الْوِتْرِ** مگر په نیزد شروع د هر لمانځه که فرضی وی او که نفلی او یا صلوٰة جنازه وي او په نیزد تکبیرد دعائی قنوت په وترو کې. قَالَ المُصنفؒ:

**وَتَكْبِيْرَاتِ الزَّوَائِدِ فِى الْعِيْدَيْنِ وَحِيْنَ يَرَى الْكَعْبَةَ**

او هغه وخت چې اسري هغه شپږ زوائد تکبیرونه د اختر په لمانځو کی یعنی ترغوږو پوری پورته کول په اتفاق د روایاتو، او هغه وخت چې اول وویني کعبه شریفه لکن پورته کول د لاسو به د دعا پر طریقه کوي یعنی و طرفته د اسمان. او د عادی هم وکی و نه الدعاء مستجاب"

**وَحِيْنَ يَسْتَلِمُ الْحَجَرَ الْاَسْوَدَ وَحِيْنَ يَقُوْمُ عَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ**

او هغه وخت د لاسونه پورته کوی چې حجر اسود مسه کړي. لکن د لاسو مخان بې و حجر اسود ته وی" او هغه وخت دی لاسونه پورته کوي چې د صفا او مروه پر غره و دریږي. لکن لاسونه به خلاص د اسمان و خواته نسی د دعاء پر ډول او دعا به هم کوي.

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه كتبه احقر الورٰى فضل حق حقانى غفرله

## وَعِنْدَ الوُقُوْفِ بِعَرَفَةَ وَمُزْدَلِفَةَ وَبَعْدَ رَمْيِ الجَمْرَةِ الأُوْلٰى وَالْوُسْطٰى

اود غه رنګه لاسونه پورته کوي د دعا په طريقه او دعا دې هم کوي چې په نيزد دريدو په عرفات او مزدلفه، او بيا په وښتلو څخه د اول څلي او د مابين د څلي د شيطانانو ټکن د لته م لاسونه د دعا په ډول دي او سبه اوبه د دعا به هم کوي، كما ثبت في الحديث النبوي ﷺ، **فَائِدَه**: او لاسونه دې پورته کوي په نيز د دعا د استسقاء يا نوري دعا ګانې ولې چې پورته کول د لاسو سنت د دپاره د دعا هره دعا چې وي، ط ص ٢٣، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَعِنْدَ التَّسْبِيحِ عَقْبَ الصَّلَوَاتِ

اود غه رنګه لاسونه دې پورته کوي په نيزد تسبيح وَيلو وروسته تر لمونځو يعني د دعا دپاره، قَالَ الطحطاويؒ كما عليه المسلمون في سائر البلدان،

**پوښتنه**: چې په بعض کتابو کې وائي چې لاسونه دې پورته کوي په فقعس کې نو په دې لفظ کې کلمه د فاء اشاره ده وتکبيرته د افتتاح، او قاف، اشاره ده وتکبيرته د دعاءِ قنوت، او عين اشاره ده و عيدين، ته او د معاينة البيت وپورته کيدوته، او سين اشاره ده ورفع د لاسو د مسح د حجر اسود،

د روښ وائي: چې قاف که عام سي تر قنوت، او قيام ته د صفا او مروة، او وقوف ته په عرفات او وقوف ته په مزدلفه. او وقوف ته پس له ويشتلو د جمرهٔ اولیٰ او وسطیٰ هم شامل سي. او سين هم عام سي دعاء بعد التسبيح ته هم شامل سي. نو دا مجمل لفظ به د پوره بيان سره د مصنفؒ مطابق سي.

**فَائِدَهٔ سَنِيَّة**: وحكايةٌ عليةٌ: روى ان الاوزاعيؒ لقي اباحنيفةؒ في المسجد الحرام: روايت کړه سوي دی چې امام اوزاعيؒ يوځای سو د امام ابوحنيفةؒ سره په مسجد حرام کې: فقال ما بال اهل العراق لا يرفعون ايديهم عند الركوع وعند رفع الرأس منه: نو امام اوزاعيؒ د حضرت الامام الاعظمؒ ته ووَيل چې څه سبب دی اهل عراق





لره چې نه پورته کوي لاسونه په وخت کې د تکبير د رکوع او چې د رکوع څخه راپورته سي يعني د تکبير سره د سجدې: قال الاوزاعيؒ وقد حدثني الزهري عن سالم عن ابن عمرؓ انه عليه السلام كان يرفع يديه عندهما يعني په دغه مذکور سند ما ته ويل سوي دي چې عليه السلام لاسونه پورته کول په دغه دوه وخته کښې: فَقَالَ ابوحنيفةؒ حدثني حماد عن ابراهيم عن علقمة عن عبد الله بن مسعودؓ ان النبي عليه الصلوٰة والسلام كان يرفع يديه عند تكبيرة الافتتاح ثم لا يعود: ابوحنيفهؒ وه اوزاعيؒ ته وويل چې په مذکور سند ما ته رسيدلې ده چې آنحضرت صلى الله عليه وسلم لاسو پورته کول په نيزد تکبير د شروع د لمانځه او بيا يې لاسونه نه پورته کول.

فقال الاوزاعيؒ واعجبا من ابي حنيفة احدثه بحديث الزهري عن سالم عن ابن عمرؓ وهو يحدث بحديث حماد عن ابراهيم الخ: يعني تعجب وابوحنيفه ته زه حديث د زهري آه وړته بيا نوم او دی حديث د حماد راته راوړي. غرض د اوزاعي دا وو چې زما د حديث سند عالي دی ولې چې په د دريو واسطو سره دی او د ده حديث سند کښته دی ولې چې واسطې يې څلور دي.

فَقَال ابوحنيفةؒ اما حماد فكان افقه من الزهري وابراهيم كان افقه من سالم ولولا سبق ابن عمرؓ لقلت ان علقمة كان افقه منه واما عبدالله فعبد الله: د جواب د امام اعظمؒ حاصل دا دی چې قانون دا دی چې په فقاهت د راويانو حديث ترجيح مومي که څه هم واسطې ډيرې وي. **پوښتنه**: چې د حضرت الامام الاعظمؒ په دې باب کې دلائل بيخي ډير دي چې وړاندې دی مجلې شرح يې بيان نسي کولای:

مګر يو حديث د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما به دلته ذکر کړم. هغه وائي چې هغه صحابه کرامؓ چې په نامه د عشرهٔ مبشره وو يا دي ي. او عليه السلام ودوئ ته زيری د جنت کړی دی. دوی نه پورته کوله لاسونه مګر په نيزد افتتاح د لمانځه، عنايه،

**د دعا په باره کې تحقيق**
پوښتنه: چې په دې کې شک نسته چې دعاء بالاجماع اقرب او نژدې ده اجابت ته تر انفرادي

دُعاء ولې چې په ډیرې خلګو کې غالبًا حاضر القلب خاشعین خلګ موجود وي. او دا هم د مسلم الثبوت خبره ده چې د کوم عبادت چې اصل په شریعت کښې ثابت وي هغه عبادت ته بدعت نه سي ویلای. نو دعاء بالاجتماع اصل په صحیح حدیثو کښې ثابت دی لکه په استسقاء کې. نو خصوصیاتو ته د دعا کا نو لکه عقیب الصلوٰة، یا نور دستو ور وسته په معنا د ګناه ګارۍ نسي ویل کیدای، او دا هم معلومه خبره ده چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم همیشه توب پر دعاءِ اجتماعي نه دی کړې. او لې په اکثرو اوقاتو کښې کړیده، لکن اصل د دعاء اجتماعي ثابت دی. نو که هر څوک هر وخت چې وي د دعاء اجتماعي کوي ولو بعد السنن په هغه کښې هیڅ حرج او ګناه نسته. او کې څوک نه کوي هغه هم پرواه نه لري. نو عقیده چې وهابیان او سلفیان وغیرهم یې لري چې دعاء بعد السنن بدعت ده یعنې بد کار او ګناه ده. ډیره پوچه خبره ده او ډیره بې ادبي ده: ؎

*از خدا خواهیم توفیق ادب: بی ادب محروم ماند از فضل رب*، او خدای جل سلطانه دعاء کول مقید په هیئت انفرادي یا اجتماعي سره نه ده ګرځولې ولې چې وائي: اُدْعُوْنِيْ اَسْتَجِبْ لَكُمْ، نو زمونږ د عصر بعضې مُلایان چې دا یې عقیده ده چې دعاء بعد السنن سنت ده افراط دی په باره کې د اجتماعي دُعاء، او هغه چې وهابیان وغیرهم وائي چې دعاء بعد السنن مکروه او بد کار دی تفریط دی په حق کښې د دعاء، والحق بينهما كما بينتُ، که څوک تحقیق تحقیق د دې مبحث او پوره دلائل بحواله د فقه شریفې د کتابو غواړي نو البصائر چې د استد المعارك العلميه مولانا حمد الله جان ډاګوي صاحب تصنیف دی مطالعه کړي.

**فــائِـدَه**: د دروېشي غرض دا نه دی چې وهابیانو او سلفیانو وغیرهم ته هم قناعت ورکړي ولې چې وهابیت یوه داسې ناجوړې ده لکه دوینې سرطان چې په ټوله نړۍ کښې علاج ممکن نه دی. بلکه زما غرض او مطلب دا دی چې ساده لوح مسلمانان د دوی د دغو ګمراه کن دروا غو څخه وساتم، **وصیــت** ، وهابیت یوه داسې ساري ناجوړې ده که جوړ سړی د دغه وهابیت د مریض سره ګذاره وکړي هغه هم په دغه ناوړه ناجوړې





ده که جوړ سړی د دغه وهابیت د مریض سره ګذاره وکړي هغه هم په دغه ناوړه ناجوړې اخته کیږي. ولې چې دوی ساده لوح خلګو ته صرف او صرف قال الله وقال الرسولﷺ وائي نه تاویل مني او نه مذهب مني او نه طریقت او نه شریعت مني چې د دوی د فاسدو عقائدو څخه غیر وي. او نه د هیڅ مفسر د قرآن تفسیر مني چې د دوی د اصولو څخه خلاف وي: *بر زبانت یا محمد پیدا و در دل یا صنم: ای بباطن کافر و ظاهر مسلمانی چه سود*: قــال

## وَاِذَا فَرَغَ الرَّجُلُ مِنْ سُجْدَتَي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ اِفْتَرَشَ

او څه وخت چې فارغ سي لمونځ کوونکی د دوو سجدو څخه د دوهم رکعت. و دی غوړوي

## رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَجَلَسَ عَلَيْهَا وَنَصَبَ يُمْنَاهُ وَوَجَّهَ اَصَابِعَهَا

یعنې پړې دې باسي چپه پښه او پر هغې پښې دې کښیني. او جګه دې ودروي ښي پښه او ګوتې د ښې

## نَحْوَ الْقِبْلَةِ وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلٰى فَخِذَيْهِ وَبَسَطَ

پښې دې وطرفته د قبلې کړي یعنې ګوتې دې کت کړي چې سر ونه یې قبله ته سي یعنې هغه ګوتې چې قبلې ته یې مخامخ والی آسانه وي. ولې د بعض

## اَصَابِعَهُمَا وَالْمَرْأَةُ تَتَوَرَّكُ

خلګو کښې ګوتو ته ډیره لنډه وي چې سر یې وقبلې ته مخامخ کول ګران وي. او کښې دې ږدي لاسونه پر ورنو او ګوتې دې خلاصې ونسي. یعنې داسې دې ول چې سرونه د ګوتو یې زنګنونو ته ورسیږي. او ښځه دې په ناسته کښې تورك کوي کما مر بيانه، قــالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَقَرَءَ تَشَهُّدَ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ

او ودې وائي التحيات د ابن مسعود خدای دې څنې راضي سي. **پــوه ســه**: چې حضرت عمرؓ یو قسم تشهد وئیلو، او حضرت علیؓ بل قسم تشهد وئیله. او عبد الله بن عباسؓ بل د ول

تشهده وَیله. اوحضرت عائشہ رض بل دَوَل تشهده وَیَله اوجابربن عبدالله رض جلا تشهده وَئیله اوعبَدالله بن مسعود رض بیا بَل قسم تشهده ویله رَضِی الله عَنهُم اجمعین اوموږ حنیفیانو تشهده دعبَدالله بن مسعود رض تشهده مختار کړیدَه،

**پوښتنه:** دَا تشهد خود علیه الصلوٰة والسلام څخه زده کیده نودا اختلاف ولی پکښی دی **جواب:** هو لکن آنحضرت صلی اللهُ عَلیه وسلم بعض اصحابؓ ته یو قسم اوبعض ته بل قسم وهکذا ښوولو دپاره دپراخی په دین کی، اوعین ممکنه ده چې په حفظ کښی داصحابو کرامو دی فرق وي په هرصورت اختلاف صرف په اولویت کی دی وَرنه رواټوله دي. قَالَ المُصنفؒ:

## وَاَشَارَ بِالْمُسَبِّحَةِ یَرْفَعُهَا عِنْدَ النَّفْیِ وَیَضَعُهَا عِنْدَ الْاِثْبَاتِ

اوبیادی اشاره وکړی په مسبحه گوته سره پورته دی کړي په وخت کی د نفی یعنی لَا اِلٰهَ اوبیرته دی ایږدی په نیزد اثبات یعنی اِلَّا اللّٰهُ، لکه چې تفصیل یې د مخه تیرشو اودا پورته کول دگوتی په نیزد امام شافعیؒ اوامام مالکؒ اود امام احمدبن حنبلؒ او په نیزد ائمه ثلاثه زموږ دحنیفیانو سنت دَی. صرف په تا بعینو کښی دمذهب حنیفی اوپه کتابو کی فتاواوو دمذهب حنفی هم اختلاف سته اوپه دی باره کښی علماء کرامو دحنیفیؒ مذهب مستقلی رسالی جوړی کړیدی یعنی سنت وَالی یه ثابت کړی دی: قَالَ المُصنفؒ:

## وَلَا یَزِیْدُ عَلَی التَّشَهُّدِ فِی الْقُعُوْدِ الْاَوَّلِ

اوزیا توب دی نه کوی پر التحیا ت په اوله ناسته کی **مسئله:** کی په قدر داَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ اویا بالا ترهغه زیا توب وکړي سجده سهوه پرلازمه ده اوکی صرف اَللّٰهُمَّ صَلِّ وَوَیل بیا ورپیاد سوه سجده سهوه نشته.

**پوه سه:** چې د عبَد الله بن مسعود رض څخه روایت دی چې ما ته وښووَل رسول الله صَلی الله علیه وَسَلم التحیات په داسی حال کی چې زما ارغووَی په مابین





کی ددوو ارغوو د علیه السلام لکه چې ماته چې به ئی ښوووی یو سورت دقرآن شریف څخه اووی ویل چې څه وخت چې کښینی یوستاسی په لمانځه کی نودی ووائي: قَالَ المُصنفؒ

## اَلتَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰاتُ وَالطَّیِّبَاتُ

یعنی ټوله ښه عبادات قولیه خدای پاك لره دی اوصَلوات جمع د صلوٰة ده مراد دلته څَندی صرف لمونځ نَدی بلکه ټوله عبادات بد نیه دي او دلته لام د استغراق دی، اوطیبات جمع دطیبةٌ ده طیب پاك شئ ته وائي لکن دلته مراد څندی ټوله عبادات مالیه دی لکه زکوٰة صدقه فطر وَغیره یعنی ټوله عبادات مالیه خدای پاك لره دي.

**پوه سه:** چې التحیات جمع دَتحیه ده چې په پښتو یې پیښ کښ دی، اومراد دلته څندی هغه بهترین دالفاظو دی چې پر عظمت اوکبریا اوجلال اوجَمال دخدای پاك دلالت کوی اوالف اولام دپاره داستغراق دي. **پوه سه:** دغه کلمات په الهام سره درب جل وعَلی وه آنحضرت صَلی الله عَلیه وسلم په شپه دمعراج وحضورته درب العزت پیش کړی اوخدای پاك په جواب کی ورته وویله، قَالَ،

## اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ اَیُّهَا النَّبِیُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَکَاتُهٗ

سلام دی وی د جانبه څخه درب جَل وَعَلا پرتا باندي ای نَبی اورَحمت دخدای جاو برکتونه د جانبه څخه دخدایؒ یعنی پرتا باندی **پوه سه:** چې آنحضرت صَلی الله علیه وسلم چې مذکوره دری کلمی وجناب ته دخدای پاك عرض کړي خدای پاك یه په جواب کی هم دری شیان وَوَیله یعنی السلام عَلَیْكَ ، دا کلام په مقابل کی دالتحیات دی. ولی چې السلام عَلیك تحیة الاسلام ده الی یوم القیامة بلکه په جنت کی هم دخدایؒ دخوا څخه، کریمه: سَلَامٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِیْمٍ، اود ملکو دخوا هم. سَلَامٌ عَلَیْکُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوْهَا خٰلِدِیْنَ، اورَحمَة الله یې په مقابل کی دَ والصَّلوات، ووایه.

**سُوال:** صلوات ترجمه خو په عبادات بدنیه سره وکړه سوه نو رحمت کله دصلوٰة معنا وه

**جَوابْ**: دعبادات بدنیه ووسره رحمت الهی لازم دی، او برکا تُه یې په مقابل کې ده و نفقات وو یلو ولې برکت نما و اکثرت ته وائي چې مناسب د مال سره دی چې د ضد ... نو مراد عبادت مالیه ده، پس آنحضرت صلی الله علیه وسلم چونکه رحمت ... دی. او ده ته د خدای ج نوازش ورکړی په درو خبرو په مقابل کې د درو خبرو د آنحضرت صلی الله علیه وسلم نو اجود خلق الله واکرمهم صلی الله علیه وسلم، نو ده مبارك هم دا فیض او احسان الهی عام کړی ټولو ورونړو ته خپل چې انبیاء علیهم السلام دی او ټول صالحانو ته د مخلوق الهی چې ملائکه دي او صالحین د مؤمنانو د انس او جن دی. نو یې ووَیل » قَالَ «

**اَلسَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلٰی عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِیْن** سلام دی وی پر موږ او پر

هغو بندګانو د خدای ج چې صالحان وي. د ضمیر متکلم مع الغیر څخه یې مراد ځان او ټول انبیاء علیهم السلام دی او د عباد الله الصالحین هغه نور مذکور مخلوق مراد دي. نو ځکه په صحیح حدیث کښې راغلی دي چې تا سې چې د دغه کلمی یعنی السلام علینا آه ووایاست رسیږی د دغه سلام و هر عبد صالح ته په اسمان او که ځمکه کښی وي **پـــوه ســه**: چې د لته دوه لفظه ستته. یو عبودیت چې معنا یې رضاده بما یفعل الرب تبارك وتعالیٰ، او په صفا تو کښی د مخلوق اشرف تر دغه وصف نشته او بل عبادت دی، چې معنا یې ما یرضی به الرب لکه لمونځ روژه، وغیره، په دی دوو وصفو کی وصف د عبودیت اقوی او اشرف دی تر عبادت ولې چې عبودیت په آخرة کښی هم باقی دي. او عبادت ختم کیږی. یعنی علیٰ سبیل التکلیف مطلب دا چې جنتیان په آخرت کی نه په لمانځه مکلف دی او نه په روژه، وغیره، لکن عبادت الهی په جنت کی پرځول د تنفس په دنیا کی چې سړی هیڅ نه په ستړی کیږی هغسی عبادت الهی په جنت کی هم ستته. ولې بنده چې هرڅو د خدای پاك ته نژدی کیږی طاعت یې زیاتیږی.





**پُوه سَـه**: چې عبد صالح و هغه بنده ته وائي په شرعه شریف کښې چې پرځای کوونکې د ټولو حقوقو د رب جل وعلا وی او د ده ټولو حقوقو د مخلوق وي. چونکه دا مفهوم پیدا کیده په یو شخص معین کی ډیر ګران دی یعنی تحقق یې لهذا علماء حضرات وائي چې ده یو شخص په باره کی یقین کول په صالح والی د ده بیله شهادته د ده شرعی شریفې روانه دی. البته دا سی سړي ویلای سی، چې فلان شخص زما په خیال صالح سړی دی. خوفًا من الشهادة، نو چونکه آنحضرت صلی الله علیه وسلم د احسان دلاری هغه کلمات وویلی اَلسَّلَامُ عَلَیْنَا آه نو اهل الملکوت الاعلیٰ چې تر اوو آسمانو لوړې ملکی دي. او جبرئیل علیه السلام په وحی او یا په الهام د رب جل وعلا دا سی وویله.

**اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ**

یعنی مونږ د زړه د کومی وایو چې الله جل سلطانه یو دی. او مونږ په پوره یقین سره دا وایو چې محمد ﷺ بنده د خدای او رسول د خدای دی، **پُـوه سَـه**: چې حافظ ابن حجر العسقلانی په شرح کښی د بخاری وائي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به په التحیات کښی د دغه الفاظ او کلمات مذکوره ویلی: او هغه چې بعض علماء وائي چې ده مبارك به دا سی ویله، وَاِنِّیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ، هیڅ اصل نه لري یعنی په لمانځه کی البته په غیر کی د تشهدی د مبارك دا سی ویلی دي.

**پــوښتَنَــه**: په تشهد کی ولې عبده تر رسوله د مخه راغلی دی **جَواب** قاضی بیضاوی بلکه ټوله مفسران او محدثین وائي چې ده نبي په اوصافو کی عبودیت تر رسالت افضل دی، ولې چې په عبودیت کی توجه د مخلوق څخه و خالق ته او په رسالت کی توجه د خالق څخه و مخلوق ته یعنی د پاره د تبلیغ د احکامو الهیه وو، **تَنْبِیْــه**: چونکه حاسدان زو نا پوه کسان ډیر دی، نو دا خبره بنه وفهموی چې زه دا سی نه وایم چې د عمومي خلګو عبودیت د نبي تر رسالت بهتر دی

بلکه داسې وایم چې دنبي په اوصا فو کې د اوصف ترټولو بهتروصف دی، قَالَ

## وَقَرَءَ فِيمَا بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ الْفَاتِحَةَ

او ووائې دی په وروسته د هغو دوو رکعتو اولو یعنی دفرضي لمونځو صرف سورة فاتحه (الحمد لله) یعنی بیله ضم دسُورة، او همدا رنگه که یو رکعت وی لکه دما ښام لمونځ نو په هغه کې به هم صرف الحمد لله شریفه بیله سورته: **مسئله**: که سورت ورضم کړي هم سجده سهوه نسته ولې هغه هم دسورة جنس دالحمد لله یعنی قراءة القران دی، کذا فی کتب الفتاوی، قَالَ

## ثُمَّ جَلَسَ وَقَرَءَ التَّشَهُّدَ ثُمَّ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او بیا دی کښیني یعنی پرهغه طریقه چې چپه پښه دی پرې باسي او راسته پښه دی جگه ودروي. او بیا دِ التحیات ووائې پرهغه ډول چې دا وس تیره سوه. او بیا دی درود ووائې پر آنحضرت صلی الله علیه وسلم یعنی اللهم صلِّ علی محمد تر پایه پورې. قَالَ المُصنفُ:

## ثُمَّ دَعَا بِمَا يُشْبِهُ الْقُرْآنَ وَالسُّنَّةَ

او بیا دی دعا وکړي په داسې الفاظو چې مشابه د قرآن او دسُنت نبوي د الفاظو سره وي یعنی عربي الفاظ به وي یا عین ماثوره دعا گانې وي او یا هغو ورته: **فـائده**: چونکه عوام د مشابه القرآن والسنة وغیر المشابه فرق نسي کولای. نو ځکه په لمانځه کې دعا د اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا تر پایه تیا کل سوی ده، چې ماثوره دعا ده. او هم مختصره ده او عین اختصار کې جامع د خیراتو د دنیا او اٰخرت ده، قَالَ

## ثُمَّ سَلَّمَ يَمِينًا وَّيَسَارًا فَيَقُولُ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ

## نَاوِيًا مَنْ مَعَهُ كَمَا تَقَدَّمَ

او بیا دی سلام وگرځوي پر راسته طرف یعنی اول وار او پر چپه طرف یعنی په پای کې او داسې





دی ووائې السَّلامُ عَلَيكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ او نیت بی وی د هغه چاچې د ده سره وروی یعنی امام، او قوم، او حفظه لکه چې د مخه تیره سوه:

## افسوس ناکه واقعه دعقل ځغلېري حکایت:

**یوه سله**: چې چونکه د شریعت پاك ټوله کتابونه عربي وه او صرف په هغو ټوله مُلایان هم نه پوهیده بلکه د ملایانو برجسته ملایان د قرآن ځخه ، انبولې او یا احادیث نبویه او د فقه حنیفي متون او شروح او فتاوی، او کتابونه به ټوله پوهیدله، او عوام الناس خو بیخي ځندی بی برخی وه. دعوامو تکیه صرف او صرف د ملایانو پر قول او بنو ونه وه»

او هرچا ته دا معلومه ده چې چیری په خپله دکتاب وَینا. او په پوهیدل، او چیری د بل د خولې او ریدل، نو بعض علماوو د عوامو دَ غه مشکل په نظر د رلودلو سره د شریعت پاك د عقائدو بعض کتابونه»، او د فقهي حنیفي بعض کتابونه د قوم ومورنۍ ژبې ته راوړل او تفصیلي بیان د هغو یه وکړي او چهاف تي وسپارل. او لوی سبب د استفاده د عوامو چې صرف خط بی زده وو وگرځیدل، چنانچه په دې باره کې د پاکستان د ډیرو جیدو علماوو لویه برخه اخیستی ده. او د شریعت پاك ډیر کتابونه یې د عربي ځخه اردو ته، چې د دوی مروجه ژبه ده را نقل کړه. حتی چې تفسیر د قرآن پاك یې هم پخپله مادري ژبه اردو سره ترجمه کړي.

او د پښتنو نیک نیته، او قوم پرسته، او ښو برجسته علماء هم د شریعت پاک د عقائدو، کتابونه، او د فقه شریفي کتابونه یې و پښتو ته رانقل کړه بلکه غټ غټ کتابونه د فقهي شریفي لکه غلور هدایه گانې، هم په پښتو مفصل ترجمه کړي. او په کابل کې د قرآن کریم تفسیر په دوو مروجو ژبو یعنی دري او پښتو تصنیف

سوه، او سبب د لوی استفاده د هغو عوامو وګرځېدی چې صرف خط او کتابت یې زده وی چنانچه د ا تفسیر په عربستان کې د شاه فهد په وقفي کتابونو کښې چاپ سو او حسبةً لله پښتو او فارسي ژبا نو مسلمانانو ته هدیه وسو. لکن چونکه پښتو او د هغه د اطرافو د پښتنو ژبې او زمونږ د قندهار د پښتنو ژبې په بعض بلکه په ډېرو الفاظو کښې په تلفظ او کتابت کې فرق وو، چنانچه د اخیرو واضح وو نو د روایتي عاصي ته هم د قندهار، هلمند، ترین کوټ، فراه وغیره ځایو چې پښتو ژبه سره یو ډول ده، د ضرورت علمي د پوره کولو سودا او فکر پیدا سو، چنانچه د روایتي د اخو کتابونه پښتو ژبې ته را نقل کړه. په عقائدو کښې نور ظلم او ابوالمنتهی، او په فقه حنیفي کې، شروط الصلوٰة، او قدوري، او نور الایضاح چې یو جلد اوس چهاپ سوی دی او دوهم جلد یې د اکتاب چې ستاسو په لاسو کې دی، او دریم جلد یې تر کتابت لاندې دی چې هغه به هم ان شاء الله العزیز ژر چاپ سي. او د ا زما عاصي کتابونه په هر ملک کې چې د افغانستان پښتانه مهاجر موجود دی د کتاب فروشانو په ذریعه ورسېدله، حتی چې وما ته یو وخت د قدوري چهاپوونکو، او لیکونکي قاري مجوّد خطاط اعظم مولوي فضل الحق صائب وویل چې ما تر اوسه پورې د قدوري یو ولس ۱۱ زره نسخې خرڅې کړې دي. وهکذا الکتب الاخری المذکورة»

او عربستان سعودي ته هم ډېرې نسخې د کتاب تللي دي، ولې چې هلته پښتانه پرډېن مین مسلمانان ډېرد يې، او د دې کتابو د تصنیف په باره کې ما ته [illegible] راغلي دي چې د ټولو حاصل دا دی» لَقَدْ اَحْسَنْتَ «، په تحقیق سره تا ډېر ښه کار وکړی. مګر افسوس چې د قندهار د بعض حاسدانو د خوا په دې او سو وخو کې په غیاب کې قولي داسي یو پیغام چار اورسا وه.» چې دا نقل د عربي کتابونو پښتو ته ډېر بد کار دی چې د هغه نوم زه نه اخلم د قندهار دی. او هغه په ډېره بې شرمي سره د عقل لېږي د اخبره کړېده چې دغه کسان چې عربي کتابونه و پښتو ته را نقل کوي دا د امریکا رونده سوي





ملایان دي چې په خلګو کې بې دیني پیدا کوي. او خلګ وامریکایانو ته دعوت کوي او ورته مرتدي د شرحه د کې خبرې یه هم کړې دي:

نو د غه جناب ته زه وایم چې لوی نقل کوونکی د عربي کتابو و پښتو ته د قندهار په علاقه کښې زه یم. نو تا زما کتابونه مطالعه کړي دي. او که هسې دې ستړګې پټې او د حسد خوله دې وازه کړې ده. او د اخبرې کوې. که دې مطالعه کړې وی نو ته د نور الایضاح د پای ورقي وګوره چې څولک د امریکا طرفداره دي او زما ګیلې او تنقید و نه پر امریکا او بین الملل او روسانو با ندي. بیا مطالعه کړه. او بلاغ المبین هم مطالعه کړه. او د امارت اسلامي افغانستان تائید او توثیق چې ما کړې د دغه ژړه حصه تا کړې دي او که څرنګه!

**بلکه حق خبره خو داده:** چې زه غواړم چې د عوامو زاو ښځې ځوانان، او ښځې سپین ږیري، د اسلام په عقائدو خبر کړم، او په احکامو د فقهي حنیفي یې اګاه کړم او د زړو پر تختو با ندې بیله عقائد اسلامیه وُو او بیله فقهي حنیفي. نو که ځای پرېږدم چې په هغه کې نصرانیت او یا یهودیت یا وهابیت ځای پیدا کړي. او هر مسلمان په ذریعه د دغو پښتو دیني کتابونو. د تخریب کاري د امریکایا نوا نګلیسانو وهابیانو خلاص سي. او د خپل امارت اسلامي په افغانستان کې ما دي او معنوي لساني او قلبي ملاتړ وکړي. او د پاره د حفاظت، د امارت اسلامي هر نوعه فداکاري ته تیار اوسي. البته ته چې د دې کتابو څخه بد وړې ستا مرام به د اوي. چې د افغانستان عوام دې د دینه څخه ساده لوحه وي تا چه نقوش د امریکا یانو انګلیسانو، وهابیانو، په هغو ساده د دینه نا خبره زړو کښې نقش سي. او پر ځای د محبت د امارت اسلامي افغانستان په محبت د طن او عمل د امریکا یانوا نګلیسانو، وهابیانو، په زړو کې پیدا سي»

او یا به ستا نیت په دې بې شرفانه خبرو کې داوي چې د تحریک اسلامي طلباء افغانستان او د هغو د مخلصانو په ما بین کې شقاق او شګاف پیدا کړې. نو په دې نیت کې به هم د خدای جل سلطانه په فضل سره نه سې کامیابه، ولې د تحریک اصلي غړي علماء

اوطالبان ډیر دو، اندلیښ خلک دي. ستاسو په خوله نه خطاوزي. اونه زه دومره بیعقل یم چې تا غوندی نا پوه سړی دی ما تحریک بدخواه وګرځوی. که ستاسو داغه قدر بیان نور دی خود اینده د پاره داسی برو پاکند مه کوه. اوکه بیا زه خبر سوم چې ته خپلو ناوړو خبرو ته دوام ورکوې. نو د نور الایضاح د پښتو ترجمی په دریم جلد کی به اِن شاءَ الله تعالیٰ ستا د نامه، د قومیت، د او سیدو د ځایه ټخه پرده پورته کړم. او په ټوله خلګو به دی وپیژنم. اوس داغه دستر په وینا کی پا ته لېږم.

**مکتوب**، جناب مولوی عبید الله صاحب په اوسنی زمانه کی مختلفی ډلی وعالم ظهور ته راوتلی دی، مثلًا، وهابیان، سلفیان، پنج پیریان، اهل حدیث، تبلیغیان موحدان، نور ما پوښتنه دا ده چې په دغو ډلو کی ستا په عقیده کمه ډله ښه ده چې سړی یه متابعت وکړي. ولی هغه پخوانی ډلی چې په پخوا زمانه کی مشهوره وی لکه شیعه ګان، معتزله، کرامیه وغیره. هغه موږ پیژندی چې د اهل السنة والجماعت رحمهم الله ډلی ټخه ندی. نوموږ هغو ټخه پرهیز کاوه اوس څه وکړو! په امید د جواب المنان بخش ستا دعاګوی آغا ګل د تنده کړ.

**ګرانه وروره!** زه به وروستا ته یو قانون کلی بیان کړم، چې په هغه کښی ته غور وکړې تا ته به پخپله ښه ډله معلومه سی. نو **پوښتنه**: چې د درویش په عقیده هغه ډله ښه ده. چې پر یو مذهب د څلورو مذهبو. یعنی حنفیانؒ. شافعیانؒ. مالکیانؒ حنبلیانؒ. ولاړ وي. چې دا غلوړ ډلی د خیر القرون ټخه راشروع سوی دي.

اوو زمانی ته د رسول کریم صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین نژدی وي او د قرآن کریم د آیا تو او د احادیث نبویه و په تفسیر او معنیٰ ښه خبردی او برجسته مجتهدان یه مقتدایان دي. **پوښتنه**: چې زما مقصد دا ندی چې ته په مذهب چې کیږی ستا خوښه ده. بلکه زما مقصد دادی چې پر هر مذهب چې ته یې د هغه مذهب د قدماء او متاخرینو د کتابو ټخه خپل معلومات حاصل وه. او د قرآن کریم او احادیث نبویهؐ و هغی معناوی کوه لکه چې ستا د مذهب مقتدایا نو ته ښودلی دي.





دنوی اجتهاد امید مه کوه. او دا هم زما مقصد ندی چې ته به په یوه مسئله کی د حنفی مذهب متابعت کوی او په بله مسئله کی به د شافعیؒ مذهب متابعت کوی چې دې ته په اصطلاح کی تلفیق المذاهب وائي. او هغه جائز نه دی. او داسی به هم نکوی چې مذهبونه د خیر القرون به پس پشت ګرځوې. او د مبارک قرآن د آیاتو ترجمه به په خپله رأیه او فکر سره کوې. او یا د احادیث نبویهؐ و معنا د خپل فکر برابره بیانوی. که څه هم ته پخپله زمانه کی بیخی لوی عالم یې. او خلګ دی لوی عالم بولي. لکن احتیاط ډیر لازم دی.

پر خپل علمیت اعتقاد کول روا ندی. بلکه تتبع په حقه سره د خپل مذهب د کتابو او تلاش د اقوالو د مجتهدینو ډیره ضروری ده. مثلًا چې درویش حنیفی دی خپل د احنافو د مذهب متون کتابونه، او شروحی، د هغو او د فتاواوو کتابونه به مطالعه کوم. البته که د مذهب په بعض کلابو کښی اختلاف وی بیا به نورو کتابو ته د مذهب رجوع کوم. د او ستاسی د سوال جواب خدای دی وکړی چې و مقصد ته ورسیږی:

**مکتوب** (۲) جناب محترم مولوی عبید الله صاحب ایوبی، موږ بعض علماء وینو چې ستاسره خلګ ډیر حسد کوی، او غیبت خو څه کوی بهتانونه هم در با ندی وائي، د دې سبب څه دی! محمد عبد الحکیم قندهاری.

*ګرانه وروره:* اول خو بایدتا د اسؤال د دوی ټخه کړی وای. ولی چې امکان لری چې خپل عیب خود او ږ و ما بین دی. څوک یې په خپله نه وینی. نو شاید دوی به زما هغه عیبونه چې زوینه و یسنمور ته بیان کړی وای. او بیا به دی ما ته د هغو عیبو د بیان ولو مکتوب را استولای وای چې ما د هغو عیبو ځان ټخه ازاله کړی وای لکن چونکه تا د ما ټخه سوال وکړی. نو زه در ته وایم چې اول خو حسد، غیبت، بهتان، کبیره ګناهونه دی لکه چې د دی بیان ما په تفصیل سره په بلاغ المبین کی کړی دی. بهر صورت د غه حاسدان به په تقسیم الٰهی نه وی راضی یعنی عاصی ته خدای پاک ټوله نعمتونه که زما د شان سره ورکړی ما عاصی ته یې راکړی دی. نو امکان لری چې د دوی

د حسد وغیره سبب به هم دغه وي.

**گرانه وروره!** حسد نوی مرض نه دی بلکه د امراض قدیمه وڅخه دی په بعض علماوو کښې د بڅواڅخه موجود وُو. ته که په عربي پوهیږې نو د رمختار خطبه مطالعه کړه چې څومره په د حاسدانو څخه په نظم او نثر کې شړلې دي، چې د هغه یو بیت به زه د رته ترجمه کړم او یو هم نثر به د رته ترجمه کړم. ؎

هُمْ يَحْسُدُونَنِي وَشَرُّ النَّاسِ كُلِّهِمْ :: مَنْ عَاشَ فِي النَّاسِ يَوْمًا غَيْرَ مَحْسُودِ ::

یعنی دوی حاسدان د ما سره حسد کوي. او بد د خلګو تر ټولو هغه څوک دی چې یوه ورځ په خلګو کې داسې تیره کړي چې د چا ورسره حسد نه وي. ولې چې حسد پر کمال وغیره باندي کیږي ځوک چې حاسد نه لري هغه کمال وغیره نه لري نو څکه بد دي.

الْحَسَدُ حَسَكٌ مَنْ تَعَلَّقَ بِهِ هَلَكَ"

حسد یو ځوز دی چې په چاپورې ومښتي یعنی د حسد لاره په خپله کړه هغه یعنی حاسد د هلاک سره مخامخ کیږي. او داهم واوره چې د چا حسد، غیبت، بهتان، ماته تاوان هم نه لري. ولې د خدای په نعمت زما څخه خدای پاک اخستای سي، د حاسد په حسد نه اخستل کیږي، او د غیبت او بهتان په باره کې حکایت د حسن البصري به د رته ذکر کړم.

وائي چې یو ملا د حسن البصريؒ غیبت، یا بهتان، د بل سړي په مخ کښې کړی وُو. هغه سړي هغه غیبت و حسن البصريؒ ته راورساوه. حسن البصريؒ په ډیر احترام هغه ملا ته خط نوشته کړي او یو مقدار نښې خرماوې یه هم خط او د اخرماوې یه دخپل شاګرد په لاس ورکړې. او پس له سلامه په دستي ورته نوشته کړه چې ستا ډیر تشکر چې ناخپلې حسناتې حسن ته را واستولې او حسن په عوض د هغو څه لږ مقدار تمیرات د ر واستولې، کې قبولې کړې. ستا به ډیره مهرباني وي.

ګرانه وروره! زه په خپله د هیڅ چا او د هیڅ عالم سره بغض او حسد نه لرم یعنی په نعمتو د خدای چې وه هغه عالم تی ورکړي وي" بلکه سره تواضع مې و ټولو علماوو ته





کښته دی. البته اعتراضات علمیه ووته حسد نه وائي ولې چې مبنی پر تحقیق علمي دی

**پوه سه:** چې درویش و خپلو شاګردانو، مخلصانو، دوستانو ته داوصیت کړی دی چې که زما یو چا غیبت کاوه که دی دفع هورې کولای سوای خوږي کړه او که دی نه سوای کولای زما ترغوږ و بې نه رارسوي. ولې چې زما زړه ناحقه د ګرو مه راپکوه" داوو ستا جواب" وَلْنَرْجِعْ اِلَى شَرْحِ الْكِتَابِ:

# بَابُ الْاِمَامَةِ

باب دی په بیان د امامت کښې:

**پوه سه:** چې مراد د امامت څخه امامت صُغری دی چې امامت د لما څخه دی نه امامت کبری چې خلافت او امارت د مسلمانانو دی، ولې د هغه بیان ځای علم کلام دی

قال المصنف **وَهِيَ اَفْضَلُ مِنَ الْاَذَانِ** او امامت افضل دی تر اذان کولو، که څه هم د مخه تیره سوه چې د مؤذن نانوغاړې به جګې وي تر نورو خلګو په ورځ کې د قیامت دلیل د افضلیت د امامت دا دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم او خلفاء راشدینو رضی الله تعالی عنهم همیشه توب کړی دی پر امامت نه پر اذان **پوه سه** چې په مراقی الفلاح کې وائي: چې افضل داده چې امام دی مؤذن هم وي. او نه یا ته کړي یه ده چې دا زموږ مذهب دی وَكَانَ عَلَيْهِ اَبُوْ حَنِيْفَةَ رحمه الله، لکن پر دی افضل کار پر ټولو احنافو کې عمل نه دی سوی. مګر نادر وخت په بعض مسجدو کښې والله اعلم بالصواب.

قال المصنف **وَالصَّلٰوةُ بِالْجَمَاعَةِ سُنَّةٌ** او لمونځ په جماعت سنت دی" مراقی په شرح کې وائي فی الاصح لکن سنت دی مؤکد مشابه دی د واجب سره په قوت کې اه لکن سنت والی یه په ما سوا کې د جمعې

د لمانځه اود اخترو دَ لمونځو. ولې چې په هغوکې شرط دَجواز دی **پوښتنه:** چې په بدائع کې وائې چې عام مشائخ داحنافو ویلي دي چې جماعت واجب دئ. اوپه تحفه کې هم ورته قول ذکر دی. اوپه جامع الفقه کښې وائې چې قوي دَاقوالو وجوب دجماعت دی. اوامام کرخي وائې چې جماعت فرض کفائي دی. اود فقيه ابوجعفر الطحاوي اود بعض نورو احنافو هم دامذهب دَی. اوامام احمد بن حنبل وائې چې جماعت فرض عين دَی. لکن دده مذهب دادی چې لمونځ جَلا فرض عين دی اوجماعت جَلا. نولمونځ منفردا خو صحيح بولي. لکن ترك دجماعت بې لرعذره گناه کبيره بولي.

**پوښتنه:** چې امام طحاوي وائې چې جماعت په شرع کې يوامام غواړي اويوبل څوك که نروی اوکه ښځه. حُروی که مريي اوکه کچني هلك وي چې عاقل وی اوکه ملك وي اوکه پيری وی. په مسجدکی وی اويايه په صحرا کی اويا په کورکی آه

**پوښتنه:** چې په حديث مبارك کی داسی راغلی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وائې. چې دجماعت لمونځ بالادی تريوائې ديوه ستاسی پنځه ويشت [25] درجې اوپه بل روايت کې په اووه ويشت [27] درجې. نوددی حديث دَوَجهی جماعت دی څوك نه پرېږدي بيله عُذره: **مسئله:** که يو ښار والا يايوې غټې قريه په اتفاق سره جماعت نه کاوه بيله عذره اول دی حکومت اسلامی دوی امرکړي په کولو دجماعت کی قبول کړي خوخبره خلاصه سوه. اوکې نه قبلاوه جنگ دی ورسره وکړي. ولې چې جماعت دشعائرو څخه داسلام دَی. اودَخواصو څخه ددين دئ. م، وفي القنية» چې اصح خبره داده چې دجماعت کول په کورکی اوپه مسجدکی دواړه روادي لکن په مسجد کی افضل دَی.

**فائده:** دجماعت لمونځ په سُنت والی کی تر سنة الفجر چې اقوي دسُنتو لمونځو دی هم ټينګ سُنت دی. اوجماعت سنت عين دی په فرضی لمونځوکی مګر په تراويحوکی سنت کفايي دَی. اوپه وترو کښی دروژی مستحب دَی. اوپه نفلی لمونځو کښی چې په بلنه خلک نه راغواړي جماعت روادی. اوکه په بلنه وو مکروه دئ.





**تفريع:** نوهغه چې لبعض ناپوه پيران خپل مُريدان په بَلنه راغواړي چې نن فلانۍ شپه ده تاسی راسی چې صلوة التسبيح يا نورې نفل په جماعت سره وکړو دشريعت خِلاف او مکروه کاردئ. اوشمس الائمة الحلواني رح وائې که تردروکسانوپورې په يوه متنفل پسی اقتداء خلک وکړي تداعی نه ده اوکه څلورديا بالاوه تداعی ده. او په کسوف کی دلمر جماعت په نفلوکی مستحب دی» در مختار» اوپه خسوف کی دسپوږمۍ مکروه دی» بحرالرائق.

**مسئله:** په نهر اودر، کی وائې که څوك يو وار بيله عذره دجماعت لمونځ پرېږدي نوپه نيزدعراق دفقهاوو چې جماعت واجب بولي. داسړی گناه گار يعنی کبيره گناه ده. اوڅوك چې دجماعت لمونځ سُنت بولي. وائې په يوه لمانځه بې جماعته گناه گار نه دی بلکه چې عادت يه ترك الجماعت وی نومرتکب دکبيری گناه دَئ. ط» اويوقول ضعيف چې په شرح کی دوهبانيه دجوامع الفقه څخه نقل کړی دی دادی چې جماعت مستحب دی

**مسئله:** جمهور دفقهاوو وائې چې ثواب دجماعت په اشتراك دامام سره په جزء کی که څه هم اخيره ناسته وی حاصليږی»

**مسئله:** فقهاء په دې مسئله کی اختلاف لری چې دَخپل محل دجماعت لمونځ افضل دی. اوکه جماعت دمسجد جامع. اوکه دواړه مسجده جامع گاڼي وي. نو هغه قديم مسجد افضل دی. اوکه په يوه مسجدکی دجماعت خلك بيخي کم وو نو يوعالِم ته دا مستحب ده چې جماعت ته دی هغه مسجد ورشي ناچې خلگ يه ډير سي.

## فضيلة الجماعة

ورد فى الحديث الصحيح انّهُ اذا توضّأ اى الرجل آه ترجمه څروخت چې اودس تازه کړي سړی يعنی په کورکښی يا په بَل ځای کښی خارج المسجد اوښه اودس تازه کړئ. يعنی مَراعات دَفرائضو اود اسه اود سُنتو اود مُستحبا تو وکړي. اوبيا ووزی دمسجد پرخوا. اودی نه وی ايستلی مګر لمانځه يعنی دجماعت دپاره خاصةً يعنی بَل مطلب دده نه وي. نودی نه پورته کوي يو گام مګر په داسی دَول چې دده پورته کيږی په سَبب دگام اختلويوه درجه

اورَزَوَل کیږی دده یوه ګناه ـ یعنی دهرګامه سره. اوچې لمونځ اداءکړي یعنی په جماعت همیشه مَلَکې دعاوَرته کوي ترهغوچې دلمانځه ځای ناست وي هغه دعاء داسې ده. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَیهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ:

اوهمیشه داسې په لمانځه کې دی یعنی ثواب دَ لمانځه ورکول کیږی ترهغوچې دی د لمانځه انتظار باسي. یعنی دجماعت تروخت د مخه راغلی وي مګر یوائې لمونځ نه کوي بلکه دجماعت انتظار کوي. په بل حَدیث کښې راغلی دي. کرچا دماخستن اود سحار لمونځ په جماعت سره وکړی دو نه ثوابونه لري لکرده چې ټوله شپه نفل کړي وي اوپه بل صحیح حَدیث کښې راغلی دی چې دیوسړی لمونځ دیوه سړي سره یعنی په جماعت ښه دي تریوازی لمانځه. اود دوو کسانوسره بیاښه دی تریوه سړي. اوهرڅومره چې دجماعت خلک زیاتیږي هغه لمونځ خوښ دی خدای پاک ته او په مضمرات کې داسې راغلی دي چې په تورات شریف کې د امتیانود آنحضرت صَلّی الله علیه وَسَلم اودوی د جماعت په باره کښې چې ددوی دجماعت په صف کې دیونفرپه زیاتیدو سره دیوه لمانځه ثواب زیاتیږی مطلب دا که په جماعت کې زرکسه وَه. هریوه ته دزرو لمونځو ثواب ورکول کیږی،،

**پُوه سَـه**: چې حکمت الهی دجماعَت دمحلي په مسجدکې نظام دالفت دی په مابین کې دمحلي والاوو. اویود بَل په جُوړاونا جُوړه پرکوي والی اومسافروالي باندې علم اوسَتل دي. اوزده کړه دیوعالِم دین ځنی چې په مسجدکې تبلیغ اوتعلیم کوي. اودجمعي دَوَرځی دجماعَت حکمت الهی دادی چې دمختلفوناحیه وو او محلومسلمانان سَره ووینی. اویود بَل سره محبت او الفت یه پیداسي. داد دی کبَله چې په مخنی وخت کې هرپه ښار کې یَوڅو محدودی جامع ګانی وي اوټولود ناحیه وو خلک او مسلمانان هَلته په هغوجامع مسجدوکی سره جمع کیدَل. اوس چونکه پر ځنځه ګامه مثلاً جامع مسجدی داهم دملایانود جاه پرستئ دسَببه ځنی پیښه ده. اودعیش طلبی دپاره چې دوی نه غواړي چې دجمعي لمانځه بل ځای ځان زهیرکړي اویا په بَل





ملا پسې اقتداء وکړي. نوفوق الذکرحکمت دمابین ځنی ولاړه. اود عیدګاه دجماعت حکمت الهی دادی چې دټوله ښارمسلمانان پریوه ډګر اوصحراسره راجمع سي اویود بله سره ملاقات اومحبت وکړي. داحکمت اوس ختم دی دکوټي په ښارکی. ولی هر ملاصاحِب خپل جامع مسجد عیدګاه هم ګرځولی ده بخلاف دافغانستان، ولی چې په افغانستان کی د پخوا ځنی په هرښار کې یوه عمومی عیدګاه بَه وَه. اوداهم اوس په افغانستان کی په برکت د امارت اسلامی طالبان داعمومی عیدګاهانې ډیرې په ښه توګه، او ډیرې فراخی چې دګرده ښارد خلګو ګنجائِش لري جوړی سوی دي. تَه وَر سره دکندهار لویه عیدګاه وو ینږ وهکذا په نورو ښارو کې. دتعجب خبره خوداده چې په کوټه کښی هم دری عیدګاهې عمومی عیدګاهې د پخوا ځنی سَته اوس هَم. لکن مُلایانوصاحبانو ته دازور ورکوی چې هغه لیرې ځایونه ځی. اوبَله خبره دَاده چې طبعًا دملاصاحِب دَاخوښه ده چې زه دې پر منبر ولاړ یَم. یارشتیا یا نور څه داوایَم اوخلګ دې راته ناست وي. غوږ دی نیولی وي. حتی چې لبعضی جَاه طلب مُلایان دی دجمعي یاعیدګاه دپاره په داسې مواعظوپسی تلاش کوي. چې خلک ورته ژاړي که څه هم صرف درواغ وي.

**مسَـئَلِه**: کرد اختر په وَرځ عذروو لکه ډیر باران یا سخت یخ چې خلګ وعیدګاه ته دپاره د لمانځه صحراته نَسوای وتَلای بیاد عیدګاه لمونځ په بعض غټوجامع ګانو کښې وکړی. لکن دا اوس په کوټه کښی بیله هیڅ عذره په لویو او کوشنیو جامع مسجدانو کی دعیدګاه لمونځ کیږی. شاید عذر بی جاه طلبی وي. داوود جمعې دَ لمانځه اجتماع دپاره حکمت الهی.

اوپه اجتماع الحج کی حکمت الهی پرثوابو برسیره دادي. چې دټولې نړې ځنی دامُت مسلمه وفدُونه، اوهیئتونه په مبارکه مځکه کی دعربستان خصُوصًا په حرمینو شریفینو کی سَره ووینی په مختلفو رنګو، په مختلفوژبو وغیره، اود خدای جَل سُلطانه شکروَادای چې امت مسلمه دومره ډیر دی سره د دی چې ټوله کافران ددی اُمت

مرحومه په قلع لیی دي. چې په سرکې دَهغو کافرانو، امریکا، لندن، او روس دی اونور

**داعجبه هم واوره** : چې قبل بعثة النبي صلی الله علیه وَسَلم ابرهه په نامر باچا په یَمَن کې دمقابلې دپاره کعبه یمانیه جوړه کړې وَه چې دحاجیانو مَخ د بیت الله شخړ و دی کعبتهٔ ته واړوي. نو په هغه وخت کې که څه هم اهل مکه ټوله مشرکان وَه. لکن د بیت الله شخړ و دی کعبه ته راواړوی. لکن د بیت الله شریفې خوخپل عزت او عظمت په دربار کې دخدای جل شانه موجود وُو. نو ځکه هغه کعبه یمانیه خدای جَل سُلطانهٔ دمابین څخه ورکه کړه چې دسورة اَلَمْ تَرَ کَیْفَ آه کې داقِصه په تفاسِیرو کې او په تَوارِیخو اسلامیه کې په تفصیل سره مذکوره دَه،

اما اوس او س دبلوچِستان په بعض اطرافو کې هَم لعض بې دینو خلګو دکعبه الهی په مقابل کی کعبه جوړه کړیده. چې خلګ حج ته ور بُولي او لعض بې دینه خلګ دغې مَصنوعي کعبې ته هم ورځی. اَللّٰهُم انزِل عَلیٰ هٰٓؤُلاء الذینَ یقا بلونَ کعبتكَ بلاءً ا شد یدًا وعذابًا الیمًا وفتنةً قبیحةً حتیٰ تفضی الی خرابِ تلكَ الکعبة ایضًا کما خربَت الکعبة الیمانیة؛ و لِلّٰه الامرمِنْ قبل ومِن بعد و بذ الک یفرح المؤمنون، هذا مِن الجمل المعترضة ولنرجع الی شرح الکتاب بعون الملك الوهاب» قَالَ المُصنفُ:

## لِلرِّجَالِ الاَحْرَارِبِلاَعُذْرٍ وَشُرُوْطُ صِحَّةِ الاِمَامَةِ

اوداجماعت سنت دی نرولره چې ازادوي بیله عذر شرعی. او شرطونه دصحیح والی دجماعت

**لِلرِّجَالِ الاَصِحَّاءِ سِتَّةُ اَشْیَاءَ** ده نرو چې په بدن جوړوی شپږ شیان دي. **پوهسه** چې للرجال تعلق تر سنته پورې لري. **پُوهسَه** : چې دعذر شرعی بیان به مصنف وروسته وکړي اِنْ شَآءَ اللّٰهُ» دنروالې په قید سره ښځې ووَتلې. ولې دخالِصو ښځو دپاره دا ټوله وروسته شروط شروط نه دي. بلکه ذکورت شرط نه دی. نوامامت دښځې





ښځې لره روادی سره دکراهته، او د اصحاوو څخه مراد دادی چې معذوره نه وي لکه سلسل البول، انفلات الریح وغیره، نو دغه عذر والا وو امامت یو بل ته روادی قَالَ **الاِسْلَامُ** یو شرط اسلام دی. لکن دا ښې اسلام کافی نه دی چې دی ځان مسلمان بولي بلکه چې دَده دقرآن مبارك څخه خلاف نه وي. او د احادیث مشهوره وو څخه هم خِلاف نه وي. نو ځکه په مراقی الفلاح کې وَائي چې په هغه چا پسې لمونځ نه دی رَوا چې منکروی د بعث بعد الموت څخه، او یا منکروی دخلافت څخه دا بوبکر الصدیق رضی الله تعالیٰ عنه. او یا دصحبت څخه دَخلافت دَهغه. او یا پوچ وائی و شیخینو ا بوبکر الصدیق رض او حضرت عمر رض لکه شیعه گان، او یا د شفاعت نبوی صلی الله علیه وَسلم څخه، او یا د معراج څخه دعلیه الصلوٰة والسلام تر مسجد اقصیٰ پورې.

ولې چې دا اسراء په ایت شریفه سره ثابت دَه. او وروسته تر هغه په احادیثو مشهوره وو سره ثابت ده چې منکر یه ضال او مبتدع دَی او یا د رُویة څخه دخدائ او یا د عذاب القبر څخه منکروی لکه معتزله، او یا منکروي دکرام کا تبینو څخه **ښوونه** : که یو سړی خلګو ته څو زمانه امامت ورکړي او بیا یه وَوَ ئیله چې زه کافر وم، او یا یه وَوَ ئیله چې ما یه قصد تا ښی ته بې اودسه لمونځ درکاوَه. بر هغو خلګو ر اګرځول د لمونځو نسته ولې چې دی فاسق دی او د فاسق خبره ددین په چارو کې نه قبلیږی او د ده فسق د ده په اقرار سره ثابت سُو، بخلاف د هغه چا چې امامت یه ورکړی او بیا وروسته فساد د لمانځه ور ته معلوم سو یا یه کالي مردار وه او یا یه اودس نه در لودی. نو که دی خلګو ته دغه اقرار وکړي پر هغو د لمانځه ر اګرځول لازم دئ. ولې چې ده پاك والي څخه دکالو یا د اودا سه څخه ګاهې سړي غافل وي. قَالَ **وَالْبُلُوْغُ** او بلوغ شرط دی. ولې چې دکوچني لمونځ نفل دی او پر ده په شروع هم نه لازمیږی. نو اقتداء د بالغانو په هغه پسې نه ده رَوا. او لعض مشائخ د بلخ وَائي چې امامَت د نا بالغه په تراویحو او په نفلو کښې روا دی لکن مختاره او مفتیٰ به دا ده چې نه دی رَوا بلکه علامَه مسکین ر وائي چې د حنیفیانو

وَالعَقلُ اوبل شرط عقل قال
په نیز په اتفاق په کشنی پسی لمونځ نه دی روا
دی ولی چې همیشه لیونی پسی لمونځ نه دی روا. او که کاهی به پرسد کیدی او کاهی به
لیونی وو نو پر سدوالی په وخت کی لمونځ پسی روادی او کی عقل په سبب د شرب
مسکر لکه شراب، دلا سرور کړی وو په هغه پسی هم لمونځ نه دی روا ولې چې دد،
لمونځ صحیح نه دی، **مسئله**: په معتوه چې دماغ یې خراب وی او ګډی وړی وائی
هم لمونځ نه دی روا ط قال المصنف **وَالذُّكُورَةُ** اوبل شرط دامامت نروالی
دی. نو په ښځه پسی د نرو لمونځ نه دی روا. ولې چې په حدیث شریف کی راغلی دې.
اَخِّرُوْهُنَّ، یعنی شاته یې کړی. او خنثی یعنی نر ښځی په حکم کی د ښځی دی. او په اشباه
کی وائی چې اقتداء په خنثی پسی صحیح روا ده لکن خلاف د آی العامة ط، در، قال
**وَالقِرَائَةُ** او بل شرط د امامت قرائت د قرآن کریم دی. په نیز د امام اعظم د
هم بوایت وې. او یا ران وائی چې دری ایت شرط دی **تفریع**
نو اقتداء د قاری په هغی معنی به په عرفی معنی په امی پسی نه ده روا. او نه په ګونګی پسی
او نه ده روا اقتداء د امی په ګونګی پسی. ولی امی خو تحریمه قدر ویلای سی او ګونګی
یې نسی ویلای. نو امی حال پر قوی دی. او اقتداء د ه امی په امی پسی یا د ګونګی په ګونګی
صحیح ده. قال **وَالسَّلَامَةُ مِنَ الْاَعْذَارِ كَالرُّعَافِ** او بل شرط د
صحت د امامت سلامتیا د امام ده د عذرو نه (لکه د پزی وینی) ولې چې د معذور لمونځ
خو صحت یې د ضرورت د وجهی نه دی نو د بل سړی اقتداء نه ده پسی روا. لکه چې ترپزه
به وینی راځی یعنی همیشه چې وخت د لمانځه بیله د پزی د وینو نه پر تیرېږي. او کی
یو وخت ترپزه وینی راوتلی هغه معذور نه دی:
**مسئله**: که خولې پسکی او یا د هم نه سی ګیره ولای هغه هم معذور دی. او کی بول
هر ګړی تو ښیږی هغه هم معذور دی. **فائده**: که معذور سړی او دس تازه کړی
او عذر یې جاری وو. او یا پسله او د اسه هغه عذر ور پیښ سو نو اقتداء د بی عذره سړی





نه ده پسی روا. او کی او دس تازه کړی او لمونځ هم وکړی عذر نه سو ور پیښ. نو دغه معذور
په حکم کی د جوړ دی **مسئله**: اقتداء د هغه سړی چې باد و نه یې جاری وی په هغه
سړی پسی چې بولی یې هم تو ښیږی نه ده روا. ولې چې امام دوه عذره لری. او عکس یې
روا دی، ط. قال المصنف **وَالفَاءُ فَاءَةٌ** دا مصدر جعلی دی، امام مطرزی
وائی چې فاء فاء هغه سړی دی چې یو کلمه چې تر خوله راباسی په دیر تکلیف سره. او په
اول کی دررا ایستلو د کلمی مشابه د فاء یې د خولی نه راوزی وروسته خبره پوره کړی
قال **وَالتَّمْتَمَةُ وَاللَّثَغُ** او بل عذر تمتمه هغه سړی دی چې په خبرو کی ناحقه
تاء او میم ځندی ویل کیږی. او بل عذر لثغ دی. مراقی والا وائی چې لثغه په پیښ د لام
او په سکون د ثاء بنورول د ژبې دی د سین نه و ثاء ته او یا د راء نه و غین ته او یا مثل د
هغه **مسئله**: که الثغ په قرآن شریف کی داسی ایات نه سوای پیدا کولای چې د لثغ نه
دی خلاص وی او ده کوشش وکړی او کاوه یې د شپی او د ورځی لکن اصلاح د خپلی
ژبې یې نه سوای کولای چې د لثغه د خلاص کړی نو دی سړی لمونځ یواځی صحیح دی ولې دی
عاجز دی او د بل سړی چې الثغ نه وی لمونځ یې نه دی پسی روا. مراقی.
درویش وائی چې پر دی بناء د ډیرو اماما نو خصوصًا د صحرا د اماما نو امامت نه دی صحیح
ولې چې د دوی د ډیرو ژبې د لثغ نه خالی نه وې. لکن په فتاوی خانیه کی وائی چې شیخ
ابوبکر محمد بن الفضل وائی چې د الثغ امامت د غیر د پاره صحیح دی چې د غه کلمی دی ئی وائی
په لثغ سره دا د ده لغت عربی دی. او دا مذهب مختار کړی ابن امیر الحاج لکن دا مقید په
دے دی چې ده به خپل زیات کوشش کړی وی په دفع کی د لثغ لکن دفع ئی نه کړی" والله اعلم بالصواب
**مسئله**: د الثغ لمونځ هلته یواځی صحیح دی که خولې نه وو چې دی اقتداء پسی
وکړی او که د امامت سړی وو بیا د الثغ لمونځ یواځی هم نه دی صحیح" در، ط، درویش
وائی چې چونکه د ډیرو عوام د لثغ سره مخامخ دی نو باید کوشش وکړی چې لمونځونه په جماعت

وکړی تا چې لمونځ یې دا ختلاف وو زي. په خلاصه کې وائي چې الثغ دې شپږ او ورځې به ډیر وخت دا کوشش وکړي چې دا لثغه د ځانه ځخه لیرې کړي نو کله قدرت نه کی پیدا نو لمونځ یې صحیح دی. او خلاصه والا زیاته کړې ده. که الثغ کوشش ونکړي خو فائده یې نه کوله. نو بیا ده کوشش پریښو نو هم یې لمونځ فاسد دی بلکه تر اخره د عمر به دا کوشش جاري لري.

لکن صاحب الذخیره وائي چې دا اخیره خبره دخلاصې ډیره مشکله ده. ولې هغه عذر چې خلقة دسري همراه وي بنده تغیر نه سي ورکولای. نو دخلاصه دغه خبره دفتوی دپاره موزون نه ده. یعنې څوک عالم دی په دې سره فتوا نه ورکوي. او هم د دې سببه په خزانة الاکمل کې دفتاوی ځخه دفقیه ابو اللیث یې داسې نقل کړي دي. که ځا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ پر ځای د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ووایه. یا یې کُل هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ. په ځای کې د قُــل هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ووایه لمونځ روا دی. چې پر اصلي حرف یعنې الحمد لله یا قُل هو الله احد به یې قدرت نه درلودی او یا په ژبه کښې عارضي علت وو، او فقیه مذکور زیاته کړیده کې په ژبه کې علت هم نه وو لکن پر خوله یې الهمد لِلّٰهِ یا کُل هُوَ اللّٰهُ اَحَد ورغلي لمونځ یې نه فاسدیږي. حاصل دا دی چې امام طحطاوي وائي چې په شرط د دې چې لثغ بل نه وي اختلاف دی. نو ځکه ډیر فقهاوو نه دی ذکر کړي چې په دې کې لوی حرج دی. لکن بیا هم احتیاط د متن پر قول کې دی. او خلک باید د فقیه ابو اللیث په فتوی د قرآن مبارک د صحیح زده کړې ځخه غافل نه کړي، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ، درویش، قَالَ المصنفؒ

(یو نیت) **نِيَّةُ الْمُقْتَدِيْ الْمُتَابَعَةَ مُقَارِنَةً لِتَحْرِيْمَتِهٖ** (کول) دی د مقتدي د متابعت دامام په داسې حال کې چې جوت به وي نیت د ده د اللّٰه اکبر ویلو سره د ده **پوهه**: چې اقتداء په شریعه کې ترلې دي د سړي لمونځ خپل په لمانځه پورې دامام، ط، **مسئله**: اولی دا ده چې داسې ووائي چې زما نیت د شروع دی په لمانځه کې دامام سره او یا داسې ووائي چې زما نیت د اقتداء په امام پسې





یعنې لفظ د لمانځه یې نه ووایه. په داسې نیت کې اختلاف دی. صحیح دا ده چې داسې نیت هم کافي دی. ولې چې د حاله ځخه دا معلومیږي چې دا سړي مقصود او اراده د لمانځه د اقتداء لري. ولې چې ده ځان تابع دامام وګرځاوه. او بعض فقهاؤ وائي چې مقتدي به د دري شیا نو نیت کوي. یو خو نیت دی د نفس لمانځه، او بل تعیین د لمانځه یعنې د ما پښین یا ماز دیګر وغیره. او بل نیت د اقتداء دی په لمانځه کې په امام پسې

**فائده**: په قهستاني کې وائي چې نیت د متابعت شرط دی په غیر کې د جمعې لمانځه او په غیر کې د اختر و د لمانځه. ولې چې هغه بې جماعته نه دي روا. نو نیت د اقتداء نه غواړي"

**مسئله**: امام له په حق کې د ښځو نیت د دوي د امامت شرط دی. بیله نیت د امام د ښځو نه دی صحیح. **فائده**: ښه دا ده چې مقتدي په نیت کې تعیین د امام نه کوي چې فلانی ملا صاحب پسې. ولې که دی تعیین وکړي او امام هغه د ده معین کړي سړي نه وي د مقتدي لمونځ فاسد سو، ط، **پوهه**: چې مصنفؒ مقارنت د نیت د تحریمې سره شرط وبا له. لکن په مراقي کې کښې وائي که مقارنت حقیقةً وي یعنې ظاهراً چې خو ښکاره خبره ده او که حکمي وي چې په ما بین کې د نیت او تحریمې بیګانه کار و نه کړي. وَقد تقدم ذکره فتذکر. قَالَ المُصنفؒ

(او نیت) **وَنِيَّةُ الرَّجُلِ الْاِمَامَةَ شَرْطٌ لِصِحَّةِ اِقْتِدَاءِ بِهٖ** (د نر امام) د امامت شرط دی دپاره د صحت د اقتداء د ښځو په ده پسې. یعنې که امام نیت د اقتداء د ښځو نه وه کړي د ښځې لمونځ نه دی صحیح. درویش وائي په دې مسئله سره هغه مشکل چې د حج په وخت پیدا سي خلاص شو. مشکل دا دی چې محاذات د مینځې په صف کې د نره سره مفسد د لمانځه د نر دی لکه چې مشهوره ده، نو په اوس وخت کې که ځه هم حکومت سعودي د ښځو دپاره جلا ځای ټاکلی دی. خو بیا هم بعضې ښځې په بې شرمۍ سره په هغه وخت کې چې د جماعت وخت نږدې وي طواف کوي نو د طواف په وخت کې جماعت ودریږي

اودغه ښځې ډېرو په مابين کې پاتې شي چې تر هغه معين ځای په پورې نه يې تلای په سبب دازدحام. نو دالته ډېرو په مابين کې په امام پسې اقتداء وکړي. او پر يوه اوبل نغل اوتر مخه اوترشا ددوی نرولاړوی. نو د محاذي نرو لمونځونه خو په قرار د مسئلې د محاذات چې به راسي، اِن شاء الله، فاسد سوه. او دا سي کسان نو په سوودی ددی چاره به څه وي.

بعض ملايان وائي چې د غه محاذي نرو ښځې ته ووائي چې خپل ځای ته ولاړه سه که هغې عمل دده په امر وه نه کړي نو ښځه په لمانځه کې امام نه سوه داخله. او بيله اشتراکه د لمانځه محاذات د ښځې مفسد د نرد لمانځه نه دی. نو د نرو لمونځ صحيح دی او د ښځو دا فاسد دی.

درويش وائي: ديوه حج په موسم کې دامام څخه د حرم شريف پوښتنه وکړه چې ايا محاذات د ښځې د نر لمونځ فاسده وی هغه وويل نَعَم: نوما ورته وويل چې د غه ښځې چې د جماعت په وخت کې د صفو د نرو په مابين کې ولاړې دا خود ښځې ډېرو نرو لمونځ فاسده وی. تا هې ولې ددی مشکل په باره کښې غور نه کوی او د حل لاره يې نه لټوی.! ده راته وويل چې زه فقط د هغو ښځو نيت د امامت کوم چې د حکومت په معين ځای کې لمونځونه کوی د مابين الصفوف د ښځو دامامت نه کوم بلکه په استثناء ښځې خارجوم د نيت څخه نو د دغو ښځو زه امام نه يم او د دغو ښځو لمونځ په ما پسې فاسد دی.

نو د غو ښځو اشتراك په لمانځه کې د نرو سره نسته. نو د نرو لمونځونه صحيح دي. ولې شرط د فساد د نرو د لمونځو اشتراك دی د نرو او ښځو په لمانځه کې. پس مشکل حل سو. وَلِلّٰهِ الحَمد

**مسئله:** محاذات د ښځې مفسد د لمانځه د نر دی که څه هم د جمعې په لمانځه کې يا د اختر په لمانځه کې وي يعنی از دحام عذر نه دی. او دا هم د اکثرو فقهاوو مذهب دی مراقی، او د نهر د خلاصی څخه نقل کړی دی چې په دغو دروو لمونځو کې نيت دامام د امامت د ښځو شرط نه دی. يعنی محاذات په دغو لمونځو کې مفسد د نرد لمانځه نه دی، ط، لکن درويش وائي چې استثناء د دغو لمونځو ډېره مشکله ده. ولې چې عبارات د معتبرو کتابو د فقهي شريفي مطلق دي. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ





اوبل شرط دامامت د څخه

**وَتَقَدُّمُ الاِمَامِ بِعَقِبِهِ عَنِ المَأمُوْمِ** والی دی دامام په پنده سره ترمقتدی. قال في المراقي که چيری د مقتدی پنده خو ترامام وروسته وه لکن ښنه يې اوږده وه چې گوتې يې دامام تر گوتو تيری وی نو پروا نه لري. لکن امام طحطاوی وائي چې دا شرط يعنی تقدم دامام د پندی ترمقتدی چې مصنف شرط گڼلی دی خلاف د مذهب حنيفی دی، حتیٰ که چيری امام او مقتدی ښځې برابر سره ودريږي هم په اقتداء صحيح ده. او که چيری لمونځ په اشاره د سر سره کاوه نو که سر د مقتدی دامام ترسر وروسته وو اقتداء يې صحيح ده. کی څه هم پښې د مقتدی تر پښو دامام د مخه وي. او چيری بالعکس وی د مقتدی لمونځ نه دی صحيح، كذا في الزاهدی.

او په درمختار کې وائي: که امام او يو مقتدی وو نو برابر دی سره ودريږی لکن پر راسته طرف دی امام وی. او که يوه ښځه په امام پسې ولاړه وی کی څه هم زوجه وی يا محرمه وی هغه به ځانته شاه دريږي. **مسئله:** سر ته اعتبار نسته چې په سجده کې دامام سر وړاندې دی او که د مقتدی په او که سره برابر دي. بلکه پښو ته اعتبار دی په تقدم کی لکه مصنف چې وائي يا په محاذات لکه طحطاوی چې ووئيله. قَالَ المُصَنِّفُ

**وَلَا يَكُوْنُ اَدْنىٰ حَالاً مِنَ المَأْمُوْمِ** او بل شرط د اقتداء دا دی چې امام به کم نه وی ترمقتدي په لمانځه کی، مثلاً امام نفلی لمونځ کوی او مقتدی د فرضی لمانځه اقتداء پسې وکړه **پوهه سه:** چې اعتقاد ته د مقتدي او امام اعتبار نسته بلکه لمانځه ته اعتبار دی. نو که مقتدی لمونځ د وترو په واجب بولي. او امام يې سنت بولي اقتداء يې پسې روا ده ولې چې لمونځ خو يو دی، اعتقاد ته اعتبار نسته كما مر آنفا. او د غه رنگه روا دی نيت ديوه سنت کوونکی په بل سنت کوونکی پسې، لکه يو سړی چې سنت د ماخستن کوی او امام يې سنت التراويح گذاري. او يا يو سړی سنت بعدی د ماپښين کوی په هغه چا پسې چې سنت قبلی کوی كذا في البحر الرائق.

**مسئله**: که یوه سړي د ماز دیګر لمونځ کاوه او دوه رکعته یې وکړه لمر ولویدئ نو په اخیرو رکعتو کې یو سړي د ماز دیګر د لمانځه اقتداء پسې وکړه. اقتداء یې رواده ولې لمونځ یو دی که څه هم دغه دوه رکعته قضا لري د امام په باره کې. کذا نقله الشبلي عن الزیلعي وکذا نقله القهستاني. قال

## وَاَنْ لَایَکُوْنَ الْاِمَامُ مُصَلِّیًا فَرْضًا غَیْرَ فَرْضِهٖ

او نه به وي امام لمونځ کوونکی د یوه فرض غیرد فرضو څخه د مقتدي. لکه یو د ماپښین لمونځ کوي او بل د ماز دیګر لمونځ. او یا د وارو د ماپښین لمونځ کوي لکن د دوو ورځو علت یې دا دی چې مقتدي خو د امام سره ځان شریک بولي. نو باید چې لمونځ سره یو وي تا چې د مقتدي لمونځ په ضمن کې د امام د لمانځه راشي.

**فائده** د یوه نذر کوونکی لمونځ په بل نذر کوونکی پسې نه دی روا. ولې چې امام ته ولایت د نذر په مقتدي نشته. نو د ده لمونځ متضمن د مقتدي د لمانځه نه سي کیدای. او که یو سړي ۲ رکعت لمونځ مثلاً په ځان نذر کړي او بل سړي قسم واخستی چې زه به دوه رکعته لمونځ کوم. نو اقتداء د ناذر په دغه حالف پسې نه ده روا. ولې چې د ناذر حال قوي دی تر حالف، مر، او که یو چا داسي وویله چې ما هغه دوه رکعته لمونځ نذر دی چې فلانی یعنی امام په ځان نذر کړی دی. بیا اقتداء پسې صحیح ده ولې چې لمونځ د دوارو یو شو. قال المصنف:

## وَاَنْ لَایَکُوْنَ الْاِمَامُ مُقِیْمًا لِمُسَافِرٍ بَعْدَ الْوَقْتِ فِیْ رُبَاعِیَّةٍ وَلَامَسْبُوْقًا

او بل شرط د صحت د اقتداء دادی. چې نه وي امام مقیم چې لمونځ ورکوي و مسافرو ته پسله وتلو د وخت او نه به مقتدي مسبوق وي. **پوښتنه**: چې د اولې مسئلې صورت دادی چې یو سړي مقیم څلور رکعتیز لمونځ یې کاوه. او په لمانځه کې وخت ووتی. په پاته رکعتو کښې مسافر په ده پسې اقتداء





وکړه اقتداء یې نه ده صحیح. ولې که د غه مسافر که په اوله شفعه کې په ده پسې اقتداء وکړي نو د میانځ ناسته پر امام واجب ده. او پر مقتدي باندي فرض ده. ولې چې د ده لمونځ خو دوه رکعته دی. او د ده اخیره ناسته ده. او که دغه مسافر په شفع ثاني کې په ده پسې اقتداء وکړي. نو د دغو دوو رکعتو قرائت پر مسافر مقتدي فرض دئ او امام ته نفل دی. نو اقتداء د مفترض په متنفل پسې لازمیږي. او که چیرې مسافر مقتدي په امام پسې اقتداء وکړه په وخت کې د ننه او بیا وخت تیر سو نو اقتداء یې صحیح ده. او پر مسافر باندي امام د لمانځه لازم دي. نو د دې وجهي مصنف وویل بعد الوقت، او د رباعي قید په دې سببه وویله چې ثلاثي او ثنائي لمونځ خو په سفر او حضر کې یو ډول دي.

او د دوهمي مسئلې یعنی وَلَامَسْبُوْقًا، صورت دادی چې امام به مسبوق نه وي مثلاً یو سړي په امام پسې نیت وکړي. او د امام یو رکعت یا دوه رکعته د ده څخه تیر سوي وه. امام چې سلام وګرځاوه نو مسبوق خپل قضا ئي رکعتونه ولاړ سو. په دې وخت کې بل سړي په مسبوق پسې اقتداء وکړه دا اقتداء یې نه ده صحیح. قال.

## وَاَنْ لَایَفْصِلُ بَیْنَ الْاِمَامِ وَالْمَامُوْمِ صَفٌّ مِنَ النِّسَاءِ

او بل شرط د صحت د اقتداء دادی چې فاصل به نه وي په مابین کې د امام او مقتدي صف د ښځو. دلیل د دې مسئلې د اقول د علیه الصلوٰة والسلام دی که څوك وو یعنی یو مقتدي چې په مابین کې د ده او د امام واله وه یا لاره وه. او یا صف د ښځو. نو مقتدي له لمونځ نشته یعنی اقتداء پر د اغسې امام پسې نه ده روا. تفصیل د دې مسئلې دادی که چیرې صف حائل د درې ښځې وي. د دوی تر شا د درو نرانو لمونځ فاسد دی تر اخیره پورې د صفونو څو صفه چې وي. او دا غه رنګه د یوه سړي چې د دوی پس راسته وي او د یوه سړي چې د دوی پر چپه طرف وي هم یې لمونځ فاسد دی، قال المراقي وعلیه الفتوی، او بعض فقهاؤ ویلي چې درې ښځې صف کامل دی. نو ته ولو

صفونو چې د دوی ترمنځ وي که د دوی سره برابروي او که نه وي اقتداء په دغه امام پسې نه ده رَوا. وهذا مذهب مرجوحٌ: او که ښځې دوي وي نو فاسِد دي لمونځ د دوو نرو چې د دوی وشاته ولاړ وي. فقط "
یعني نه ترځيره پورې د صفو حتی چې دوه وسته صفو اقتداء صحیح ده مګر یوه ښځه په استه بغل او د یو نر چه پر چپه اړخ د دغو دوو ښځووی هم فاسد دی. او که ښځې یوه وه نو د دری وکسو لمونځ فاسِد دی یو ترشا او دوه پر بغلو دي. **پوښتنه** د ښځو یوه بغل او بل بغل دیوه سړي لمونځ فاسدیږی او د بغلو د نور و خلګو لمونځ ولی نه دی فاسِد **جواب** هغه دوه خلګ چې د دوی پر یوه بغل او بل بغل دي چې لمونځ یه فاسِد سو، هغه دوه خلګ حائِل وګرځید ه د ښځو او نورو خلګو ترمابین. نو سره د حائِل خود نر لمونځ نه فاسدیږی لما تقرر فی الفقه: قَالَ المُصنفُ

## وَاَنْ لاَیَفْصِلَ نَهْرٌ یَمُرُّ فِیْهِ الزَّرُوْقُ وَلاَطَرِیْقٌ یَمُرُّ فِیْهِ الْعَجَلَةُ

اوبل شرط دصحت داقتداء دادی چې فاصِل به نه وی په مابین کی د امام او مقتدیا نو **الْعَجَلَةُ** وَاله. داسی واله چې په هغې کښتی چلیږی یعنی چلیدای سی که بالفعل چلیږی او که نه! او داسی ولې نه نهر کبیر وائی بناء عَلیه که په مابین کی د امام او مقتدیانو په اصطلاح یو لښتی وو او یا په اصطلاح واله وَه چې د کښتی کښتی د چلید و په کښې امکان نه وو نو هغه مانِع د اقتدا ء نه دی» او د غه رنګه په ما بین کی د امام او مقتدیا نو به لویه لار چې مال په کښې تیری دای سی نه به وي. بیا مراد صرف امکان د تیرید و دی بالفعل تیریدل شرط نه دی، مصنفُ په مُراقی کی وَائی چې مذکور فرق د لوی ولې او د کچنی صحیح دی، او بعض فقهاءُ وائې چې کچنی واله هغه ده چې شریکان داوبو د دی شمیرل کیدای سی. او لویه واله هغه ده چې د شریکا نو حساب یه نه وی معلوم» **مسئَله**: که په مذکوره لار متصل صفونه ولاړ وَه بیا اقتدار صحیح د ټولو. او دَه لارې څخه هغه لار مراد ده چې وتلی لیار وی او که بنده وي. په پای هغه مانِع د اقتداء نه ده کذا قال السیدُ فی الشرح وسیأتی تفصیل ذالک،





یقول الفقیر سَامحه القدیر قَالَ الامام الطحطاویُ فی شرح مَراقی الفلاح صـ۲۳۷ اعلم انه اذا اتصل المُصلون وقاموا فی الطریق فان قَامَ واحدٌ منهم فی عرض الطریق و اقتدی بالامام جاز وکره. اما الجَواز فلانه لم یبق بینه وبین الامام طریق تمر فیه العجلة. واما الکراهة فلانه صَلی فی ممر الناسِ» فَلوقام الواحد خلف هذا المقتدی وراء الطریق واقتدی بالامام لایصح اقتدائه لان صلاة من قامَ علی الطریق مکروهة مع کونه غیر صف. فصَار فی حق من خلفه کالعدم و لا یَعد هذا اتصالا ولو کان علی الطریق ثلاث جازت صلوٰتهم وصلاة مَن خلفهم. لان الثلاث صَف فی بعض الروایات وعند اتصال الصفوف لایکون الطریق حائلاً ولو کان علی الطریق اثنان، فعلیٰ قیاس قول ابی یوسفٌ تجوز صلاة مَن خلفهما لانه جعل المثنی کالجمع. وعلیٰ قیاس قول محمّدٌ لا تجوز انتهی»

اقول لما کان هذه العبارة تنفع العلماء و الطلباء خاصةً وهم یَعلمون ترجمتها ترکنا ترجمتها بالافغانیه، وهذا هوالسر فی نقل هذه العبارة العربیه عَلیٰ خلاف وضع قانون هذا الشرح یعنی اللغة الافغانیة، ثم نشرع فی حَل الکتاب ومسائله علی القانون المذکور واقول آه: **پوښتنه**: چې لار او واله که څه هم په مسجد کښې وي هَم مانِع د اقتداء دی. کذا فی الدرر قالَ المصنف فی المراقی چې مانِع د صحّت داقتداء،» پر مذهَب مفتی به دومره فاصِله ده چې دوه صفه پکښې ځائیږي. قَالَ الطحطاوی چې په فتاوٰی خانیه کښې وَائې چې فرجه د دوو صفو تر مابین یو یا دوه زراع ده. لکن یوه سر چې د اتحدید په مابین کی د ځای د مسجدی دورو سته صف بیا تر ځایه پوری دَ ولاړی دَ بل صف په تولو صفو کی. ولې چې یو ذراع شرعی د ځایه څخه دَ ولاړی دَ یوه صف بیا تر ځایه پوری د ولاړی د بل صف کافی نه دی. او بعض فقهاءُ وائې چې یو صف قدر فاصِل بلل کیږی.

**فائده** د اتوله بیان مربوط په لار پوری دی چې د مسجد څخه د با ندی وي. اما په مسجد کی دننه هم څو فراخه فضاء پاتې ده صفو تر مابین وی مانِع د اقتداء نه دَه. که څه هم په دی فضاء کی ډیر صفونه ځائیږی. ولې چې مسجد ټوله دیوی بقعې حکم لري. کذا فی الاشباه والنظائر

نوددی سَببه په فتاوی هندیه کی وَائی. امام په محراب کی پر لمانځه ولاړوی او یو سړی دمسجد دپاسه څخه اقتداء پسی وکی لمونځ صحیح دی. وَفی الطحطاوی قال البزازیؒ چی مسجد که څه هم ډیر لوی وی فاصله په مانع داقتداء نه دَه. لا فی الجامع القدیم لخوارزم ولی چی دَدَغه مسجد شریف څلرمه حصه پرڅلور زره تنبو وَلاړه دَه. چی ددغه مسجد شریف ټولی تنبی شپاړس زره ته رسیږی.

او دا غرنگ مسجد شریف دقدس شریف چی مشتمل دی پر دری مسجده، الاقصیٰ، والصحرا، والبیضآء، کذا فی الحلبیؒ. لکن د دی دوو مسجدو استثناء په دی سَبب ده چی په دی دوو مسجدو کی د ډیری مسافی له سَببه دامام حال پر سړی پوشیده کیږی چی صفوف متصل نه وی. ورنه دغه دوه مسجده که څه هم هر څومره غټ دی یو مکان بَلل کیږی. **مسئله:** عیدگاه هم پر مسجد قیاس ده او د جنازی د لمانځه ځای هم پر مسجد قیاس دَی. کذا فی النوازل والخلاصة والخانیة **فائدَه:** فناء مسجد حکم د مسجد لری نو اقتداء په امام پسی پر دغه فناء کښی رواده که څه هم صفوف سره متصل نه وی. قَالَ المُصنفُ

## وَلَاحَائِطٍ یَشْتَبِهُ مَعَهُ الْعِلْمَ بِاِنْتِقَالَاتِ الْاِمَامِ

او نه به حائل او فاصِل په مابین کی دامام او مقتدیانو یولوی دیوال وی چی د هغه سره پوشیده کیږی پر مقتدی علم پر انتقالاتو ده امام یعنی د رکوع څخه سجدی ته وَغیره. قَالَ

## فَاِنْ لَمْ یَشْتَبِهْ لِسَمَاعٍ اَوْرُؤْیَةٍ صَحَّ الْاِقْتِدَاءُ فِی الصَّحِیْحِ

او که نه پوشیده کیدی پر مقتدی علم پر انتقالاتو دامام په سَبب داوریدو دَ غږ دامام او یا په سبب دلیدلو دامام نو اقتداء پسی صحیح دَه. په صحیح مذهب کی.
**فائده:** او دا مذهب مختار دی د شمس الائمة الحلوانیؒ دلیل یه دادی چی آنحضرت صلی الله علیه وَسلم په حجره کښی دعائشه رضـ لمونځ کاوه او خلگ به پر مسجد کی وه دده مبارک م د لمانځه سره پسی سَم لمونځ کاوَه. **تفریع** بناء پر دغه اقتداء په





امام پسی دمسجد حَرام په هغو کی صحیح دَه. چی متصل په مسجد حرام پوری وی او په دروازو کی دمسجد حَرام د دباندی خوا څخه صحیح ده چی حَال دَامام پوشیده نه وی په سبب د اوریدو او یاد لیدو او په مابین کی دامام او مقتدی نه وی منگر دیوَال.
شمس الائمة الحلوانیؒ وائی چی د هغه سړی اقتداء په امام پسی ده مسجد الحرام صحیح دَه چی پر بام دکور وَلاړ وی. او کور یـه متصل په مسجد الحرام پوری وی. او دغه رنگه رَوا ده اقتداء د هغه چه کوټه کښی چی کور یـه متصل په مسجد الحرام پوری وی او یو دیوال یه په مابین کښی وی او یا تکبیر دامام اوری او یا د مکبرانو کذا ذکر فی التجنیس وَالمزید»
البته د هغو خلگو اقتداء په امام پسی دمسجد الحَرام نه ده صحیح کی څه هم امام وینی او یا یه آواز اوری چی د هغه سړی د منزل او مسجد الحرام تر مابین څړک وی چی موټران په کښی تیریږی او راتیریږی.
**بنهانه فائدَه:** په اوسنی زمانه کی چی په مسجد الحَرام کی بلکه په ټولو مساجدو کی دښارونو مسلمانانو بلکه په لعض لویو قریو کښی هم دا لوی آله ( لاوډ سپیکر) نصب سویدَه. نو د امام تکبیرونه د ډیر لیری ځای څخه هم اوریده کیږی بلکه مکة المکرمة کی د جبل ابی قبیس په لمن او پر سرکورونو هم تکبیرونه د امام او ټوله حالات یه ورمعلومیږی بلکه بعض کورونو والا امام المسجد الحَرام وینی هَم. وهکذا فی المساجد الاخر ببلاد المسلمین التی نصبت فیها هذه الآلة، نو اوس مانع د صحت داقتدا دادی چی په مابین دمسجد الحرام او یا د بل مسجد د دنیا لوی لوی لاری او څړکان سَته، او یا کورونه یه په مسجد الحرام او یا نورو مسجدو پوری متصل نه دی. یعنی چی غیر د دیواله دِبَل فاصل نه لری.
**فائدَه:** لعض مسَاجد د ښارو بلکه پخپله په مسجد الحرام دوه دری چهته او منزله وی او امام پـه لاندی مسجد کی په محراب کی وَلاړ وی او خلگ په دوهم یا دریم منزل کی وَلاړ وی اِقتداء یه په امام پسی صحیح دَه بالشرط المذکور»
**پوښتـنه:** چی مصنفؒ کی د درود وَئیلی دی، چی صحیح دَادَه چی اعتبار په عدم صحت کی. د اقتدا صرف اشتباه لره د حال دامام پر مقتد یانو، او د مختار هم

داخيږ تائيد كړي دى. او په معتبرو كتابو كى دفقهى شريفي هم وړته خبره راغلې ده لكن سره د هغه په دررٍ او بحرِرائق كى وائي چې اختلاف دمكان دمقتدى اود امام هم مانع دا قتداء دى. نوپه هغه كور كى چې په مسجد الحرام پورى متصل هم وى او اشتباه دحال دامام هم نه وى په كښى اقتداء دكور څخه په امام پسى دمسجد الحرام روا نه ده لاختلاف المكان، لان المسجد الحرام كله بقعة واحدة والبيت بقعة اُخرٰى؛

**مسئله:** كه پوركى خلگو جماعت كاوه لكن په مابين كى دامام اومقتديانو دومره فاصل موجود ووچې دوه صفه په كښى ځائيد له اقتداء صحيح ده. ولې چې دا بيت حكم ديوه مسجد لرى. وقد مران الاقتداء فى المسجد يجوز مع وجود الفصل المذكور كذا قال السيد فى شرحه، قَالَ المُصنف:

## وَاَنْ لَايَكُوْنَ الْاِمَامُ رَاكِبًا وَالْمُقْتَدِىْ رَاجِلًا (او بالعكس) اَوْرَاكِبًا

اوبل شرط دادى چې داسى به هم نه وى چې امام

## غَيْرَدَابَّةِ اِمَامِهٖ (لاختلاف المكان)

دى پر يوه بوده سپور وى او مقتدى پياده وى. او يا مقتدى سپور وى او امام پياده وي. او يا امام پر يوه دابه سپور او مقتدى پر بله دابه سپور وي. ولې چې مكان دامام اومقتدى سره مخالفت. او كه پر يوه دابه سره سپاره وه اقتداء يې صحيح ده. ولې چې مكان دامام او مقتدى يو دى. او امام محمدؒ وائي چې كه دابه دامام او مقتدى ډيره سره نږدې وي اقتداء صحيح ده، استحسانًا؛

## وَاَنْ لَايَكُوْنَ (المقتدى) فِىْ سَفِيْنَةٍ وَالْاِمَامُ فِىْ اُخْرٰى غَيْرِمُقْتَرِنَةٍ بِهَا

اوبل دصحت داقتداء شرط دادى چې نه به وى سپور مقتدى په يوه كښتى كى، او امام په بله كښتى كى چې دمقتدى كښتى سره نه وى جفته. **پوښتنه:** چې جوت والى دوه صورته لرى. اول چې دادوى كښتى په رسى يا كيبل سره تړلى وي. او دوهم دا چې په مُده كى د لمانځه دوارى كښتى سره منتى وى كه څه هم سره تړلى نه وي. او ظاهر دوهم احتمال دئ، "ط"





وَلِلّٰهِ دَرُّ المصنفؒ حيث اورد عبارةً محتملة للاحتمالين المذكورين، "در"، لكن دليل ددى مسئلى فقهاء دا وائي چې كه فاصل په مابين كى د دغو دوو كښتى وي. نو دا لكه چې دامام او مقتدى په مابين كى يو والى وي. هغه خو مانع دصحت داقتداء وو كما مَرَّ. نو دا هم مانع دصحت ده اقتداء دى.

ولې عوډ كولو ښكاردى چې كه چيرى فاصل د دغو دوو كښتى وكم وى تر هغو ولې چې د څخه تيريږسوه يعنى چې زورق په كښى چليداى شي. نو بايد اقتداء صحيح نسى. اما فقهاء مطلقًا د دوو كښتى يو په مابين كى اقتداء منع كړيده. الا ان يقال چې په مذكوره صورت كى مقارنت حكمى ستنه وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ، "در"، قَالَ المُصنفؒ:

## وَاَنْ لَايَعْلَمَ الْمُقْتَدِىْ مِنْ حَالِ اِمَامِهٖ مُفْسِدًا فِىْ زَعْمِ

اوبل شرط دصحت داقتداء دادى چې علم به نه لرى. مقتدى په حال كى دامام د داسى شئ

## الْمَامُوْمِ كَخُرُوْجِ دَمٍ اَوْقَيْئٍ لَمْ يُعِدْ بَعْدَهٗ وُضُوْئَهٗ

چې هغه مفسد دلمانځه وى په عقيده كى دمقتدي. لعنى كه څه هم امام دغه شئ مفسد نه كوي په خپل مذهب كى لكه چې دامام يو ځاى څخه وينى و بهيږى او يا امام مِلْئُ الفم قى ووهى. او بيا راو نه گرځول سى اودس يعنى مقتدى په خبروي چې امام پس له دغه شيانو اودس نه دى كړي نوى. امام طحطاوىؒ وائي چې دغه رايه معتمده دفقهاوؤ ده چې اعتبار راى لره دمقتدى ده او پر قول مرجوح چې اعتبار راى لره دامام دى نو اقتداء پسى صحيح ده. كه څه هم هغه شئ مفسد دلمانځه وى په نيز د مقتدي. حاصل دا چې په مذهب كى دامام شافعيؒ خروج دَدَم سائل او يا قئى مِلْئُ الفم اودس نه ماتوي. او د حنيفيانو په نيز اودس په ماتيږى نو چې مقتدى حنيفى وى او امام شافعى المذهب وى او دغه كار پيښ سى امام ته او بيا وروسته تر كار امام اودس هم نه كى تازه نو د حنيفى اقتداء نه ده پسى روا. او دې لره نور مثالونه هم ستنه چې امام تر څلرمى دسر كمه مسح وكړى، د شافعيؒ په نيز كافى ده او د حنيفيانو په

نیز ځلرمه قدر مسح د سر فرض عملی ده. نو بیا هم اقتداء نه ده پسی روا. او یا مقتدی ولیدی چې امام په مستعملو اوبو اودس تازه کړی چې حنیفیان یې روا نه بولي بیا هم اقتداء د حنیفی نه ده پسی روا. او یا د امام سره قدر ما نع د نجاست وُو. بیا د حنیفی اقتداء نه ده پسی روا وغیر ذالک: من المسائل المختلفة بیننا وبین المذاهب الأخر"

**مسئله**: که چیری امام پس له دغو شیانو دونه زمانه د مقتدی څخه غایب سو چې په هغونه زمانه کښی اودس تازه کیدای سی وای نو صحیح داده چې اقتداء پسی روا ده لکن سره د کراهته. وجه د جواز حسن الظن دی چې امام به دغه زمانه کی اودس تازه کړی وی. لکن کراهت هم تحریمی دی. او په وروسته ځای کی وجه د کراهت دا ده چې یقین په شک نه زائلیږی. م، ط، د"

# مسائل شتّٰی لهذا البحث

**مسئله**: که مقتدی په امام خبر وو چې خلاف د مذهب حنیفی څو دی لکن دا نه وو ورته معلوم چې دا امام یا یو ځای وینې سوی دی او یا یې اودس نه دی تازه کړي. او نور هغه شیان چې تیر سوه نو اقتداء پسی روا ده په لحاظ د حسن ظن بالمؤمنین خصوصًا العالِمُ" **مسئله** که مقتدی ته دا معلومه وه چې امام احتیاط نه کوي د اختلاف په ځای کی یعنی مراعات د نورو مذهبونه کوي. نو اقتداء نه ده پسی روا. د مرامات او احتیاط صورت دا دی چې مثلًا دی قئی ووهی نو اودس تازه کوی د حنیفی مذهب په مراعات. او یا یې وینه وبهیږی که څه هم د ده په مذهب کی اودس یې نه ماتیږی لکن د پاره د مراعات د مذهب حنیفی مثلًا دی اودس تازه کوی وغیرذالک" لکن پوه سه: چې د بل مذهب مرامات نه کول خاص دی په شرطو او فرضو کارو کښی نو اقتداء نه ده پسی روا. او که چیری مراعات د شرطو او ارکانو یې کاوه د نورو مذهبو د کبله. لکن په واجباتو کی مراعات د نورو مذهبونه کاوه مثلًا په اولو دوو رکعتو کی ضم د سورت نه کاوه بلکه صرف په اَلحمدُ





لله شریفه سره یې اکتفاء کوله او یا مثلًا په اوله ناسته کی تر التحیات زیاتی دعاوی په قصد کولې. او یا په سهوه سره لکن سجده سهوه یې بیا نه کوله. او نور دی قسم واجباتو کی مراعات د بل مذهب نه کاوه. نو اقتداء خو پسی صحیح ده لکن سره د کراهته التحریم.

**پوښتنه**: په مذکوره صورت کی لمونځ دی مقتدی یوازی وکړی ښه دی. او که په دغسی امام پسی وکړی ښه دی. امام طحطاویؒ وائی یوازی لمونځ دی سړی کړی ښه دی. او که امام مراعات د نورو مذهبو په شرائطو، ارکانو، واجباتو کی کاوه مګر په سنتو کارو کښی مراعات نه کاوه. مثلًا په دوهم رکعت یې ناسته د استراحت کوله او یا به تسبیحات د رکوع او سجدی تر دری واره کمی وئیلی. اقتداء پسی صحیح ده سره د کراهته التنزیه مګر اقتداء افضله ده. او د دی مسئلی څخه دا په طریق اولیٰ معلومه سوله چې په مستحبو کارو کښی که امام مراعات د څلور مذهب نه کوله یعنی اقتداء پسی صحیح ده بلکه افضله ده. وفی المراقی: وان علم انه یحتاط فی مواضع الخلاف یصح الاقتداء به فی الاصح" او په مجتبیٰ کی وائی چې اقتداء پسی مکروه ده لکن دیری په شرح کښی د مجتبیٰ وائی چې اقتداء نه د پسی مکروه که د مقتدی پر دې علم وو چې امام د مقتدی د مذهب حنیفی په باره کښی احتیاط کوي.

**تفریع** په حرمینو شریفینو کی چونکه حجاج ته حال د امام د مسجدینو شریفینو هیڅ نه دی معلوم نو د دی سببه اقتداء پسی روا ده بد ګمانی به سړی نه کوي.

**مسئله**: په حرمینو شریفینو کی د ماز دیګر لمونځ تر یک چندی وروسته تر دوچندی د څخه چې د امام اعظمؒ ابوحنیفهؒ په نیز د ماز دیګر وخت نه دی داخل سوی. آیا حنیفی حاجیان به جماعت پریږدی او پس له دوچندی څخه به یوائځی لمونځ کوی او یا بې په اوطاقو کښی په جماعت کوی دا سی ښه دی او که لمونځ په لوی جماعت کی وکی یعنی په امام الحرمین پسی وکړی دا ښه دئ.

**جواب**: چونکه د یارانو مذهب دا دی چې تر یک چندی وروسته دستی وخت د ماز دیګر داخلیږی. او دا هم یو روایت دی د امام اعظمؒ څخه نو چونکه خروج د مذهبه

ځکه بالکلیة نه لازمیږی. نو دی کبله دا عظیم الشانه جماعت د حرمینو شریفینو باید سرې نه پریږدی سه ومن مذهبي حب الديار لاهلها :: وللناس فيما يعشقون مذاهب ::

**مسئله**: که مقتدی د امام په داسی کار خبر وو چې په مذهب کی د امام اودس په ماتیدی لکن د مقتدی په مذهب کی اودس نه په ماتیدی، لکه مسه کول د ښځی او یا د ذکر مسه کول او نور دا غسی کارونه. چې د حضراتو اما مانو په نیز اودس په ماتیږی او د حنیفیانو په نیز اودس نه په ماتیږی. او مقتدی په دی هم خبر وو چې امام نه دی په دغه کار خبر. نو په نیز د اکثرو فقها وو اقتداء پسی روا ده او امام هند وانی وائی چې اقتداء نه ده پسی روا. ولی چې که امام خبر سی نو خپل لمونځ خو یه باطل بولی نو د مقتدی لمونځ تبعًا باطل شو. او د اول مذهب چې اصح هم دی دلیل دا دی. چې مقتدی خو د امام لمونځ روا بولی او د مقتدی د لمانځه په باره کښی د ده خپله رایه معتبره ده. فوجب القول بجواز صلوة المقتدی خلف هذا الامام كذا في التبيين وفتح القدير والمراق.

**پوښتنه**: تا دا خبره وکړه چې مقتدی په دې هم خبر وو چې امام په دغو کارو آه د دې بے خبری څه فائده ده. **جواب** د دی خبری فائده دا ده که مقتدی په دې خبر وو چې امام په دغو مفسدو کارو د ده په مذهب کی خبر دی نو د ده لمونځ نه دی پسی صحیح بلکه مقتدی لکه سات چې تیروی. او نه ده لمانځه نیت جازم کولای سی فلا وجه لصحة صلاته "مر، در"

**مسئله**: که د مقتدی غالب گمان دا وو چې امام اودس نه دی کړی او یا دا گمان وو چې د امام پر کالو نجاست مانع د صحت د لمانځه دی یعنی تر قدر د درهم نو خو اقتداء به دی نه وی پسی روا. او که څه وروسته تر لمانځه مقتدی ته معلومه سی چې زما هغه گمان پر امام باندی غلط وو نو دا غه لمونځ خو یه نه دی روا. ولی چې اعتبار د ده ظن لره دی نه نفس الامر لره. بلکه بیره د کفر پر ستته "ط، س، در" **مسئله**: که په هغو کارو کی چې د مقتدی په مذهب کی مفسد وه او د امام په مذهب کی نه وه مفسد لکن په وخت کی د اقتداء مقتدی د امام مقلد سو.





او یا په هغو کارو کی چې د امام په مذهب کی مفسد وه. لکن د مقتدی په مذهب کی نه وه مفسد. لکن امام د مقتدی د مذهب مقلد سو بیا خو لمونځ او اقتداء صحیح ده "لاتحاد معتقدها" طحطاوی.

**مسئله**: که دوو کسانو مادلانو و مقتدی ته وویل چې امام بولی وکړی او اودس یه نه کی تازه پر لمانځه ورېدی د مخه تر اقتدا او وخو اقتداء یه نه ده پسی روا او پس له لمانځه وو دغه لمونځ به مقتدی را اگرځوی. **مسئله** که امام و مقتدیانو ته وویل چې یو یا دوه لمونځونه می بې اودسه درکړی دی. نو امام عدل او ښه سړی وو. نو د ده قول دی ومنی او هغه لمونځونه دی را اگرځوی. او که امام فاسق وو لازم نه ده چې د ده په خوله عمل کوی او لمونځونه را اگرځوی. لکن مستحبه ده چې را وی گرځوی **مسئله** او که مقتدی خبر سو د امام په لمانځه کی په یو مفسد د لمانځه "لایجوز الاقتداء به اجماعًا" ط

قَالَ وَصَحَّ اِقْتِدَاءُ مُتَوَضِّئٍ بِمُتَيَمِّمٍ او صحیح ده اقتداء د اودس والا یعنی مقتدی په تیمم والا پسی یعنی امام **پوښتنه**: چې دا مذهب د امام اعظمؒ او د امام ابو یوسفؒ دی. او امام محمدؒ وائی چې اقتداء یه نه ده پسی صحیح **فائده**: اقتداء د اودس والا وو په امام متیمم پسی صحیح ده په اتفاق د جنازې په لمانځه کی "مر" او مبنی د دی خِلاف پر دی ده چې خلیفه والی د تیمم د اودداسره څه په سبب دی شیخان وائی چې خلیفه والی په مابین کی د آله د اودداسه چې اوبه او د آلی د تیمم دی چې خاوره دې. او د ادوی آلی سره برابر دی لقوله تعالی: فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا" نو اقتداء مذکوره صحیح ده. او د امام محمدؒ مذهب دا دی چې خلیفه والی په مابین کی د طهارتینو دی او د اشك نسته چې طهارت د متیمم خو کمزوری دی تر طهارت د متوضی. ولی چې متوضی پښی پر یولی دې او پر سر یه مسح کړې ده. او متیمم صرف پر مخ او لاسو مسح کړې. نو په دغه اقتداء کی بناء د قوي پر ضعیف لازمیږی.

*اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولوالديهما آمين*

قَالَ **وَغَاسِلٍ بِمَاسِحٍ** او صحیح ده اقتداء دغاسِل په مسح کوونکی پسې یعنی که ماسِح دموزې وی او که دسِکڼدې وی او که ماسح د تِوکره پر پوی دانی باندې چې نو وغیره نه څَندې بهیږی "لِاسْتِوَاءِ حَالِهِمَا" "ط"

**پـوهـه**: چې ماسِح پر جبیره اولیٰ دی تر ماسِح د خُف (موزې) ولې چې مسح د جبیرې پر منزله د غُسل د ما تحتها دی "بِخِلَافِ الخف" چې مسحه یې تکه پر پوله د پښې نه ده.

**فَائِدَه** که د دانې څخه وینې یا نوونه وغیره بهیدل بیا نو دی معذور دی نو په ده پسې اقتداء نه ده روا مګر د بل معذور چې د هغه غوندې وی یا تر ده ادنیٰ وی حالاً، "ط" قَالَ المصنفؒ فی نور الایضاح:

**وَقَائِمٍ بِقَاعِدٍ** او صحیح ده اقتداء د ولاړ سړی په ناست پسې، ولې بیهقیؒ په کتاب المعرفة کې روایت کړی چې آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیهِ وَسَلَّم د مرض موت په وخت کې د ما پښین لمونځ ده شنبې په ورځ یاد یکشنبې په ورځ په ناستی خلګوته ورکړی او خلګ ټول ولاړ وه۔ او د دوشنبې په ورځ د سحار لمونځ یې په ابوبکر الصدیق رضی اللّٰه تعالیٰ عنه پسې یو رکعت وکړی. او ده چې سلام وګرځاوه علیه السلام د اول رکعت قضاء راوړه. "وَمَاتَ فِي ذَالِكَ اليَوم صَلَّی اللّٰه تعالیٰ علیه وَسَلَّم"، "م د"

**فَائِدَه**: دا مذهب د شیخینوؒ دی او امام محمدؒ وائی چې اقتداء د قائم په قاعِد پسې نه ده روا. ومذهب الشیخین اولیٰ واقویٰ دلیلًا کما مر فی الحدیث۔ لکن امام طحطاویؒ په حواله د برهان ته قول د امام محمدؒ احوط بولی. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَاب قَالَ

**وَبِاَحْدَبٍ** او د غه رنګه روا ده اقتداء د ولاړ په کوږه پښت سړی پسې. نو که چیرې کږ والی د ده وحدته د رکوع نه وو رسیدلی خو اقتداء پسې روا ده په اجماع پر صحیح مذهب. او که کږ والی وحد ته د رکوع رسیدلی وو مګر ده چې به رکوع کوله. لږ به یې نور هم ملا کږه کوله نو په نیزد شیخینوؒ اقتداء پسې روا ده. او دا هو دی مذهب د عامو فقهاوو وَهُوَالاصح. وَقَال محمدٌ لایجوز الاقتداء المذکور، امام زیلعیؒ شارح الکنز وائی چې په فتاویٰ ظهیریه کښې وائی وهوالاصح، واذا اختلف التصحیح یجوز العمل به





بکل من المذهبین قَالَ المُصَنفُ:

**وَمُومٍ بِمِثْلِهِ** او د غه رنګه صحیح ده اقتداء د اشاره کوونکی په مثل سړی د ده که دواړه امام او مقتدی لمونځ په اشاره کوی په ناسته. او که دواړه په پروته کې اشاره کوی او یا امام په ناستی اشاره کوی او مقتدی په پروتی او عکس یې نه دی روا قَالَ المُصَنفُ:

**وَمُتَنَفِّلٍ بِمُفْتَرِضٍ**

او دا غه رنګه روا ده اقتداء د نفلی لمونځ کوونکی په فرضی لمونځ کوونکی پسې. ولې چې دا بناء ده د ضعیف پر قوی باندې. **سـوال**: متنفل خو په څلورو رکعتو کې قرائت وائی او هم ضم د سورت کوی. او پر امام باندې په اولو دوو رکعتو کې قرائت فرض دی او ضم د سورت واجب نه دی په اخیرو دوو رکعتو کې. واجاب عنه المُصنفؒ فی المراقی بقوله وَصَارَ تبعًا لِاِمَامِهِ فِي القِرَائَةِ" یعنی دی د امام تابع وګرځیدی په قرائت کې: قَالَ المُصَنفُ:

**وَاِنْ ظَهَرَ بُطْلَانُ صَلوٰةِ اِمَامِهِ اَعَادَ** او که ظاهر سو باطل والی د لمانځه د امام یعنی په فوات د شرط یا د رکن. او دی ګرځوی خپل لمونځ. یعنی پر مقتدی لازم دی را تګ په فرضو سره لقوله علیه الصلوٰة والسلام: اذا فسدت صلوٰة الامام فسدت صلوٰة مَن خلفه" قَالَ المُصَنفُ:

**وَاِذَا طَرَءَ المُبْطِلُ لَا اِعَادَةَ عَلَى المَامُومِ** او که عارضی پېښ سو باطلوونکی د لمانځه دامام نو اعاده نسته پر مقتدی، لکه چې امام نَعُوذُ بِاللّٰه پس د جماعت ور کولو مرتد سی" او یا امام د جمعې په ورځ وخلګو ته د ما پښین لمونځ څلور رکعته په جماعت ورکړی. او بیا امام د جمعې د لمانځه وخواته روان سو مقتدیان نه وَلاړ. نو د امام د ما پښین لمونځ خو باطِل سو په سبب د سعی د جمعې لمانځه ته او د مقتدیانو لمونځ پر ځای دی را ګرځول یې نسته،

اللّٰهم اغفر لمؤلفه و لکاتبه: الناشر مکتبة القراءة والتجوید. کانسی روډ کوئټه

## وَيَلزِمُ الِاِمَامَ اِعلَامُ القَومِ بِاِعَادَةِ صَلَاتِهِم بِالقَدرِ المُمكِن

اولازم ده پر امام هغه امام چې ده ته فساد دخپل لمانځه معلوم سو خبره وَل دقوم یعنې هغه کسان چې په ده پسې د هغه لمونځ کړی وی په هغه اندازه چې امام ته ممکنه وي که سړي پسې استوی او یا کاغذ پسې لیږی. قَالَ المُصنفُ:

## فِي المُختَارِ

په مختاره مذهب کی ولې چې حضرت علی رضی الله تعالیٰ عنه خلکو ته لمونځ وړکړی. وروسته وده ته معلومه سوه چې ما اودس نه دړ لودی. نو حضرت علیؓ هم خپل لمونځ راوګرځاوه او خلګ یه هم امر کړه په راګرځولو دلمونځو. او هغه حدیث چې مصنفؒ په مَراقی کښې راوړی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم خلګوته لمونځ وړکړی. او بیا راغلی تر و یبنتا نو یه اوبه تویَیدَلی یعنې غسل یه کړی وو بیرته یه لمونځ راوګرځاوه د صحیح کتابو سره برابر نه دئ.

چې په سنن ابی داوٗد کی داسی راغلی دي. چې یو سحار رسول الله صَلی الله علیه وَسَلم په لمانځه کی داخِل سُو یعنې تحریمه یه وَوَیل او بیا خلګو ته اشاره وکړه چې پر خپلو ځایو اوسی او بیا وروسته راغلی او تر سر یه اوبه تویَیدَلی نو جماعت یه وړکړی. او بیائی داسی وفرمایله: اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ مِثلُکُم، یعنې یو شی می هیر یږی: وَاِنِّی کُنتُ جُنُبًا، یعنې زه جنب وم او جنابت می هیر وو، او د دی حدیث ځخه خو دا نه معلومیږی چې خلګو هم په لمانځه شروع ورسره کړی وه. ولې چې ممکنه ده چې آنحضرت صَلَی اللهُ عَلیهِ وَسلم دی پس له تکبیر تحریمه ځخه بلا مهلته داخبره کړی وی. چې خلګو لا شروع په لمانځه نه وه کړی. او په مسلم شریف کی خو صریح داسی راغلی دی چې نه علیه السلام او نه قوم په لمانځه شروع کړی وه ولی چې د مسلم روایت داسی دئ. فاتی النبی صلی الله علیه وسلم حتی قام فی مصلاه قبل ان یکبر قام فانصرف آه. وفی الدرایه لایلزم الامام الاعلام اذا کانوا قومًا غیر معینین. وفی الخزانة: لانه سکت عن خطاء معفو عنه وعن مجاهم وان کانوا مختلفا فیه والفتوی علیٰ قول المصنفؒ: مر، در، ط





## فَصلٌ يَسقُطُ حُضُورُ الجَمَاعَةِ بِوَاحِدٍ مِن ثَمَانِيَةَ عَشَرَ شَيئًا

شَيئًا، ساقطیږی حضور و جماعت ته په یوه د اتلسو[18] شیانو یوه سره: چې مصنفؒ مطلق حضور د جماعت د لمانځه وَوَایه. چې په ر اتلو نکو شیا نو کی چې ۸ اشیان دی ساقطیږی. یعنې که سړی جماعت پریږدی گناه ګار نه دی. د دی سببه چې دجمعی د لمانځه جماعت ته او د اخترو د لمونځو جماعت ته هم شامِل سی. نو دجمعی دَ وَرځی لمونځ خو ظهر راکعته وکړی چې د ما پښین لمونځ دی. او د اخترو لمونځو نه عوض نه لري بات سوه، ط، در، قال المُصنفُ:

## مَطَرٌ شَدِيدٌ وَبَردٌ وَخَوفٌ وَظُلمَةٌ وَحَبسٌ وَعَمًى

اول ساقطوونکی دجماعت سخت باران دی یعنې لږ ځاځکی ساقطوونکی نه دي. ۲ او ایخ دی لکن مطلق یخ نه دی. ۳ او بل بیره ده دښمنه ځخه یا دغله ځخه او یا پر کور باندی یا د سپو ځخه ۴ او بل تاریکه ده، ۵

## وَفَلَجٌ وَقَطعُ يَدٍ وَرِجلٍ وَسَقَامٌ وَاِقعَادٌ وَوَحلٌ

## وَزَمَانَةٌ وَشَيخُوخَةٌ وَتَكرَارُ فِقهٍ بِجَمَاعَةٍ تَفُوتُهُ وَ

او بل دا دی چې سړی بندی وي. ۶ او بل روند والی دی، ۷ او بل اَبلج دی، ۸ او بل دا چې یو لاس

## حُضُورُ طَعَامٍ تَتُوقُهُ نَفسُهُ وَاِرَادَةُ سَفَرٍ وَقِيَامُهُ

یا یو پښه یه پرې وي. ۹ او بل مریضی ده، ۱۰ او بل دا دی چې شل وی او پرکښه نا ست وی، ۱۱ - او بل دا چې، په لار کی ختي او چکړ وی. ۱۲ - او بل دا چې

## بِمَرِيضٍ وَشِدَّةُ رِيحٍ لَيلًا لَا نَهَارًا

تلای نه سی ریږ دی، ۱۳، او بل سپین ږیر توب دی، ۱۴، او بل دا چې د چا سره تکرار د فقه

کوی چی که دی جماعت ته ولاړ سی هغه تکرار باتیږي. ۱۵. او بل دا چی ډوډی حاضره سی چی د ده زړه ډیر شوق ور ته کیږي. ۱۶. او بل دا چی اراده د سفر لري. ۱۷. او بل دا دی چی دیوه مریض په خدمت بخت وي. ۱۸. او بل دا دی چی سخت باد وي لکن د شپی نه د ورځی"

## تشریحات و توضیحات

**پوښتنه:** چی دسقوط دجماعت معنا دا ده که سړه دیوه د دغو ۱۸ عذرونه سره جماعت پرېږدي گناه کار نه دئ. او که سړه دعذره جماعت ته ځان ور سوی بیا ثواب ډیر لري. اول عذر چی باران دی د هغه په باره کی په شرح کی د مشکوة شریف دا سی راغلی دی چی راوی وائي چی مونږ ور سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کی د حد یبیه. نو پر مونږ باران شروع سو په دا سی توگه چی زمونږ د څپلو لاندی خوا یې نه کړه لنده. نو یوه نعره کوونکی ناره وکړه د علیه السلام له خوا څخه" صلّوا فی رحالکم" تاسی لمونځونه په خپلو اوطاقو کښي وکړی" نو ددی حدیث شریف په رڼا کی چی په بعض نسخو کی د نور الایضاح چی ما هم دا نسخه را نقل کړیده. قید د شدید ضائع دی. اللهم الا ان یفرق بین الحضر و السفر فتامل. او په دوهم عذر یوړی چی برد شدید" دی ملا علی قاری په شرح کی د موطا حرّ شدید هم جوت کړی دی"

**پوښتنه:** چی د برد شدید او حر شدید اندازه په ظن یوړی د مبتلا به اړه لري، او دریم عذر چی خوف دی عام دی که د ظالم څخه پر ځان بیریږي او یا پر مال بیریږي او یا مؤجر او قافله ځندی نه ځي، که دی جماعت ته ولاړ سي. او یا پر دی بیریږي چی کرزه جماعت ته ولاړ سم کور ته به می غله ورسي. او یا یه ماینه او کوچنیان بیریږي کړدی د ماخستن و لمانځه ته ولاړ سي. او پنځم عذر چی حبس دی چی مظلوم وي ناحقه یه بندی کړی وي. او یا پور قرض بندی کړی وي او





دی مسکین وي د پور دور کړی توان نه لري. او که غنی وو بیا په جماعت نه کولو یه غاړی بندی دی ولی خو پور دی ورکړی ځان دی خلاص کړي.

او شپږم عذر چی ړوند والی دی د حضرت امام اعظمؒ عذر دی که څه هم فائده لري ولی قدرت بالغیر ته اعتبار نسته. او یا زان وائي کی قائد در لودی معذور نه دی په ترک د جماعت گناه کار دی" او اوم چی فلج دی هغه هغه اندازه دی چی دی د فلج سره تگ نه سی کولای. نو کی فلج صرف پر لاسو وو پښی یه تیاری وی بیا دغه فلج عذر نه دی، او وم عذر چی یو لاس یا یوه پښه به بی پری وی هغه دا دی چی پری لاس او پښه یه پر یوه طرف نه وی چی ده د اسی پری والی سره د بغل پر لکړی تگ ممکن دی. او که دواړه پر یوه طرف وه هغه په طریق اولیٰ عذر دی. ولی تگ ور سره مشکل دی. او ط قطع دیوی پښی هم عذر بولي. او بل عذر چی چکړ دی معنیٰ دا ده چی باران هم ودریږي. ولی چی د بارانو عذر خوتیر سو. او ۱۳ عذر چی سپین زیری توب دی د اسن معین نه لري بلکه فقهاوو دومره قدر وائي د سپین زیری توب د سببه د جماعت د تلو طاقت نه لري.

او هغه د انسا نانو په بدنو یوړی اړه لري. ز چی په خپله اوس تقریباً د ۸۳ کالو یم لکن الحمد لله جماعت ته تگ را باندی تکلیف نه دی. او ۱۴ عذر چی تکرار د فقهی شریفی دی. مر وائي چی. لا نحو و اللغة و هکذا الصرف وغیرها"

نو ددی څخه دا معلومیږي چی مراد فقه څخه د لته فقه مصطلح یوازی نه ده. بلکه علم عقائد او علم تفسیر او علم حدیث ته هم شامله معنیٰ مراد ده" او امام با قلانیؒ چی دا عذر په فقه مصطلح یوړی خاص کړی دی لکن الاول اولیٰ" م، ط،ح، د ر" لکن دا خبره دی هم ستا په غوږ کی وي چی همیشه به په بهانه د تکرار د فقه شریفی جماعت نه پریږدي. او کی دا غسی کوله هغه معذور نه دی بلکه قاضی دی تعزیر ور کړي. او شهادت یه نه قبلیږي. مگر نه که ده دا عذر وکړی چی امام د مسجد مبتدع دی یا وهابی دی او یا سلفی دی او یا په اصطلاح اهل حدیث دی چی دا ټوله مراعات د مذاهبو نه لري. او یا مراعات د شرائطو او د ه ارکانو د لمانځه نه کوي بیا معذور دی په ترک کی د جماعت"

او نځلسم عذر چې حضور د طعام وُو. چې دونه اندازه وږی وی چې په لمانځه کی یه فکر په ډوډی کی وو. اوحضور د لمانځه حَندی فوت کیدُی. **مسئله**: که سړی ډیر وږی ؤو خوته هغو دی ډوډی نه راوړی چې جماعت کیږی. اوکه چیری ډوډی راوړه سوه لکن داسی خواړه وه چې که دی جماعت وکی ضغه خرابیږی لکه سوړوا. یا غوړمه چې ډیره سړیدله. بیا هم دا عذر دی جماعت دی پریږدی.

**مسئله**: که په وخت کی دَقیام دجماعت غولو، یا بولو یا باد ډیر په عذاب کی چې په لمانځه کی به دَ هغو په دفعه کولو اخته وو. نو اول دی هغه کار وکړی که څه هم جماعت حَندی فوتیږي. او ۱۶ عذر چې اراده دسفر ده مراد ادی چې په برابر ولو د اسبابود سفر اخته وو چې جماعت ته یه فرصت نه در لودی. او ۱۷ عذر چې قیامه د مریض دی د هغه معنا داده چې هغه مریض بل خوك ښځه خادم نه لری. او ده په غیبوبت سره وهغه مریض ته ضرر رسیږی نو جماعت دی پریږدی او د مریض خدمت دی وکړي. قَالَ

---

# وَاِذَا انْقَطَعَ عَنِ الْجَمَاعَةِ لِعُذْرٍ مِنْ اَعْذَارِهَا الْمُبِيْحَةِ لِلتَّخَلُّفِ

او چې سړی قطع سی دجماعت څخه په سبب دعذر د هغو اعذارو چې ده ته یه تخلف د جماعت روا کړی وو **فَائِدَه**: نوکه ددغه سړی په زړه کی محبت دجماعت کولو وو لکن عذرونه یه مانع سوه. قَالَ الْمُصَنِّفُ ؒ

## يَحْصِلُ لَهٗ ثَوَابُهَا

حاصلیږی یعنی در رب جل جلاله دَخوا څخه ثواب دجماعت دَ لمانځه ور کول کیږی. لقوله علیه الصلوٰة والسلام انما الاعمال بالنيات ولكل امرئ ما نوىٰ، یعنی چې نیت دَسړی کار خیر وی لکن مانع بلا اختیار ور ته پیښ سُو. نوکه څه هم هغه عمل دخیر ونه کی خدای جل جلاله ثواب دهغه عمل دخیر ور کوی رواه البخاری، در م، ط غ، او امام عسکری روایت کوی په امثال کی او بیهقی هم په شعب الایمان کی روایت کوی. لکن وائی چې اسناد یه ضعیف دی دا نښه چې هغه دا خبره وعلیه السلام ته پوره ته کوله. نِيَّةُ الْمُؤْمِنِ اَبْلَغُ مِنْ عَمَلِهٖ، او په بل روایت



کی، خَيْرٌ من عمله، در، ط، مقاصد حسنة، دروليش وائی چې چونکه خدای جل سلطانه ونبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته جَوَامِعَ الْكَلِم ورکړی وي. نو دغه حدیث مبارك سره داختصاره دلفظ دخو معنا وو محتمل دیٔ. یو چې دجماعت په لمانځه پوری مربوط معناده هغه داده. یو سړی چې دجماعت سره یه محبت وو سره د ختو او چکره چې عذر مبیح وو ده جماعت لمانځه ته د مسجد پر خوا روان سُو په لاره کی وښویدی خوږ سو کالی یه په ختوسوه خو بیا هم جماعت وکړي د دغه سړی تر عمل دجماعت دکور نیت او محبت خیر دیٔ. چې لمونځ یه کورکړي وای. ولی چې په هغه نیت او محبت سره خدای ثواب د ده ورکاوه. ددی خوږیدو او ښویدو څخه به هم خلاص سوی وایٔ.

یا مثلا سپین ږیری چې عذر مبیح یه هم درلودی لمانځه ته دجماعت راووتی او په لاره کی ډیر زحمت پر تیر سُو. خو جماعت یه وکړي ددغه تر عمل دجماعت دکور نیت او محبت ابلغ دیٔ. ولی ثواب دجماعت بیله خطره خدایٔ ورکاوه. او یا مثلا یو سړی سره دده چې دبولو یا غولو څخه په تکلیف وو مگر بیا هم ځان ټینګ کړی جماعت یه وکړی ددغه سړی تر عمل دجماعت هغه محبت او نیت یه خیر وُو. چې عذر یه ایسته کړی وایٔ او بیا یه لمونځ تنها کړی وای. او یا مثلا یو سړی د ډیره باران سره سره مسجد ته راروان سُو. په لاره یه کالی لانده سوه چې ورسره په تکلیف سو دَغه سړی دپاره دجماعت تر عمل دکور محبت او نیت چې لمونځ یه یوازی کړي وای خیر وو. ولی چې ثواب دجماعت خو حاصل وو ده کور په لمانځه کی. اود کالو د لندیدو څخه هم خلاص وایٔ، وهکذا الامثلة الاخر تتفكر فيها "

او دا هم احتمال لری چې دا حدیث مبارك دی عام وی په خاصه موضوع کی دجماعت دی نه وي. او په مؤمن کی لام دپاره دجنس دی. نو معنیٰ د حدیث مبارك داسی ده چې نیت دیو جنس مؤمن تر عمل دبل جنس مؤمن خیر دی. لکن دا قضیه پر دی تقدیر مهمله ده په قوت کی جزئیه ده کلیه نه ده. مثلا یو مؤمن یو نفلی خیرات ونه کوی. او یا نفلی حج کوی او یا نور د دغه قسم څخه کارونه کوی لکن دریا او سمعی دپاره. بل مؤمن وی چې مسکین

وی د خیراتو توان نه لري لکن نیت یې داوي چې که ما د نیا درلودلای ما به هم داسې خیراتونه
او نفل جمونه کولای. نو دغه مؤمن دغه نیت خیر دی تر هغه ریائي کار و د هغه بل مؤمن
ولې چې په نیت کې خو ریا نسته. او د ریا کار د عمل خیر ثواب نسته، او هغه مسکین دداغه
نیت ثواب خدای ورکوي. او یا معنی د خیریت ده نیت د مؤمن تر عمل د مؤمن دا ده چې
نیت بې عمل صحیح دی په نفلي کارو کې او عمل بیله نیت ثواب نه لري، لکه یو سړی د ولی پر
غاړه په ګرمۍ کې مخ او پښې او لاسونه پرې مینځي. او سر یې هم لوند لاس تیر کړي د ګرمۍ
د سببه نیت داوداسه یې نه وي. نو د دی سببه داوداسه ثواب خو یې نسته که څه هم مفتاح
الصلوٰة خودی. بخلاف د دی که دغه سړي نیت داوداسه د پاره د ثواب کړي وای لکن
داوداسه کم ما نعو ورته پیښ سي د نیت ثواب یې وو، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا اَرَادَهٗ رسول اللّٰه صلی اللّٰه
علیه وَسَلم:

# پَه زړه پوري بیَان
# داهل السُّنَّة والجماعَت د زړه ارمَان

**پوښتنه**: چې په دی اوسو کلو کې یوه طالب علم یوه رساله ماته راوړه چې نوم یې
تحقیق العقائِد، حاشیه شرح العقائد پر نوشته وه، طالب علم خو مطالعه کړې وه
او هغه بعض ځایونه چې مصنف د رسالې پر علامه تفتازانيؒ او پر مفتي الثقلین عمر النسفيؒ
او بلکه پر ماتریدیه وؤ او اشاعره وؤ، او پر ما یې هم حکم د مشرك کړی وو دې طالب نښانی
کړي وه. نو ما چې مطالعه کړه تول رساله حیران ورته ولاړم چې دا څونه جسور او
بیوقوف انسان دی چې پر دی دوو لویو لو داهل السنة والجماعت یعنی ماتریدیه
او اشعریهٔ وو څونه په بیباکۍ او بې شرمه تو ګه اعتراضونه کړي دی. او هیڅ د خدای
جَل جَلالهٗ څخه نه دی شرمیدلی. نو ځما نه سره می فکر وا هه چې د دی رسالې په باب کې
سړي څه باید وکړي اخیر الامر یې په مشوره د بعض شاګردانو دا رأیه راته پیدا سوه چې





د دی رسالې باید رد او جواب وسي. ولې چې د دی خائن مصنف پر دی رساله نوشته
کړې وه" تحقیق العقائِد حاشیه شرح العقائِد، نو هر ملا او طالب داګمان کیدی چې
په دی رساله کې به د عقائدو د اهل السنة والجماعت ښه تحقیق وی،، او د شرح العقائِد
د مشکلاتو به ښه حل پکښی وي. ولې چې معنون یې چا ته نه وو معلوم" نو بعض ملایانو
او طالبانو هغه رساله رانیول وروسته چې مطالعه کړه سوه پوه سوه چې دا رساله خو یې
حقیقت کې" افساد العقائِد ده" او د شرح العقائِد هیڅ حل نسته، په کښی بلکه د
شرح عقائِد تخریب ده،، او زما شاګردانو ما ته مشوره جدی راکړه چې که د دی رسالې جواب نه نوشته
نه سی. نو د دی جاهل حوصله نوره بلنده کیږی او خپلو تا بعانو ته به وائي چې وګوری زما
د رسالې عقائد او احکام حق وه ځکه هیڅ سُني عالم ماته جواب نه کړی را. که څه هم دا مثل دی
چې سپي به غا پی لکن قافله دی تیریږی،، لکن چې سپي د پېر غاپي هغه سپي باید یو څو
ډبري سړي پر سر ووُلي. نو چونکه ما یې د غوښتو او وڅو کې پر عبد الحکیم د خیالي حاشیه
کوله هغه چې مقام د رس ته ور سیدله، او د پاتو ورقو کافي بیاض پاته سو نو پر هغو ورقو
می به عربي ژبه یوه مختصره حاشیه شروع کړه او د دغې رسالې غابن ما توونکی جوابونه
ور کړه.
او دا می اراده وکړه چې اِن شَاءَ اللّٰه العزیز چې د ترجمې څخه د نور الایضاح فارغه سوم نو یوه
غته رساله بلکه لوی کتاب د دغې رسالې په جواب او رد کښې ولیکم تا چې د اهل السنة والجماعة
او د مقلدانو د څلورو مذهبو او د عقیدت مندانو د څلورو مذهبو، طریقو، د تصوفو،
د زړه په ځنك سي. **پوښتنه**: مصنف د دی رسالې څوك دی او څه یې مذهب دئ؟
**جواب**: نوم خو یې امین اللّٰه دی او د پیښور د خوا دی او په مذهب یې خبر نه یم
البته د رسالې د عقائدو څخه ئې دا معلومیږي چې یا به وهابي وي، او یا به پنځ پیري وي
او یا به سلفي وی او یا به نام نهاد اهل حدیث وي. نو او س په طور د مشت نمونه خروار
د دی رسالې بعض ځایونه په ګوته کوم. لکن په ډیر اجمال سره ولې چې تفصیلي جوابونه په
حاشیه کې چې پر خیالي ما نوشته کړیده موجودی دی. او تر هغو مفصل غایة التفصیل په

لویه غلطه رساله کی د درو لیش مطالعه کړی إن شاء الله، نو واوری چی شارح العقائد په ابتداء کی د خپل کتاب داسی حمد وئیلی دی، الحمد لله المتوحد بجلال ذاته" آه.
مصنف د رسالی وائی چی دا د مسلمان کار نه دی چی ماثور حمدیه پریښو او دا مخترع حمد یه ووایه الخ. **جواب** چونکه ته د دغه عبارت په تحقیق نه پوهیدی لکه چی مولی خیالی او عبد الحکیم لاهوری کړی دی نو ځکه پر دی حمد دا غه بیبا کانه سوال وکړی" او بل جواب دا دی چی دا خو نوائی پر شارح العقائد سوال نه دی بلکه تهولو کتا بو که ده تفاسیرو وی او که د فقهی وی او که د حدیثو او که د نورو علوموو وی، سوال دی. ولی چی په ټولو کی د پنځو کتا بو په اول کی ماثور حمد نشته، د ده د الفاظو څخه داسی فهمیږی چی شارح العقائد او نورو کتا بو والا په دی حمد وکی د مسلمانی څخه وتل. نعوذ بالله من ذالک، او جاهل لکه چی په کتا بو کی دا نه ده لیدلی. چی حمد په هر کتاب کی جزء د هغه کتاب دی او هر مصنف اختیار لری چی په څرنګه الفاظو چی حمد وائی ویلای ئی سی.
نو ده رساله والا د غه خبره د مسلمانانو د اجماع څخه خلاف ده، امین الله چی شارح تفتازانی چی حمد ماثور به پریښو، کی څه هم حمد خو به وئیلی دی د اسلام څخه وایستی نو دی به بخاری او ترمذی په باب کی به څه وائی چی هیڅ حمدیه هم نه دی وئیلی. او بیا امین الله د علامه تفتازانی په باره کښی لیکلی دی چی د باطینو د فرقې څخه وو. معاذ الله، دی جاهل باطنیه د له پیژنی کی هسی پر خوله ورغله، په روح البیان کی وائی چی باطنیه یو ډله ده چی په اجماع د علماء ده اسلام کافران دی د هغو مذهب دا دی چی په قرآن شریف کی مثلًا د صلوٰة او زکوٰة وغیره معانی مراد نه دی یعنی لمونځ او د مال زکوٰة وغیره لکه علماء د ظاهر چی وائی بلکه با صفاتی د زړه، وغیره چی په بعض وطنو کښی اوس هم دغه ډله سته چی نه لمونځ فرض بولی او نه کوی. وهکذا سائر الاحکام چی په اصطلاح دوی ځانونه ذاکران بولی"
او بیا امین الله لیکلی دی چی پر شرح عقائد ترسلو حاشیه او شرحو بالا سوی دی لکن هیڅ څوک په حقیقت نه دی پوه سوی. زه وایم امین ډیره غټه دعوه وکړه چی سل





علماء چی ډیر نامورې علماء هم په کښی دی د شرح عقائد په زیغ او ضلال نه سوه پوه. خو یوا امین دی چی په دی زیغ پوه سو. زه حیران یم چی ده زړه کړه چیری وکړه، او امین بیا تاریخ د عمر نسفیؒ چی په مفتی الثقلین سره مشهور دی یعنی دانس وجن مفتی" چی تولتاریخونه د ده لوی علم بیان کړی دی. نو امین وائی چی دی حنیفی المذهب وو لکن د سلفو برابر نه وو برابر، نو زه دامین څخه پوښتنه کوم. چی سلف څوک دی چی عمر النسفیؒ د هغو برابر برابر نه وو- ایا ابو حنیفة النعمانؒ الامام الاعظمؒ سراج الامة المرحومة د سلف صالحینو څخه نه وو. البته دی به وائی چی سلف صالحین خو ابن تیمیه الحرانی او ابن حزم الظاهری او محمد بن عبد الوهاب النجدی وغیرهم دی.
نو زه وایم چی عمر النسفیؒ بیشکه د دغو سلفو برابر برابر نه وو هغه د اهل السنة والجماعة ستر پیشواوو په خپله زمانه کی. او بیا امین په بحث کی د کلام لفظی او نفسی لیکلی دی، لَقَد ضَل الماتریدیة والاشعریة" آه زه وایم چی ماتریدیه او اشعریه د اهل سنتو دوی لوی ډلی دی ته نه شرمیږی چی نسبت د ضلال ورته کوی. او اهل السنة والجماعت څرنګه پته خوله وتا ته ناست دي. او بیا ده په مسائلو کی د صفاتو لیکلی دی چی دغه آیتونه: یَدُ اللهِ فَوقَ اَیدِیهِم" اَلرَّحمٰنُ عَلَی العَرشِ استَوٰی" کُلُّ شَیءٍ هَالِكٌ اِلا وَجهَهُ، وَغیرهَا. د ظاهري معنیٰ څخه اړول ډیر غلط کار دئ. د دی خبری څخه د ده دا معلومیږی چی دی د مجسمه وو د ډلی دی چی خدای پاك جسم بولی. او ده ته جهت او مکان وائی، مَعَاذ الله، لکه د ابن تیمیه حرانی او محمد بن عبد الوهاب النجدی چی هم دغه مذهب وو.
او بیا ما د شرح العقائد په ص۱۲۲ په یوه حاشیه کی د اهل سنتو والجماعت یو څو عقائد بیان کړی دی. نو امین هلته داسی عبارت لیکلی دی، لقد شرع القند هاري فی تشریکات" زه وایم سه امین بنیظام ار کافرم خواند چراغ کذب نبود فروغی، بمسلمان خوانمش زیرا که نبود مکافات دروغی جز دروغی"
هغه مسئلی دا دي. چی په زیارت کی یعنی د اولیاء کرامو او د صالح د بندګانو چی مړه وی که د مسافت څخه سفر وی او که نږدی وی چی هم مړه ته او هم ژوندی ته فائده ده. امین لیکلی

دی چې سفرکول و زیارت ته حرام او شرک دی. کړغه هم زیارت د رسول الله صلی الله علیه وسلم وی بلکه مدینې منورې ته چې څوک سفرکوی په نیت د لمانځه په مسجد نبوی کې به سفرکوی. د دې مسئلې اثبات ما په تفصیل سره په هغه رساله کې کړی دی چې پر حاشیه د خیالی ده بلکه ء ماء د مذاهبو اربعه وو وائي چې زیارت د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته سفرکول مجمع علیه مسئله وه تر څو چې ابن تیمیه پیدا شو. هغه حکم د حرمت او شرک پرو کړو. او بله مسئله ما نوشته کړې ده چې سماع الموتی حق ده. او لې بی عائشة چې او لاپر انکار کاوه رجوع ثابته ده چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم

نو زه وایم چې په مدینه منوره کې چې مواجهه شریفې ته د آنحضرت صلی الله علیه وسلم حاجیان یا نور زیارت کوونکی ودریږی او وائي السلام علیك یا رسول الله آه دد ے نداء او خطاب چې سماع نه وي څه فائده ده! او دا غرنګه السلام علیك یا سیدنا ابی بکر صدیق رض آه یا سیدنا امیر المؤمنین عمر رض آه څه فائده او څه معنی یې ده. او بیا د اچې په صحیح حدیث کې راغلی دی چې نبی علیه الصلوة والسلام به جنة البقیع ته ورتلی او داسې بې وئیله: السلام علیکم یا اهل القبور من المؤمنین انتم سلفنا و نحن بالاثر نو چې سماع الموتی نه وي دا خطاب څه فائده لري. او نور تفصیل د دلائلو د علماء دیوبند د مذهب او د نورو صحیح حدیثو څخه ما هورې نقل کړې دي. او بل مالیکلی دی چې نداء په لفظ د یا رسول الله د غائب سړي څخه روا ده. او دا غرنګه وا اولیاء الله الاموات ته غائبانه نعره روا ده. امین جاهل وئیلی دی چې دا شرک دی. نو زه وایم که دا شرك وی خو ته په لمانځه کې وائي ، السلام علیك ایها النبی آه نو دا خو هم غائبانه نداء ده، ورسول الله صلی الله علیه وسلم ته د جاهل شاید کافیه نه ده وئیلی چې په کافیه کښې وائي: واذا نودی المعرف باللام قیل یا ایها الرجل آه دلته هم نداء ده مګر حرف نداء یې محذوف دی: لکه: یوسف اعرض عن هذا: نو چې په لمانځه کې غائبانه نداء روا ده نو خارج الصلوة ولې یا رسول الله شرک دی: برین عقل و دانش بباید گریست: او بل مالیکلی چې محبت سره د احباء د خدائ او د صالحانو بنده ګانو د خدائ جائز دی بلکه مندوب دی.





امین جاهل لیکلی دی چې محبت کول د غیر الله سره کول شرک دی، زه وایم چې په حدیث صحیح کې راغلی دی چې حضرت عمر رض یو ورځ و رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وو ئیله والله انت لاحب الناس الیّ سوی نفسی التی بین جنبیّ: علیه السلام ورته و وئیل لا یا عمر رض ورته وو یل لا. ـ والله الآن انت احب الیّ من نفسی ایضا علیه السلام ورته وو یل الآن یا عمر رض: نو علیه السلام خو هم غیر الله دی. ده جاهل لیکلی دی چې محبت د اخوت خوروادی. ما ته وائي چې ستا مراد څه محبت د معبودیت دی. زه ورته وایم ای جاهله څوك علیه السلام، یا نور د خدائ دوستان معبود بولي. او ته فرنګه د علم غیب دعوه کوی چې ستا په زړه کې محبت د معبودیت دی.

او په بل حدیث کې داسې راغلی دی چې علیه السلام امام حسن رض او امام حسین پـه غیږ کې نیولي او بیا ئې وو ئیله: اللّٰهم انی احبهما فاحبَّ من یحبهما آه. نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم خو ښکاره کړه چې زه د حسن او حسین رضی الله تعالی عنهما سره محبت لرم نو دوی خو هم غیر الله وه. نو امین جاهل په دې حدیث کې غور وائي. البته دی به وائي چې محبت د اخوت وو د معبودیت نه وو. نو زه وامین ته وایم چې محبت په دا دوه قسمه کې غلط دی بلکه د دې نوع تر ما بین عرض عریض سته، اهل ته وګوره چې محبت د پلار د زوی سره و بالعکس او د میړه او د ماینې تر مابین وغیره صرف د اخوت اسلامی له سببه دی؟ که وایه هو، خو د رواغ وائي. ولې بیګانه خلک خو هم اخوت اسلامی د سړي سره لري او یا پردی ښځه مسلمانه خو هم اخوت اسلامی لري نو دا ټولو له محبتونه سره یو شی دی: کلاو حاشا! او که وایې چې دا محبتونه د معبودیت دی نو بیا چې ښکر و د دواغ دي.

او ته فکر وواهه چې ستا محبت د ابن تیمیه الحرانی سره ډیر دی او که د صاحب هدایه سره مثلا ډیر دی. نو خو ته مجبور یې چې وایه به چې د ابن تیمیه سره می محبت ډیر دی. نو زه وایم چې صاحب هدایه خو هم پر اخوت اسلامی کې داخل دی. نو د ابن تیمیه محبت چې بالادی ستا پر مذهب نو هغه ربوبیت دی او که څنګه! **پوه سئ** خوانندګان محترم چې د دې ډلو مذهب او مسلک دا دی چې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم سره

فقط دومره محبت پکاردی لکه دوړوړ د بل وړوړ سره. استغفر الله العظیم وَنَعُوذ بالله من مذهبیکم: چې تاسې سید المرسلین شفیع المذنبین صَلی الله علیه وسلم ته صرف او صرف دیو ورور درجه او حیثیت ورکړی. مونږ خو داسې وایو سره لایمکن الثناء کما کان حقه: بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر: او مونږ په حضرت شریفه کی او په عالم غیبوبت کی وایو! الصلوٰة والسلام علیك یا حبیب الله الیٰ غیر ذالك. او دا مو ایمان دی چې دا زمونږ سلام وَعلیه الصلوٰة والسلام ته رسیږی د ملکو په ذریعه» د نور الایضاح ص۱۸۷ کی وائی لما کانت زیارة النبی صلی الله علیه وَسَلم: من احسن القُرَب واحسن المستحبات بل تقرب الیٰ درجة ما لزم من الواجبات فانه صلی الله علیه وَسَلم حَرَّضَ عَلیْها وَبَالغ فی الندب الیهَا»

فقال مَن وَجَد سعةً یعنی طاقت وله یذر فی یعنی زما زیارت وَنکی فَقَد جَفَانِی» نو زما سره یې بیوفائی وکړه: وَقال علیه السلام من زار قبری وجبت له شفاعتی» امین وګوره چې علیه السلام قبر وایه او کی مسجد ذکر کړی. البته امین به وائی چې د مذهب ستاسې قاضیخان، بحر الرائق، شامی وَغیره نه منم. ترماته د نور الایضاح خبری کوی. او د حدیثو په باره کی خوامین ډیر دلاور دی. دا به وَوائی چې دا حدیثونه ټوله مَوضوعی دی لکه د دوی مسلک هم داغه دی چې د دوی د مسلک مخالف حدیثونه یا ضعیف بولی او یا مَوضوعی: او بله خبره چې ما په حاشیه کی د شرح عقائد لیکلی چې هَمیشه توبه پراستن سنه کار دی. جاهل امین لیکلی دی چې دا دوام بدعت دی. عاصی وَدی جاهل ته وائی آیا تا تفسیر د آلوسی بغدادی پوره مطالعه کړی چې هغه صورت ملك باندی همیشه توب کاوه. او هره شپه بلا ناغه یې سورت ملك وایه. او پردی فعل خپل په د خدای پاك حمد وَئیلی دی چې ما ته توفیق د دی همیشه توب را کړی دی. او سره د دی چې تِلاوت د سورة ملك خو وَاجبا تو څخه نه دی بلکه د مستحسنا تو څخه دی لو آلوسی څرنګه پردی بدعت باندی ستا په عقیده حمد د خدای جَل شانه وایه» او دَغه او دغه حدیث څه وَئیلی دی چې په بخاری شریف کی رَاغلی دی چې حضرت بلال رضی همیشه توب





کاوه په اودس. وې اوده نه مات شو نو بې سمدستی بل اودس تازه کاوه. او رسول الله صلی [illegible] او اولیاء الله او صحابهؓ وو او صلحائے امت [illegible] همیشه توب کاوه په صلوٰة تهجد او سره د دی چې د تهجد لمونځ خو د واجباتو څخه [illegible] [illegible] دی چې فرض عمل به سری فرض بولی او واجب به واجب بولی او مستحب مستحب [illegible] نو دی قسمه څخه دعاء بالاجتماع چې ثبوت د شارع د خوا یې سته. او قرب واجابت ته هم ده. او امر حسن هم وی. نو په دوام کی څه بدعت دی. نعم کی څوك کاهی نه وکی ملا صیا وړ باندی نسته ولی چې همیشه والی سُنت نه دی.

داستاذ کل، په زمانه کی، او محدث جلیل په وخت کی یعنی المولی قطب الدین خیل

# فِتوی غورغشتوی رحمة الله علیه دوهابیانو، پنجپیرانو، سلفیانو او نام

نهاد اهل حدیثو په باره کی، چې د دی ټولو د لو منبع دی. یعنی متابعت د ابن تیمیه الحرانی، محمد بن عبد الوهاب النجدی، او ابن حزم الظاهری، او ابن قیم. د دغو لوی شیخ الحدیث الفاظ په اردو ژبه داده. اول شیخ الحدیث حمد د خدای جل وَعلا په قرآنی آیاتو سره وَئیلی دی او بیا وائی» فقیر قطب الدین غورغشتوی بخدمت اہل اسلام عموماً و بخدمت اہل السنت والجماعت خصوصاً عرض پرداز ہے کہ اگرچہ سعی سلفؒ درین باب کافی ہے یعنی ان فرق کے رد میں» لکن تبذکر عزیزان اخوان اسلام کیلئے اتفاق ضرورت پڑی. تاکہ عوام جدال اور قتال سے محفوظ رہیں تو میں یوں کہتا ہوں کہ اتباع محمد بن عبد الوہاب النجدی، اور ابن تیمیہ حرانی، اور ابن حزم اور ابن قیم جن کے عقائد یہ ہے:

۱. قبر انور رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم کو صنم اکبر (یعنی بڑا بت) کہتے ہیں. ۲. اور اپنی آپ کو موحد کہتے ہیں. ۳. اپنی مخالف کو مشرک تبلاتے ہیں. ۴. یا رسول اللہ کہنا شرک ہے ۵. زیارۃ قبور بعیدہ حتی اسفر کرنا زیارت قبر منور آں حضرت صلی اللہ علیہ وسلم کو حرام اور ناجائز کہتے ہیں. ۶. اولیاء اللہ الکرامؒ کے ارواح پر ایصال ثواب حرام ہے. ۷. اور کسی ولی کو کوئی کرامت بعد الموت نہیں ہے. ۸. اور توسل بخدا جل جلالہ نبی کے واسطہ ہو اور یا ولی کیساتھ ہو حرام ہے وغیرہ وغیرہ. اہل السنۃ اور جماعت سے خارج ہیں. اگر کسی کو مزید تحقیق درکار ہو تو فقیر کے ساتھ ملاقات کر سکتا ہے

اوریہم، "لَا اِکْرَاہَ فِی الدِّین"، کیوجہ سے ان پر تعرض نہیں کرتے ہیں۔ لکن ترک موالات ان لوگوں کیساتھ ہم کو اختیار ہے۔ وَاللّٰہُ یدعوا الیٰ دارالسلام ویھدی مَن یشاء اِلیٰ صراطٍ مستقیم د مولوی قطب الدین غورشتوی بقلم خود، او پر فتوٰی د مولوی صاحب د ډیرو علماوو د پیښور، مردان، امضاګانی موجودی دي.

## د درویش معذرت

کہ څیری زہ دا مین جاهل تولی خرافاتی را نقل کوم او بیا جوابونه ورکوم نو اصلی مطلب چی شرح د نورالایضاح ده ډیره به لیری سی. نو دا څو خبری په طور د "مشت نمونہ خروار" بیان سوي ولی چی تفصیل دده د خبرو او جوابو په ها مش (حاشیه وو) کی د خیالی وګوری څه و دا او س طبع کولو ته نه دیده "او غایة التفصیل بیا اِن شَاءَ اللّٰه العزیز زه په لویه رساله کښی چی په هغه کی لفظ په لفظ او مسئله په مسئله به د غه امین ته جوابونه ورکرم اِن شَاءَ اللّٰه العزیز وَاللّٰهُ وَلی الفضل وَالانعام"

# فَصْلٌ فِی الْاَحَقِّ بِالْاِمَامَةِ وَتَرْتِیْبُ الصُّفُوْفِ

دا فصل دی په بیان د هغه چا چی احق وی په امامت سره او په بیان کی د ترتیب د صفونو

**پوهسه**: چی دا فصل په سبب د عدم اعتناء د ملایا نو او د خلګو په مراعات کی د صفو د لمانځه ډیر د غور کولو او بیا د عملی کولو د پاره مهم فصل دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**اِذَا لَمْ یَکُنْ بَیْنَ الْحَاضِرِیْنَ صَاحِبُ مَنْزِلٍ وَلَا وَظِیْفَةٍ وَلَا ذُوْ سُلْطَانٍ** کہ څیری نه وو په مابین د حاضرو خلګو کی د کور څښتن، او یا وظیفه دار سړی لکه امام المسجد او د غه رنګه نه خاوند د حکومت





**پوهسه**: چی مراد د صاحب المنزل څخه هغه سړی دی چی په دی کور کښی او سیږی که مالک د کور وی، او که په کرایه په کښی پروت وي. او یا مالک عاریةً ورکړی وي. او مراد د وظیفه والا څخه امام المسجد دی. که بانی د مسجد د ده ولی وی، او که قوم په مشوره مقرر کړی وی"

**مسئله**: صاحب المنزل او امام المسجد تر ټولو حاضرو علماوو اَحق په امامت دی که څه هم په دی نورو علماوو کی تر ده اَفقه، او اَقرء، او اورع او افضل موجود وي. نو بیا هم صاحب البیت او امام المسجد اختیار لری که څیل امامت ورکوی. او که په نورو ملایانو کښی څوك د مخه کوی او دا هم لازمه نه ده چی دوی به په دی نورو ملایانو کی خامخاه افضل د هغو یا اقرء یا اورع د مخه کوی. ولی چی امامت د دوئ حق دی هر رنګه تصرف په کښی کوی ورته روا دی لکن بیا هم صاحب البیت ته دا افضل کار دی چی بل افضل افقه، اورع، اَقرء عالِم د مخه کړي او پوه سه چی مراد د ذو سلطان څخه پادشاه، یا نائب د هغه یا قاضی د محکمی دی.

**مسئله**: ذو سلطان که حاضر وو هغه تر ټولو احق بالامامت دی. حتی تر صاحب البیت او تر امام المسجد هم، ولی چی د هغه ولایت عام دی"

امام بخاریؒ روایت کړی دی چی ابن عمر رضی اللّٰه تعالیٰ عنهما به په حجاج بن یوسف پسی لمونځ کاوه وکفیٰ به فاسقًا، (و هغه خبره چی امام طحطاوی د بنایه څخه نقل کړیده: چی وائی چی تفصیل د ذو سلطان پر نورو علماوو په تیرو زمانو کښی وو، ولی چی والیان ټول عالمان وه او غالب په صالحین هم وه. او زمونږ په زمانه کښی دا حکم نه دئ. ولی چی والیان د حکومت او امیران، ظالمان، او جاهلان دی آه.

دا خبره د فوق الذکر حدیث څخه د بخاری خلاف ده. ولی چی عبد اللّٰه بن عمرؓ تر حجاج بن یوسف هم اعلم په کتاب اللّٰه سره او په سنت د رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم او هم اورع او افقه وو تر حجاج بن یوسف او صحابیؓ او ابن الصحابیؓ وو بیا به هم په حجاج بن یوسف پسی د ه جماعت کاوه. چی د حجاج بن یوسف په باره کښی په عربو کی مشهوره خبره ده چی دوی وائی که د دنیا د ظالمانو ټول ظلم سره یو ځای کړه سی. او په ورځ د قیامت په یوه پله کښی د ترازو کښیښنول سی. او د حجاج بن یوسف ظلم په بله پله کښی کښیښدی د حجاج بن یوسف د ظلم

پله به پردرنه وي، اود غرنګه امام بخاري روایت کړی دی چي څه وخت چي امیرالمؤمنین عثمان بن عفان رضي الله تعالیٰ عنه د باغیانو د خوا څخه په کور کښې محاصره سو، او په مسجد نبوي صلی الله علیه وسلم کي د باغیانو امام لمونځ ورکاوه. یو صحابي رض په پټه د حضرت عثمان رض کره ورغلی او ده ته یې وویل چي امام عامه خو تاسي یاست. او پر تا باندي دا بلا نازله سوه چي په کور کي محاصره سوی چي د مسجد د امامت د پاره هم نسي راوتلای دمونږ د امام د باغیانو لمونځ را کوي مونږ لوبځونه پسي کوو کړنه! حضرت عثمان رض ورته وویله چي لمونځ ډیر ښه شی دی. نو حلګ چي ښه کار کوي ورسره کوی یاستې او خولک چي بد کار کوي په هغه کښې ګډون مه ورسره کوئ. اوسره دا دی چي د دغی فتنی په وخت کښې اصحاب کرام رض بیخي ډیر موجود وه. او به هغو امام الفتنه پسي لمونځ کاوه نو پوښتنه دا ده چي ایا اصحاب علیه السلام اَعلم و اورع وغیره تر امام الفتنه نه وه. لکن چونکه باغیانو واګی د حکومت بخپل لاس کي واخستې او د حضرت عثمان رض د خلافت او امارت هیڅ امید نه سو پاته. نو ځکه صحابه رض ووکرامو په دغه باغي ظالم امام پسي لمونځونه کول، وَاللهُ اَعلم: قَالَ المُصنفُ:

**فَالاَعلَمُ اَحَقُّ بِالاِمَامَةِ** نو چي ډیر خبردار وي حق داره دی په امامت سره.

**پوښتنه**: چي مراد د اعلم څخه هغه سړی دی چي په احکامو د لمانځه از روی صحت و فساد و غیر هما خبر وي. او چا چي ویلی دي چي اعلم په فقه شریفه او د احکامو شریعتو دی د هغه هم مراد احکام د لمانځه دي. ولې خبر دیا په احکامو د زکوة، روژی، حج وغیره په لمانځه کي ورته حاجت نسته، او په مراقی الفلاح کښې وائي چي دغه سړی به چي امامت ورکوی مجتنب به وي د ظاهره کبیره ګناه څخه هم. او د غه رنګه بې پیادوی هغه قدر د قرآن مبارک چي سنت قرائت په پوره کیږي "کان مقاره فی کل صلوة، او حفظ د قدر مفروض د قرائت خو شرط د صحت د لمانځه دی کما مر او حفظ د قدر مسنون شرط د کمال د لمانځه دئ"

**اختلاف الائمة** امام شافعي رح، او امام ابو یوسف رح وائي چي اول درجه اقرء لره ده.





چي د قرآن اقرء وي یعني چي حروف د قرآن عظیم بخپلو ځایو کي اداکولای سي او فتوی او اعتماد پر قول د امام اعظم رح او امام محمد رح دی په دلیل د دې چي قرائت ته خو ضرورت په اداء کښې د رکن واحد سته، او فقه شریفي ته په ټولو ارکانو واجباتو، سنتو او مستحباتو کي ضرورت سته. نو د علم فقه درجه تر ټولو اقرء لوړه ده. لکن **پوښتنه** چي تقدیم د اعلم هلته دی چي دده عالم الفقه پر قرائت د قرآن لمونځ نه فاسدیږي او که دده په قرائت په اتفاق لمونځ فاسدیږي بیا دی اقرء د مخکي یو ملا یو وخت د مخه وو. نو قرائت یې دا سي وایه: اِكرءُ بِاسمِكَ الَّذِي خَلَكَ خَلَكَ الاِنسَانَ مِن عَلَكَ، وعلیٰ هذا القیاس، قَالَ المُصنفُ:

**ثُمَّ الاَقرَءُ، ثُمَّ الاَورَعُ، ثُمَّ الاَسَنُّ، ثُمَّ الاَحسَنُ خُلقًا**

**پوښتنه**: چي مراد د اقرء څخه هغه سړی دی چي په احکامو د قرائت او په مخارجو د حروفو ښه خبر وي. دا نه دی مراد چي ډیر سورتونه یا ټول قرآن کریم پیاد وي. که څه هم بعض علماء و دوهم رونه تللی دي. لکن د محقق ابن الهمام شاګرد ابن زاد الفقیر کي اول ته ترجیح ورکړی ده وعلیه الفتویٰ"

**پوښتنه**: چي د ورع درجه تر تقوی پوره ده. ولې چي تقویٰ یواځي د محرما تو څخه پرهیز کول دي. او ورع دا ده چي شبهاتو څخه هم پرهیز کوي. او اسن هغه چاته وائي چي په عمر کښې مشروی. یعني که دوه کسه په علم فقه کي او قرائت کي سره برابر وه بیا په دوی کي چي مشر وي هغه دی لمونځ ورکړي. په حدیث کي د بخاري راغلي دي چي داسي دوه کسانو چي یو مالک بن الحویرث وو، او بل دده ملګری وو، چي یو ځای په د علیه السلام څخه احکام او قرائت زده کړی وه. نو په وخت کي د رخصت ورکولو علیه السلام دا سي ورته وفرمائیله چي د لمانځه وخت چي راسي فَلیُؤَذِّن اَحَدُکُمَا وَلیَؤُمَّکُمَا اَکبَرُکُمَا"

**پوښتنه**: چي د دې حدیث څخه دا سي معلومېږي چي مراد د اسن څخه هغه خولک دی چي په عمر کښې مشر وي. او بعض فقهاء وائي چي د اسن څخه مراد هغه دی چي اسلام

يےترد ابل مخکښې راوړی وی نو بناء علیٰ هذا یو سړي چې سپین بږیری وی ایمان راوړی او بل ځوان وی دکښې والی څخه مسلمان وی احق په امامت سره هغه ځوان دی. لکن پردې فقهاوو د اسوال وارد یږی چې که دواړه کسان قدیم الاسلام وه منکر یو مشروو د دې حال خود دوی ېر مذهب نه سو معلوم، نو ښه داده چې عبارت دکتاب داسې وای ثم الاقدم اسلامًا ثم الاسنُّ، نو به دوی مرتبې کړځید لی وای، کذا قال الامام الطحطاوی رح»

او احسن خُلقًا هغه سړي دی چې په اجتماعي ژوند کښې دخلګو سره ښه اخلاق ساتي او خلګ دده د ښه اخلاقو په سبب دی محبوب ګڼړي. قَالَ المُصنفُ

**ثُمَّ الأَحسَنُ وَجهًا** او بیا دی هغه سړي د مخه کوی چې ښا ښسته او نورانی مخ یے وي یعنی دمخ اجزاء یے متنا سب وی. **پوه سه**: چې مصنف په تقدیم کی دحسن الخلق پر احسن الوجه متابعت کړي دی دمواهب الرحمن او فتح القدیر او صاحب الخلاصة او غیر والا او ملا مسکین حسن الوجه تر حسن الخلق مقدم بولی. وجه او دلیل یے دا دی چې سید سند وائي حسن ظاهر یے اغلب کښې پر حسن باطن دلالت کوی. او بل دلیل یے دا دی چې حسن ظاهر ښکاره شی دی. او ښه اخلاق د سړي تجربه غواړي او په ګډ ون او ګذاره سره معلومیږي. قَالَ المُصنفُ

**ثُمَّ الأَشرَفُ نَسَبًا**

او بیادی هغه سړي د مخه کوی چې شریف وی په نسب کی. لکه یو ملا سید وی او بل ملا اُمتی، او یا یو ملا د ښه عالِم زوی وی او بل دامی زوی وي. وعلیٰ هذا فقس، ولې چې احترام او تعظیم د نسب په شرعه شریفه کی ښه کار دی، خلافًا للوهابية، قَالَ المُصنفُ:

**ثُمَّ الأَحسَنُ صَوتًا** او بیادی هغه سړی د مخه کوی چې ښه آواز یے وي. ولې د هغه د قرائت په اوریدو سره خلګو ته خشوع او خضوع پیدا کیږي

**پوه سه**: چې مراد د حسن الصوت څخه هغه دی چې طبعًا یے آواز ښایسته وي. نه هغه قاری چې قرآن مبارک د موسیقی پر وزن، یا مدات زائده، یا سکنات خارج عن قوانین القرائت په کښې وائي. او خوله یو وخوا او بله خواته کښوی.





ته نه اوری چې د حرمینو شریفینو امامان څرنګه سلیس او روان او بې تکلفه قرائت وائی خلاف زمونږ دزمانې بعض قاریان»

**واقعه** د کندهار په ښار کی یو ورځ ختم دقرآن کریم کیدی چې. د ښار جید جید علماء او ښه ښه فقهاء هم پکښې شامل وه. نو شروع د قرآن کریم یے د یو قاری مرائي په یو لمنړه رکوع ویلو سره شروع کاوه. قاری صاحب ته چې ملا یا نو یوه قاری ویل چې قاری صاحب ته یوه رکوع ووایه نو به بیا خلګ سپاری شروع کړي قاری صاحب ته چې موقع پلاس ورغله. نو یے قرآن مبارک د مخه سپر وګرځاوه تا چې د ده د خولې او شوندانو اود سترګو حرکات او اوضاع څوك و نه وینې. نو رکوع یے تخمینًا په ۲۰ دقیقه کښې وویله. او چې ختم شروع سو هغه قاری په ۱۵ دقیقه کی تخمینًا سپاره ختم کړه. نو پس لردی چې ختم دقرآن مبارك خلاص سو او دعا ګانې هم وسوې. نو یو جید عالِم د هغه ریا کاره قاري څخه پوښتنه وکړه چې آیا دقرآن مبارك د حروفو اداء یے جهر او مخافت کښې فرق سره لري. قاري ورته وویل یا. فرق نه سره لري. نو هغه عالِم ورته وویل چې تا چې په جهر سره یوه رکوع وویل تخمینًا ۲۰ دقیقې دی پکښې ولګولې. او چې پوره سپاره دی وویله په ۱۵ اد قیقې کی دی ختم کړه. نو قاری بې جوابه خجل یا ته سو» قَال

**ثُمَّ الأَنظَفُ ثَوبًا** او بیادی هغه سړي د مخه کړي چې کالی ئې ډیر صفاوی ولې چې پاك صاف کالی یے وی په هغه پسی اقتداء د خلګو ښه زړه غواړي ته هغه چا چې کالی یے چټل وي. **پوه سه**: چې دفقهاء په ډیرو ځایو کښې مسائل او احکام صرف پر فرض بناء دي. لکه په دې مسئله کی د امامت چې فلانی د مخه کوی او که دا بیا سره برابر وه فلانی دی د مخه کوی وهکذا حتی د دوو ملایا نو په دی ټولو شیا نو کښې برابر والی ډیر لیری خبره ده مګر فرضیده یے روا دی. یعنی ته ئې فرض کړه چې سره برابر وی هم د دی سببه مصنف په مراقی الفلاح کښې وائي: ثُمَّ الاحسن زوجةً، او که په ټولو تیر سوو شیانو کی د وه ملایان سره برابر وه. بیا دی هغه ملا د مخه کړي چې مایېنه

يه ډيرې ښائسته وي. مراد دادی چې دملاصاحب په سترګو کی که څه هم په واقع کی ډیره ښائسته نه وي. دد بے دليل دادی چې دملاصاحب مَاينه چې دده په سترګو کی چې ډيره ښائسته وی. نو دهغی سره ئې محبت ډیروی نو د زنا وخواته میل نه کیږی نو عفت به ډیروي. اوبيا مَراقی والئ که په دی ټولو شيانو کښی برابر وه بيادی هغه ملاد مخه کړي چې سريه غټ وی. ولی دد سے ملا قوة عاقِله اوقوت حافظه ډیره ده. لکن پوه سه چې بيخی ډیرغټ به نه وي لکه دیا بوسر. ولچې د داسی غټ سری ملا څخه د خلګو نفرت کيږی. او بیعقل هم وی کما عُلِم بالتجربة» اوبيامرّاقی والئ که په مذکوره شيانو کی. ته ئې فرض که دوه ملايان سره برابر وه. بيادي هغه ملاد مخه کړي چې غټ په ډيرغټ نه وي. ولی چې په افراط سره دَ دَ غه غټ والی دليل د بي عقلی او بد اصلی دی. ته نه وینی چې خرپه دغه بلا کښی تر ټولو حيوانانو د غټ بلا خاوند دی. خو بيا هم خروي:

**پوه سه:** چې دماينی ښائسته والی. او یاد غټ کشتی والی دخودی ملاصاحب په اخبار سره معلوميږی. داسی نه ده چې خلګ به ورځی دملاصاحب ماينه به ګوري اويا به دملاصاحب پرتو ګا ښ خلاصوی اوغټ به يه ګوري. او بيامَراقی والئ کی چيری په ګردو مذکوره شيانو کی سره برابروه بيادی هغه مَلادی د مخه کړي چې ډیرمالداروی ولچې په داسی ملاکی د طمع بدخوی نه وي. اوبيادی هغه ملاد مخه کړي. چې جاه و جلال يه ډيروی. لکن واوره چې مراد ده ماله څخه حلال دی، نه دسودخور مال کثیر اويا دخمار بازه مال کثير وغيره.

**مسئله:** که مسافراومقيم ملا بعض فقهاءُ برابر بُولي اوبعض فقهاء وه مقيم ته ترجيح ورکوی: وهوالحق قال المُصنفُ:

## وَاِنْ اِسْتَوَوْا يُقْرَعُ

که په ټولو مذکوره شيانو کښی سره برابروه بيادی نو اِسکه سره وکړي په مابين کښی دملايانو دهرملا اسکه چې وختله هغه دی د مخه کړي سی.





## اَوِالْخِيَارُ لِلْقَوْمِ وَاِنْ اِخْتَلَفُوْا فَالْعِبْرَةُ لِمَا اخْتَارَهُ الْاَكْثَرُ

اويا داختيار د مخه کيدو دکوم ملادی وقوم ته وسپارلی سی يعنی ايسکی ته ضرورت نسته او که دقوم په مابين کی اختلاف پيدا سو لبعضو ويل فلانی ملاصاحب دی د مخه سی او لبعضو ويلي چې فلانی مُلاصاحب دی لمونځ راکړي. نوبيا اعتبار هغه ملا ته دی چې خلګو خوښ کړی وي. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَاِنْ قَدَّمُوْا غَيْرَ الْاَوْلٰى فَقَدْ اَسَاءُوْا

که چيري خلګو د مخه کړي هغه څوک چې اولی نه وو نو ټوله قوم ګناه ګار به وي. لکن ګناه کبيره نه ده كذا فى التجنيس.

## مسائل الامامة

(۱) که يوه ملاديوقوم او مسجد امامت وړ کاود او خلګ ځندي مخالف وه اوجواب يه ورکړي وو لکن ملاصاحب قدرت والا وو ده مسجده څخه نه وتی. اويا سپين سترګی وو. نو که ددوی کراهت دملاصاحب څخه په سبب دفساد په ملاصاحب کی وو. اويا په قوم کی احق په امامت سره تر موجوده امام وو. نو دده ملاصاحب امامت مکروه دی. او امام حنفي ويلي چې امامت دده مکروه تحريمي دی. لحديث رواه ابوداؤد ثلاثة لا يقبل منهم الصلوٰة وعد منهم من تقدم قوما وهم له كارهون «مرط، ر».

اوكه چيري احق بالامامت دغه موجود (امام) ود تر نوره خلګو او په ده کښی هيڅ فساد نه وه او سره دهغه د مقتديا نو به ځندی راتله. نو ملاصاحب ته امامت وړ کول مکروه نه دی ولی دجاهل اکثر اد عالم څخه بد کيږی او د فاسق د صالح سري څخه بد کيږی. او هم داسبب دی چې اوس اوس چې د افغانستان پر ډيره برخه د طالبانو حکومت دی او خلګ د جماعت پر وخت جماعت ته وړ بولي. او زيري ځريلو، اويا کنډی کولو ته نه پريږدي او داسی نور منکراتو ته د اسلام په نه پريږدي، سګوانه نسته، کرګ بازی نسته کوتر بازی نسته، ديو چا دواد په شپه شوقيان نسته، ټلويزون نسته. خمار بازی نشته

بچه بازی نسته، د دیوخلکو چې د منکراتو سره علا قرلري د طالبانو او د ملایانو څخه ئې بد راځي،،

## تاریخي واقعه

په پخوا زمانه کی شیعه ګانو په جماعت لمونځ نه کاوه. ولې دوی به وئیله چې د امامت د پاره امام معصوم شرط دی. او امام معصوم د ګنهو څخه په اوس زمانه کی نسته که څه هم د اخبره د دوی د شریعت سره برابره نه وه: نو څه وخت چې نائب محمد عثمان خان د قندهار والی مقرر سو نو هغه پر شیعه ګانو د احکم وکړی چې ټوله لمونځونه دی په جماعت کوی. او چیری چې به د شیعه ګانو کورونه وه د هغه ځای د مسجد پر امام به د احکم کړی وو، که یو شیعه د لمانځه څخه د جماعت وو تللی، راپوربه ئی ولایت ته راوړی. نائب محمد عثمان خان ته چې د کوم شیعه راپور به ملا صاحب د مسجد ورکړی نائب محمد عثمان خان به هغه شیعه راوغوښتی. او یوه ورځ بې سرکاری د ختیو کار به کاوه. یعنی د اجزاء وږبی جماعتی. نو شیعه ګان مجبوره سوله د جماعت د لمانځه کولو ته لکن بعضی سنی خلکو چې د دوی سره په مسجد شریکان وه د دوی د نیت ټوکو به داسی حکایت کاوه مثلاً، نمازمی خوانم چهار رکعت نماز بیګاری اګر نه خوانم نائب محمد عثمان خان مرامی پردازند به ګل کاری الله اکبر، په حدیث مبارک کی داسی راغلی دي. ان سرکم ان تقبل صلوتکم: که تاسی خوشحاله کوی دا خبره چې ستاسی لمونځ دی قبول سی. فلیئومکم علمائکم: نو دی تاسی ته امامت ورکوی هغه کسان چې علماء وی یعنی په دین سره فانهم وفدکم بینکم وبین ربکم: چې دوی یو هیئت په ما بین کی ستاسو او ستاسی د خدائ. دوفد معنٰی ده مخ سری. یعنی دوی خدائ ته د مخه ورځی اول خپل مقاصد د خدائ څخه غواړي او بیا ستاسی شفاعت کوی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَكُرِهَ إِمَامَةُ الْعَبْدِ** اومکروه دی لمونځ ورکول د مریٔ. ولې چې غالباً مریٔ په سبب د شغل په خدمت د بادار د علم حاصلولو ته نه وی خلاص





او اکثره مریان فاسقان هم وي. نو که چیری یو مریی وو چې هم یه علم پر مسائلو د لمانځه دړلودی او هم تقوادار وو لمونځ ورکول به مکروه نه دی ولې چې علت د کراهت نسته، قَالَ **وَالْأَعْمٰى** او د غرنګه مکروه دی امامت د ړانده. ولې چې یو ځو دی ځان وقبله شریفه ته نه سی برابر ولای. او بل دا چې جامی به د نجاست څخه نسی ساتلای. او که تر ړانده افضل په خلکو کښې نه وو، نو بیا کراهت نسته، م، ولې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې د تبوک غزا ته تللی د لمانځه د پاره به عبد الله ابن ام مکتوم او عتبان بن مالک رض خلیفه ګان و ټاکل چې دواړه ړانده وه. **مسئله** که چیری د ړانده د پاره محافظ د نجاساتو څخه او پر قبله برابرونکی دړلودی بیا هم کراهت نسته، قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَالْأَعْرَابِيُّ** او د اغرنګه مکروه دی امامت د صحرائی **یوه سړه** چې اعرابی منسوب واعراب ته دی، وَهُمْ سُكَّانُ الْبَادِيَةِ، د صحرا و عربو ته وائي والعَرَبُ العَارِبَةُ، هغه خلا عربو ته وائي. چې هغوی په ژبه د یعرب بن قحطان خبری کولې. چې هغه قدیمه ژبه د عربو ده لانه اول مَن تکلم بالعربیة، او عرب مستعربة هغو عربو ته وائی چې په ژبه د اسمٰعیل علیه السّلام به خبری کولې. چې دا د اهل حجاز ژبه او لغت دی، ط، لکن مراد د اعرابی څخه دلته، د صحرا او سیدونکی دی چې مونږ یه مالدار بولو، که عرب وی او که عجم وي. لکه ترکمانان، او کردان،، سبب د کراهت به دا دی چې پر دوئ باندی جهل غالب وي. ولې مجالس د علم په قریه او ښارونه کی وی دوی د هغو څخه لیری دی. نو د دی څخه دا هم معلومه سوه. چې د عامی جاهل که څه هم وطنی وي امامت به مکروه دی. کذا فی البحر والنهر، وقد ورد فی بعض الحکایات،،

**واقعه**: یوه اعرابی په یوه عالم پسی اقتداء وکړه هر کله چې امام دا ایت شریفه په لمانځه کی وو ایه: اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّ نِفَاقًا، الآیة: فضربه الاعرابی نو صحرائی ملا صاحب پر سر په یوه شی وواهه او سر به ورمات کړی. او صحرائی و تښتید ی

ځوانی وروسته بیا هغه صحرائی راغلی او په هغه امام پسی اقتداء وکړه دامتحان دپاره. امام خود صحرائی ځخه نا خبره وو اتفاقاً یې دا ایت په لمانځه کښی وواید «وَمِنَ الْاَعْرَابِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ» الایة صحرائی په عین لمانځه کښی ورته ووَیل «الْاٰنَ نَفَعَكَ الْعَصٰی» اوس زما د لکړی وهلو فائده درته وکړه: کذا فی غایة البیان»

او د رولیش په زمانه کی دا دیوه صحرائی واقعه ذکر وه دا هغه داده: چی په قند هار کی سپیروان یوه غټه قریه ده. او هغه قریې ته نزدی ریګی ورته وائی چی ریګستانی ځای ده. او په ریګی کی عموماً مالداران، او صحرایان او سیږی. نو د غو صحرایانو ملا صاحب سهواً داسی وویله. چی د رکوع ځخه راپورته شو: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ د صحرایانو مشر فتح ورکړه چی مونږ تر دې غم شی راپیسنودل» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَوَلَدِ الزِّنَا الْجَاهِلِ** اودغه رنګه مکروه دی امامت د ولد الزنا چی جاهل وی

پوهسه: چی د وَلدالزناء دامامت مکروه والی په نیزد بدرالدین العینیؒ دا دی چی دخلګو نفرت ځندی کیږی. ولی چی پرده باندی هم تهمت دزنا کیږی» اٰثار الاٰباء تظهر فی الابناء یعنی غالبًا» او نهر فائق والایرهم دغه وجه ګنړلی ده. نو بناءً علی هذا که دغه ولد الزناء عالم وی هم په امامت مکروه دی.

او د نور الایضاح دعبارت ځخه داسی معلومیږی چی جهل یې سبب کراهت دی بلکه مراقی الفلاح په دی تصریح کړیده» اذ لو کان عالمًا تقیًّا لا تکره امامته» او امام طحطاویؒ هم ددی خبری تائید کړی دی چی وائی: لانه لیس له اب یعلمه فیغلب علیه الجهل» او د رولیش په نیز اوله وجه ډیره په زړه پوری ده: کما یدل علیه التجربة» ولی چی خلګوته دا معلومه ښی چی داسړی ارمونی دی که څه هم غټ عالم وي خو بیا هم دخلګو نفرت ځندې کیږی. او اقتداء یې زړه نه پسی غواړی: وَاللّٰهُ اَعْلَمُ،

او مراقی الفلاح داسی هم وئیلی دی چی مکروه والی د امامت خو په سبب د نقائصو دی لکه بیعلمی، بی تقوا والی، حتیٰ که صحرا نشین په علم او تقوا کی بالاوو تر ښاری سړی. او یا





مړیی افضل وو تر حر او یا ولد الزنا په علم او تقوی کښی بالا وو تر حلالونی، او یا روند ښه تر وو تر سترګو والا فالحکم بالضد: یعنی د ښاری امامت او د ه حر امامت او د حلالونی یا دسترګو ور امامت مکروه دی. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَالْفَاسِقِ** اودغه رنګ مکروه دی امامت د فاسق که څه هم عالم وی. ولی چی فاسق غم خوری د امور و د دین نه کوی نو پر خلګو دده سپکاوی لازم دی. نو امام ګرځول خو دده تعظیم دی. **مسئله**: که دغه فاسق عالم د امامت ځخه نه منع کیدی. نو خلګ دې بل مسجد ته ځی د پنځو لمونځو د پاره هم. او که بل ځای د جمعې لمونځ نه کیدی نو په دغه فاسق پسی دی د جمعې لمونځ کوی. م»

**پوهسه**: چی مراد د فاسق ځخه فاسق د عملو دخوا دی نه فاسق د عقیدی ولی چی د مبتدع حکم وروسته راروان دی. **واوره**: چی معنیٰ د فسق په لغت کی خروج دی د سم والي ځخه، او په شریعت کی خروج دی د طاعت د خدای عَزَّوَجَلَّ په سبب د ارتکاب دده د ګناه کبیری او قهستانیؒ وائی چی په اصرار پر صغیره ګناه هم سړی فاسق ګرځی.

**مشکل د زمانی** غیبت په اتفاق ګناه کبیره ده. بهتان په اتفاق ګناه کبیره ده او دغه رنګه حسد، او شیطانت او کبر او لولئ. او دغه ګنهونه مروج الوقت دی نو به سړی چیری غیر فاسق امام پید اکوي اللهم الا شاذ او نادرًا و هکذا یذهب الزمان علی العیب، داسی یو وخت په امت محمدی راغلی دی چی فاسق به په کښی شاذ او نادر وو، او س بی فسقه سړی شاذ او نادر وګرځی دی. فالی الله المشتکی من انقلاب الزمان» سه چو بنیم دین احمد رغریبی: دلم سوزان ز چشم خون جاری قَالَ

# وَالْمُبْتَدِعِ اودغه رنګه مکروه دی په مبتدع پسی — د مبتدع په باره کښی تحقیق

صاحب المغرب وائی چی غالب استعمال د مبتدع په هغه چا کی دی چی په دین سوی کی زیاتوی یا نقصان وکړی. او شمنیؒ او مراقی مبتدع هغه سړی ته وائی چی یو کار یا عقیده ښکاره کړي چی پر خلاف د هغه حق وی چی د رسول کریم صلی الله علیه وسلم ځخه منقول وی په

سبب دیوی شبهی او اخیر نودی هغه دین قویم او صراط مستقیم نولی **پوه سه** که د مبتدع ابتداع و کفر ته رسیدلی وه لکه خوارج په هغه پسی لمونځ بیخي روا نه دی کذا فی الخلاصة والمحیط والمجتبی»، او که کفر ته نه وو رسیدلی په اتفاق سره نو امامت مکروه دی ولی چي دا سپك مبتدع دی.

**مسئله**: امام محمدؒ د امام اعظمؒ او د امام ابی یوسفؒ نه روایت کړي دي چي لمونځ په اهل اهواء یعنی مبتدعانو پسی نه دی روا. لکن صحیح دا ده چي عدم جواز د لمانځه په مبتدع پوري. په نیزد شیخینو مشروط په دې دی چي کفریه د بدعت سره لازم وی لکه خوارج. او که بدعت کفر ته نه وو مفضی که څه هم د اهل السنت والجماعت څخه مخالف وی نو لمونځ پسی صحیح لکن سره د کراهت. لقوله علیه الصلوٰة والسلام: صَلُّوا خَلْفَ کل بر و فاجرٍ، وَصَلوا عَلیٰ کل بر و فاجرٍ یعنی صلوٰة الجنازة، وَجَاهِدُوا مَعَ کل بر و فاجرٍ، یعنی جهاد کوی د کفارو سره که قائد او امیر بر وي او که فاجر، رواه الدار قطنیؒ. امام طحطاویؒ په دی ځای کښي دا هم لیکلی دی»، فَلا یجوز الصَّلوٰةُ خلف مَن ینکر شفاعة النبی صَلی الله علیه وَسَلم: نه دی لمونځ روا په هغه چا پسی چي منکر وی د شفاعت څخه د آنحضرت صَلی اللهُ علیه وَسَلم: ولی چي دا انکار کفر دی. درویش وائي که د شفاعت د آخرت څخه منکر وي هغه خو مطلقًا کافر دی. او که د شفاعت د آنحضرت صَلی اللهُ عَلیه وَسَلم پس له وفات نه په عالَم برزخ کی دیو چا د پاره منکر وی لکه وهابیان چي وائي هغه مبتدع لمونځ پسی مکروه دی. ط زیاته کړیده چي د کرام الکاتبین د نوشته څخه منکر وی او یا دلید لو څخه د خدای جل سلطانه په جنت کی د سترګو منکر وی هغه کافر دی لمونځ نه دی پسی روا. درویش وائي چي معتزله توله د دغو دوو مسئلو څخه منکر دی کما فی شرح العقائد، قالَ الطوسیُّ فی التجرید" وَرؤیةُ اللهِ تعالیٰ کما یزعمه اهل السنته والجماعت آه او دوی وائي چي نوشته د کرام کاتبین عبث کار دی. ولی خدای پاك خوده هر چا په ښه عمل او بد عمل خبر دی نو نوشته نه څه ضرورت سته» کذا فی شرح العقائد والجواب عنا فی ذالک الکتاب.





او ط زیاته کړیده چي څوك چي خدای لره لاس او مخ او پښي وائي لکه بندګانو ته هغه کافر دی. چي دی ډلی ته مشبّه وائي او یا مجسمه وائي. **پوه سه**: چي وهابیان تول د غسی وائي. او که صرف دومره وَیل چي خدای پاك جسم دی لا کا الاجسام هغه مبتدع لمونځ پسی مکروه دی» او ط زیاته کړیده چي څوك چي د خلافت د ابوبکر الصدیق رضی الله تعالیٰ عنه منکر سي. هغه هم کافر دی اقتداء نه ده پسی روا. درویش وائي، چي شیعه ګان په یوه خوله د خلافت څخه د ابوبکرؓ الصدیق رضی الله تعالیٰ عنه منکر دی نو لمونځ نه دی پسی روا. او ط وائي که څوك د علیه السلام د اسراء څخه منکر سی هغه کافر دی. لقوله تعالیٰ: سُبْحَانَ الَّذِیْ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلًا آه او که د اسمانو د تللو څخه یا فوق ته هغو منکر سی هغه ضال او مُبتدع دی. وَلی چي دغه تګ په مشهوره حدیثو سره ثابت دی. او فتح القدیر وائي چي انکار د خلافت څخه د عمر رضی الله تعالیٰ عنه هم کفر دی لکه د ابوبکرؓ الصدیقؓ د خلافت څخه چي په دی انکار کښي هم توله شیعه ګان شریك دي.

**مسئله**: په مجمع الروایات کی وائي که چا په هغه مُبتدع پسی چي بدعت یې کفر نه وو لمونځ وکړي ثواب د مطلق جماعت خو خدای پاك ورکوی لکن دومره ثواب یې نسته لکه چي په غیر مبتدع پسی لمونځ کړي وای»، ط، حاصل دا چي اهل السنة والجماعت ته احتیاط پکار دی چي په داسی خلګو او مُلایانو پسی لمونځ وَنه کړي چي نوی نوی نومان پر خپل جماعت ایښی وی او اصل یې نه وی مَعلوم» فتأمّل.

**مسئله**: نه دی رَوَا لمونځ په هغه چا پسی چي دَمسح د موزو څخه منکر وي لکه شیعه ګان او معتزله **فائده**: نه دی روا لمونځ په هغه چا پسی چي د صحبت د ابوبکر الصدیق رضی اللهُ تعالیٰ عَنه منکر وي. او د غه رنګه نه دی رَوَا لمونځ په هغه چا پسی چي ابوبکرؓ الصدیق او عمر رضی الله تعالیٰ عَنهما ته بښکنځل کوي او ظالمان ور ته وائي. او نه دی رَوَا لمونځ په هغه چا پسی چي سیدتنا عائشه رضی الله تعالےٰ عنها ته نسبت د زنا کوي. او نه دی روا لمونځ په هغه چا پسی چي دیوی قطعی

... منکروی لکه رؤیت دخدای جل جلاله په جنت کی. او دغوخلګو
... اجتهادونه فائده نه کوی. ولی چې مسح دموزو په قران سره ثابته ده
... سلم ورحمهم په قرائت دجر چې محمول په حال د تخفیف دی کذا
... متواتر المعنی سره ثابت ده کما فی کتب الاحادیث
... حبت د ابوبکر الصدیق رض هم په قران سره ثابت دی. اذ قال لصاحبه لاتحزن
ان الله معنا. قال ذالک النبی ... الصدیق اذ هما فی ... جبل الثور وقت الهجرة وتفصیل
تلک القصة فی کتابی ... المبین او د تخنیو سب په اجماع دامت کفر دی قبل ظهور
الفرق المبتدعة ... تنا عائشة رض په برائت کښی ۱۳ آیته دقران نازل سوی دی
دکوم خبره چې یقینی وی په ... دهغی منکر هم کافر دی، ط، در

**پوښتنه**: لمونځ په مبتدعانو پسې چې بدعت یې کفرته نه وی رسیدلی شه
کاردی! او که یواځې لمونځ پر ښه دی. **جواب**: په سراج کی وائی چې په فاسق پسې
لمونځ کول اولی دی تر یوازی لمانځه لکن داخبره هلته صحیح ده چې په فاسق پسې لمونځ
کول مکروه تنزیهی وی. مګر دپرعلماء هغه مکروه تحریمی بولی نو بیا یوازی لمونځ کول
تر جماعت د فاسق بهتر دی. رودانو، کسان لکه اعرابی. ولد الزنا. مرییی وغیره. په دغو
کسانو پسې لمونځ کول یوازی پر بهتر دی. ولی چې په شرائطو د لمانځه ندی خبر
رائق والا په یقین سره وائی چې اقتداء په دغو کسانو پسې افضله ده تر یواځی
لمانځه وعلیه الفتوی. در،

**مسئله**: په لیونی پسې لمونځ مکروه دی **مسئله**: په سفیه یعنی لیونئ
سړی پسې لمونځ مکروه دی. **مسئله**: چې ابلج وهلی وی لمونځ پسې مکروه
دی **مسئله**: چې فس وی او فس یې په بدن باندی شائع سوی وی لمونځ
پسې مکروه دی. **مسئله**: په ریاکار پسې لمونځ مکروه دی او داغر لکه چې
آتشک مرض په کښې وی لمونځ پسې مکروه دی. **مسئله**: په هغه امام پسې چې
لمونځ په مزدوری ورکوی لمونځ مکروه دی لکن په نیز د قدماء دفقهاؤ او دمتاخرینو





فتوی پر دی ده چې مزدوری اخستل پر لمانځه، پر آذان، پر تعلیم القرآن، وغیر ذالک
روا ده، لظهور التوانی فی امور الدین کذا قال شارح الوقایه، وکذا فی شرح السید وحاشیة
جلالین. او بدر الدین العینی په شرح کښی دهدائ وائی چې اقتداء په مخالف المذهب
او په بر او فاجر پسې چې حد د کفر ته نه وی رسیدلی. او بیا په امام کی داسی عمل نه وی
چې د مقتدی په مذهب کی هغه فاسدونکی د لمانځه وی کما مر امثلته» والاقتداء
اولی من الانفراد ولی چې مکروه والی خو منافی د ثواب د جماعت ندی تر هغو چې مکروه
تحریمی نه وی» والله اعلم بالصواب»

**فائده**: په اوسنی زمانه کښی وهابیان او سلفیان، په متابعت د ابن تیمیه
الحرانی، او په فتوی د محمد بن عبد الوهاب النجدی وغیرهما ټوله
امت مسلمه غیر د خپلو ډلګیو مشرکان او عبدة الاصنام وائی او بتان یې ملایان او مشائخ
کرام بولی، حنیفیان وی او که شافعیان وی. او که مالکیان وی او که حنبلیان وی. او یوه
**بله ډله** چې ځانته اهل حدیث وائی په متابعت د ابن الحزم او ابن القیم ټوله امت
مرحومه ته خو په اتفاق مبتدعو وائی. لکن غلاة په دوی کی هم ټوله مشرکین بولی،
کتابونه د دغو ډلو تاسو مطالعه کړی. عجبه داده چې د دوی نمایندګان او مشران په
خیر القرون الثلاثة کښی نه وه. او وروسته پید اسوه او خپل ابتداع فی الدین یې ښکاره
کړه د دوی متابعت خلک کوی او د خیر القرون د مجتهدینو متابعت پرېږدی.

**مګر دا او وره**: هر شی ته دسیسه ده. هغه پیسه هغه پیسه ده. نو مطلب دا چې
د دغو ډلو فتوی د هیڅ اعتبار ور نه ده. بلکه یواځی او یواځی فتوی د فقه شریفی د معتبرو
متونو، او شروحو، او فتاواوو، د اعتماد او اعتبار وړ دی. نو لازم ده پر مونږ هم بیا نو چې
خپل د مذهب فتاواوی دی مطالعه کړي او د هغو څخه دی بدعات مکفره وغیر مکفره
معلوم کړي. او دا هم لږ فکر وکړي چې هر ډلی چې پر ځان د ښځوانی نوما نو لکه اهل السنة و
الجماعت حنیفیان وغیره نوی نوم ایښی وی. چې ښه پوښتند پسې وسی په پای کی ئی
ترب وی، یعنی ګندم نما جو فروشان دی. وغیر. او که تاسی د در ولیږل سره حسد علمی،

قومی او هم عصمت نه لری، نو براه کرم رساله د درویش چی نوم یه «البیانات الصادقة» فی احوال الفرقة الوهابیة» مطالعه کړی. او یا رساله د فقیر «سیف القند هاری علی عنق الوهابی» چی د خیالی پرغتی بیاض پسله ۶۰» صفحه تر پایه نوشته ده وګوری.
او یا رساله د فقیر کشف الغطاء عن عصمة الانبیاء» مطالعه کړی. او که حسد لری نو زه وایم
ـه از خیر تو بیزار هستم شر مرسان» بیت. نقصان قابل است و گر علی الدوام: فیض سعادتش بهمه کس برابر است.
بیت: دا باران چی پر همه وو څڅکاوری. مشرف ئی کی دا ذات د کیمیا ولي!
دا وود مبتدع په باره کښی حسب الطاقة کشف الحال» اوس بیرته رجوع کوم ان شاء الله
و شرحی ته د نور الایضاح په توفیق د خدای جل سلطانه وعم رحمته» قال المصنف

## وَتَطْوِيلُ الْقِرَاءَةِ وَجَمَاعَةُ الْعُرَاةِ

او مکروه دی اوږدول د قرائت. او مکروه دی د جماعت لمونځ کول د هغو خلګو یعنی چی عورت یه ښکاره وی» قال علیه الصلوٰة والسلام: مَنْ اَمَّ قَوْمًا فَلْيُخَفِّفْ» که چا امامت ورکاوه یو قوم ته نو لمونځ دی سپک کوی یعنی قرائت د خوا ئخه» حکمت په دا دی چی په تطویل کی د قرائت د خلګو نفرت راځی د جماعت د لمانځه. او جماعت د بربنډو خلګو چی مکروه دی سبب یه دا دی چی یو د بل عورت ته کتل راځی. او دا غرنګه مکروه دی اوږدول د لمانځه په ډیره یلوسره د تسبیحاتو د رکوع او سجدی وغیره. ولې چی امر د تخفیف عام دی. او په یو بل حدیث کښی راغلی دی: قال علیه الصلوٰة والسلام: یا ایها الناس ان منکم منفرین من صلی بالناس فلیخفف فان منهم الکبیر والضعیف وذا الحاجة رواه الشیخان» ترجمه: ای خلګو بعض ستا سی په نفرت کی اچوونکی دی یعنی د جماعت نه پس هر څوک چی خلګو ته لمونځ ورکوی نو تخفیف دی کوی. ولې چی په خلګو کی کلان سالہ او ضعیفه خلک او کار والا خلک ستنه»
امام طحطاویؒ تر دغه حدیث لاندی لیکلی دی چی د دې حدیث څخه دا سی معلومیږی چی امام دی قدر مسنون قرائت هم پرېږدی په مراعات د حال د قوم، او د غه امام د خپلی خبری په تائید کښی هغه حدیث د بخاری او مسلم راوړی دی چی یو وار ئې رسول کریم صلی الله





علیه وسلم د سحار په لمانځه کی «قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ» آه. او «قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ» آه ووایه خلګو ورته وو یل «اَوْجَزْتَ» لمونځ دی کوتاه کړی. علیه الصلوٰة والسلام ورته وو ئیله: سَمِعْتُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَخَشِيتُ اَنْ تُفْتَنَ اُمُّهُ، ترجمه: ما واورېده ژړا د کشنی یعنی چی مور یه پر لمانځه کی داخله وه. نو زه و ببیریدم یعنی که زه قرائت اوږد کړم چی مور بی په فتنه کښی واقع سی. یعنی یا به جماعت پرېږدی او یا بی حضو د لمانځه نه سی پاته صـ۲۴۶ :
او مولوی اعزاز علیؒ په حاشیه کی د نور الایضاح په حواله د بحر ص۹۷ ج ۲. دا سی لیکلی دی چی مصنفؒ مطلق تطویل مکروه وبالہ تا چی هغه صورة شامل سی چی جماعت والا محصو کسان وی او په تطویل د قرائت هم راضی وی. لکه هغه صورت خو شامل دی چی د جماعت خلق غیر محدود وی او یا راضی په تطویل نه وی آه
درویش وائی: چی د دی دو وکتابو مضمون چی و سنجوی نو قدر مسنون د قرائت له بی انفرادی لمانځه بل ځای نه پاتیږی. ولې چی هر جماعت چی لمونځ کوونکی محصو نه وی خواه مخواه کبیر السن او یا ضعیف او یا ذا الحاجة په کښی کی وی نو په دا سی جماعت کی خو تخفیف لازم دی په مقتضی د حدیث. او بحر الرائق په صورت کی د دی چی خلق محصو او راضی په تطویل د قرائت وی هم تخفیف لازم وباله. او طحطاویؒ وویل چی تر قدر مسنون دی هم تخفیف کوی او دلیل یه دا وئیلی دی. لاطلاق الامر بالتخفیف»
درویش وائی: چی قول فیصل دا دی چی انفرادی لمانځه کی قدر مسنون مستحب دی. او تر هغه تطویل کول بیله کراهته روا دی. او په صورت کی د دی چی قوم محصو وی او په تطویل د قرائت هم راضی وی. نو امام خو دی قدر مسنون نه پرېږدی. او تر قدر مسنون بالاویل که څه هم قوم راضی وی مکروه دی: لاطلاق الحدیث کما مرّ» او که قوم محصو یا غیر محصو وو مګر پېښ بیری یا ضعیف، یا ذا الحاجة یقینًا په کښی وو امام دی تر قدر مسنون لکه د سحار یا د ماپښین لمونځ چی قرائت مسنون یه اوږد دی. په مراعات د قوم یو څه کم قرائت ووائی. تر قدر مسنون په مقتضی د لمانځه د سحار چی علیه السلام په معوذتینو سره

وګذاره. او که قوم محصور یا غیر محصور وو لکن مانع د تطویل متیقن نه وو. نو امام دی قدر مسنون وائی بالاویل مکروه دئ. وهذا هو التحقیق الحقیق بالقبول ان شاء الله العزیز: قال المصنفؒ:

## وَالنِّسَاءِ فَاِنْ فَعَلْنَ يَقِفُ الْاِمَامُ وَسَطَهُنَّ كَالْعُرَاةِ

او داغر رنګه مکروه دی جماعت د یواځو ښځو. (چې یوه ښځه امام وګرځوي او نوري اقتداء پسې وکړي) او که دوي سره د کراهت جماعت کاوه نو واجب ده چې امامه ښځه دې د نورو ښځو په مابین کې دریږي. لکه لغړ خلګ چې جماعت کوي هم به امام په مابین کې دریږي.

**مسائل** د لغړو خلګو جماعت چې مکروه دی علت یې دا دی چې که امام د مخه ودریږي زیادت کشف د عورت ده لازمیږي. او که په مابین کې دریږي تقدیم د امام چې واجب وو پاتېږي. **مسئله**: افضله دا ده چې عرات (لغړ) دې لمونځونه یوازې یوازې وکړي په ناستې. او لیرې لیرې دې سره کښېني او په اشاره دې وکړي. او کې په جماعت کاوه هم دې په ناستې په اشاره سره وکړي. او د ښځو لمونځ چې یوازې په جماعت مکروه دی سبب یې دا دی که امام د مخه ودرېږي چونکه په ښځو کې فتنې ډېره دی نو پس خا ندی به. او کې په مابین کې ودرېږي تقدیم د امام چې واجب دی هغه پاتېږي

**مسئله**: که ښځو ته لمونځ په جماعت نر وو کاوه. نو که په جماعت کې بل نر هم موجود وو. او یا د امام ماینه هم موجوده وه. او یا د امام محرمه ښځه لکه مور، خور، وغیره موجوده وه خو هیڅ کراهت نشته لکه په مسجد کې، او که داسې نه وو نو د نر جماعت ورکول هم مکروه دئ.

**مسئله**: د ښځو امام چې د صف په مابین کې وي پنده بې تر نورو ښځو د مخه وي.

**مسئله**: که ښځو امامه ښځه د مخه ودرول لمونځ خو یې صحیح دی لکن ګناه ګار شو دي. او امام حمويؒ د خزانة الاکمل څخه نقل کړي دی چې د مخه کول د ښځو د امام جائز دی یعنی ګناه نشته پکښې. والفتوی علی الاول" در". **مسئله**: افضل ښځو لره دا ده چې په کور کې دې لمونځونه کوي که د جمعې لمونځ وي او که دا نور لمونځونه وي. که څه هم په عمر کې





د نبی علیه السلام په ابتداء کښې ښځې جماعت ته ورتلې، خو بیا په سبب د فتنې منع سوې کنز (فی کتب الاحادیث النبویة): قَالَ اللّٰهُ تعالیٰ: وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ. وقال صلی الله علیه وسلم: بیوتهن خیر لهن لوکن یعلمن. نو مسجد ته د جماعت د پاره د دې آیت کریمه او حدیث نبويؐ څخه مخالفت لازمیږي: قَالَ عَلَيْهِ الصلوٰة وَالسلام: صلوٰة المرأة فی بیتها افضل من صلاتها فی حجرتها، یعني په بنده کې وصلاتها فی مخدعها. یعني هغه خونه چې دروازه یې په بله خونه کښې وي اَفْضَلُ مِن صَلاتِهَا فِي بیتها"، یعني هر ځای چې د ښځې ستر په کښې ډیر وي هغه افضل دی د لمانځه د پاره

**مسئله**: که ښځې د خپل قریب جنازې ته راغلې وي هغه دې د نورو سره په جماعت لمونځ وکړي. ولې چې د جنازې لمونځ نه مکرر کیږي او که دوي جماعت ونه کړي نو خو د جنازې لمونځ یک لخته د دوي څخه پاتې شو:

**نادره مسئله** که د جنازې په لمانځه کښې ښځه د مخه سوه نو اقتداء پسې وکړه که څه هم د نرو اقتداء خو نه ده پسې روا. لکن د جنازې د لمانځه حق د ښځې په لمانځه سره ادا سو ط"، قال المصنفؒ:

## وَيَقِفُ الْوَاحِدُ عَنْ يَمِينِ الْاِمَامِ وَالْاَكْثَرُ

او ودې دریږي چې یو وي پر استه لاس د امام، او چې بالاتر یو وي یعني که دوه او که دري وي نو ته

## خَلْفَهُ وَيَصُفُّ الرِّجَالُ ثُمَّ الصِّبْيَانُ ثُمَّ الْخُنَاثٰى ثُمَّ النِّسَاءُ

د امام دې ودریږي. ترتیب د صفونو دا دی. اول دې صف وي د لویو خلګو، او بیا دې صف وي د نرو ځنیانو، او بیا دې صف وي د نرو ښځیانو، او بیا دې صف وي د ښځو، او ځنیانې. انجوني دې هم په صف کې د ښځو ودریږي. او بیا تر شا د هغو لکه په نرو، لویانو او ځنیانو کې

**پوهسه**: چې مراد د واحد څخه نر دی که لوی وي او که تمییز والا کشنی وي او که ښځه وه تر شا دې ودریږي. **مسئله**: مصنفؒ په مراقی کې دا قید وئیلی دی متاخرًا بعقبه یعنی د مقتدي پنده به تر امام وروسته وي. لکن ط وائي چې په شروح الهدایه

والقدوري والکنز والبرهان، والقهستاني وائي چې يو مقتدي بېخې د امام سره سم ودرېږي بيله تقديم او تاخيره. او په مابين کې د امام او مقتدي به کمه فرجه نه وي دا قول ظاهر روايت دی، درويش وائي چې شايد مصنف ته به تصحيح د غير ظاهر الروايت ثابت شوې وي. نو ځکه يې ووېيل چې متأخرًا بعقبه"

**پوښتنه**: چې دا يو ځای دی دوه مقتدي واحد د امام سره هلته دی چې د تحريمې شروع د لمانځه سره يو ځای شي. او که امام شروع په لمانځه کړې وه بيا يو سړی راغلی اقتداء يې پسې وکړه او ترشا ودرېدی امام دې اشاره ورته وکړي د ځان سره دې برابر کړي. او مکروه دی درېدل د مقتدي واحد په چپه لاس د امام. ولې چې په حديث کې د بخاري وغيره راغلي دي چې عبد الله بن عباسؓ يوه شپه د عليه الصلوٰة والسلام په کور کې چې هغه کور د ده د خاله وو بيده وو او څرنګه چې عليه الصلوٰة والسلام د تهجد لپاره پاڅېدو او دس يې تازه کړې په لمانځه ودرېدی، ابن عباسؓ هم راپاڅېدو او دس يې تازه کړي. او په عليه السلام پسې اقتداء وکړه. لکن په چپه اړخ د عليه الصلوٰة والسلام. نو عليه الصلوٰة والسلام تر غوږ ونيوی او ترشا د خوا يې وراسته اړخ ته راوستی. دد ې حديث فوائد:

۱. دا معلومه شوه چې نفل په جماعت بيله بلنې روا دي، ۲. لږ عمل لمونځ نه فاسده وي ولې چې عليه السلام ابن عباسؓ وراسته اړخ ته راکش کړی، ۳. دا معلومه شوه چې د مخ والی د مقتدي پر امام نه دی روا. ولې که روا وای نو عليه السلام به ابن عباسؓ خپله د مخ د خوا راسته اړخ ته راوستلای وای. او سره دد ې چې د مخ د خوا راوستل يې آسان وو ترشا د راګرځولو، کما لا يخفى. ۴. اقتداء په امام پسې روا ده که څه هم امام په ابتداء کې د لمانځه يوازې وي. او وروسته بل سړی اقتداء پسې وکړي. ولې چې عبد الله بن عباسؓ خو وروسته تر شروع د عليه السلام اقتداء پسې وکړه. ۵. معلومه شوه چې د کشنی مميز لمونځ صحيح دی. ۶. معلومه شوه چې امام د مقتدي يا نو ته لار ښوونه د سنت ته د لمانځه کوي. که څه هم په اشاره او فعل قليل وي، ط.





**مسئله**: که مقتدي يان دوه وه، نو افضله دا ده چې وروسته دې تر امام ودرېږي. ولې چې په حديث شريف کې راغلي دي چې آنحضرت صلی الله عليه وسلم يوه ورځ په کور کې د ام انسؓ تبرکًا دوه رکعته نفل کول نو انسؓ او بل يتيم يې ترشا ودرول. او ام انسؓ وشاته د هغوی وو ودرېدله. او دا يتيم د انسؓ ورور وو د مور د خوا. او نوم يې عمير بن ابي طلحه په يتيم مشهور وو او کنې لوی سړی وو. وکذا في حواشي البخاري،،

**سؤال**: د ابن مسعودؓ نه روايت دی چې هغه وعلقمهؒ او اسودؒ ته لمونځ ورکاوه. او ابن مسعود په مابين کې د دواړو ودرېدی او بيا ابن مسعودؓ ووېيل هکذا صلی بنا رسول الله صلی الله عليه وسلم **جواب**: هغه فعل د پاره د بيان د جواز دی.

**مسئله** که درېيم سړی راغلی نو په چپه طرف د هغه چا دی ودرېږي چې هغه په برابر د امام دی. نو به امام په مابين کې شي. ولې اول وار چې دوه کسه وه خو يو په برابر د امام درېدلی وو او بل د امام وراسته خواته درېدلی وو. نو درېيم چې د محاذي الامام په چپه طرف ودرېږي امام په مابين کې راشي. وهکذا اکر بل سړی پيدا شو هغه دې د امام د محاذي چې په چپه طرف ولاړ دی د هغه پر راسته طرف دې ودرېږي. حاصل دا چې امام دې د صف په مابين باندې وي.

**پوښتنه**: خلک وائي چې د امام راسته طرف افضل دی د مقتدي د پاره نو د دې کبله پر راسته طرف د امام خلک ډېر وي تر چپه طرف. **جواب** راسته طرف هلته افضل دی چې د دواړو طرفو مقتديان سره برابر وي نو که نوی سړی راسي پر راسته طرف دې ودرېږي. او که چېرې راسته طرفته يو نفر بالا وو او نوی سړی راغلی هغه له پر چپه طرف درېدل افضل دي. حاصل دا چې د عوامو دغه عقيده او فعل چې پر راسته طرف ډېر درېږي او پر چپه طرف کم سره دد ې چې په چپه طرف کې ډېر ځای خالي وي غلط کار دی. او په فتاوای عتابيه کې وائي که امام د صف په مابين کې ودرېږي ګناه ګار دی. او يا ټول خلک د امام پر راسته طرف يا چپه طرف ودرېږي ګناه کار دی. او په فتح القدير کې په نقل د درايه نه وائي که چېرې يو سړی د امام پر څنګ ولاړ وي او نور ټول صف وروسته وي دا سې فعل مکروه دی اتفاقًا.

**پوښتنه**: په بعض لویو جامع مسجدو کی د محراب ساحه ډیره فراخه وی. نو که امام یوازی دننه په محراب کی ودریږی دا خو مکروه دی. او که امام پښنی تر محراب راوباسی اول صف خرابیږی. او مسجد هم تنګ وی یعنی خلک پردیروی. **جواب** امام دی په طاق کی د محراب ودریږی او دری یا څلور کسه دی په محراب کی ورسره ودریږی. او نور خلک دی بیا ندی ودریږی. نو هغه دری څلور کسه ګویا صف اول سو،،

**مسئله**: په ترتیب کی د صفو اول صف د لویا نو نرانو، خلګو دی لقوله علیه السلام لیلنی منکم اولوا الاحلام[1] والنهی[2]،، او دا خو نو لویان نران دي. نو پر امام لازم ده چي ځینیان دی په اول صف کی نه پریږدی،،

## د صفونه باره کی احادیث او مسائل

**مسئله**: امام به مقتدیان امر کوی چي جوت سره دریږی. او په مابین کی به خالي ځای نه پریږدی. او اوږی به سره برابری کوی او ځګرو نه هم،، در وفی الحدیث قال النبی صلی الله علیه وسلم: اِسْتَوُوْا تَسْتَوِیْ قُلُوْبُکُمْ،، برابر سره دریږی په لمانځه کی نو سره برابر به سی ستاسی زړونه ،، دا د صفود برابرولو یو راز دی چي خدای پاک نبی علیه السلام ته کشف کړی دی. یعنی برابر دل په صف کی سبب دی د برابری د زړو د مسلمانانو دی،، لکه په بل حدیث کی چي راغلی دی چي اختلاف د صف سبب د اختلاف د زړو ګرځی. وَتَمَاسُّوا تَرَاحَمُوْا. او تاسی یو د بل سره نږدی دریږی خدائ به پر تاسی رحم وکړی. او په حدیث پاک کی داسی راغلی دی،، اَقِیْمُوا الصُّفُوْفَ: تاسی صفونه برابر وی. وَحَاذُوْا بَیْنَ الْمَنَاکِبِ وَسُدُّوا الْخَلَلَ،، او تاسی سره برابر وی اوږی یو د بل سره. او تاسی بند وی فرجه د دوو کسو تر مابین. یعنی فرجه مه پریږدی لکه په بل حدیث حسن کی بزار په روایت کړی داسی راغلی دي. مَنْ سَدَّ فُرْجَةً فِی الصَّفِّ

---

[1] جمع حلم بضم الحاء ای البلوغ ۱۲ منه [2] جمع نهیة بضم النون ای النوم العقل ۱۲ منه





غفرله: ترجمه: که چا بنده کړه فرجه په صف کی خدائ به ګناه ور وبخښي.

وَلِیْنُوْا بِاَیْدِیْ اِخْوَانِکُمْ: او تاسی نرم کړی ځنګلو لاسو خپل ورونړه، یعنی که په صف کی فرجه وه او ته ور داخلیدی دو رور چي په صف کی ولاړ دی لاس پر کښیږده چي نرم سی. او په دا فرجه کی تا پریږدی. پر دی ترجمه لَیِّنُوْا په شد دیاء دی. او په بل حدیث کی د ابوداؤد امام ابی عمر څخه داسی روایت دی،، ولِیْنُوا بِاَیْدِیْ اخوانکم پردی تقدیر یا په تخفیف ووایه ،، او ترجمه یی داسی ده چي هغه سړی چي په صف کی ولاړ وی ځان دی نرم کړي ور ور ته په سبب د لاس الیښو د لو د ده پر او نه چي صف ته داخلیده غواړي یعنی دړه دی ځان نه ور وګلی. چي ته ولی د صف په مابین کی را ننوزی. ولی هغه ور ور دا فرجه ډکوي. لَا تَذَرُوْا فَرَجَاتٍ لِلشَّیْطٰنِ،، او تاسی مه پریږدی خالي ځایونه چي فرجه ور ته وائ د شیطان دپاره. چنانچه په بل حدیث شریف کی راغلی دی چي شیطان چي فرجه وینی په هغی کښی داخلیږی دپاره د وسوسی مَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللّٰهُ،، اخبار دی یا دعاده یعنی که چا صف سره متصل کړي یعنی فرجه یی نه پریښوله خدائ به وصل کړي وخیر ته. او یا دی خدائ وصل وکړی وخیر ته علی تقدیر الاخبار و الدعاء: وَمَنْ قَطَعَ صَفًّا قَطَعَهُ اللّٰهُ،، که چا قطع کړي صف خدائ به د خیره څخه قطع کړي.

قطع د صف یا داده چي په صف کی ولاړ وی او بی ضرورته د صفه څخه ووزي. او یا داسی چي دیوه صفه ووزی او بل صف ته ولاړ سي. او د خپل اول صف ځای خالی پریږدي. قال

## وَاَفْضَلُ الصُّفُوْفِ اَوَّلُهَا ثُمَّ الْاَقْرَبُ فَالْاَقْرَبُ

او بهتر د صفو اول صف دی وروسته بیا نږدی او نږدی. یعنی اول صف ته. لکن دا په غیر کی د جنازی د لمانځه چي په هغه کی اخیر صف خیر او افضل دئ. ولی د شبهی د عبادت د غیر الله لیری دئ. ط، په حدیث شریف کی راغلی دی: اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰئِکَتَهٗ یُصَلُّوْنَ عَلَی الصَّفِّ الْاَوَّلِ

**پوښتنه**: چي په صفو کی د نرو اخیر صف بیکاره دی ولی چي ښځو ته نږدي دئ.

اود څخو په صفوکی اول صف بیکاردی ولی چی وَنروته نزدې دئ اخیرصف د ښځوافضل
دئ. مصنف په مَراقی کښی وَائی: چی دحَدیث په یَوه روایت کی داسی راغلی دی: چی
خدائ پاك نزول د رَحمت خپل کوی اول پر امام، او وروسته پرهغه چا چی بَرابَر پر امام
وَلاړ وی. او وروسته بیا پرهغو کسانو چی دامام پر راسته اړخ وَلاړ وی. او
وروسته بیا پرهغو کسانو چی دامام پرچپه لاس وَلاړ وی. او بیا نو رحمت وصف ثانی
ته راځی. یعنی ثم وثم الی اخیر الصفوف"
او په یوه روایت کی په قول د مَراقی کی داسی هم راغلی دی"چی هغه چا ته چی پر برابر د امام
لمونځ کوی د سلو لمونځو ثواب ورکول کیږی. او چی پر راسته طرف دامام لمونځ
کوی د ۷۵ لمونځو ثواب ورکول کیږی. او چی پر چپه طرف کی دامام لمونځ کوی د
۵۰ لمونځو ثواب دی. او چی په نورو صفوکی وی د ۲۵ لمونځو ثواب ورکول کیږی
او په حدیث کی دابی مالك[۴] الاشعری داسی راغلی دی چی نبی علیه الصلوٰة والسلام
لمونځ کاوه. نو یې اول لوی نران وځانته خرمه یعنی نزدی ودرول. او بیا یې کشنیان په
هغو پسی ودرول. او دکشنیانو وشا ته ښځی ودرولې.

**مسئله:** که ده کشنیانو صف نه برابر یدی نو کوشنیان دی رجال په ما بینو کښی
ودریږی. **درویش** وائی چی دا تفصیل دَصفو په هغه وخت کښی وو چی ښځی جماعتو
ته اوتلای سَوای. لکن اوس خو دوی ممنوع د حضوَ څخه دجماعتو. اللهم الاف
الحَرمین الشریفین للحرج الکلی للنسوة اللاتی یأتین من خارجهما"

**تبصره** برابرول د صفو ذمه دامام المسجد ده په داسی خبره دی صَفونه برابرکړی، نژدی
نژدی سره ودریږی تیرو بیرمه دریږی. لکن زمونږ د پښتنو بعض امامان
چی په محراب کښی ودریږی هیڅ چا ته هیڅ ښوونه نه کوی. او نه د صفو وخواته
مخ راړوی. نو ددی سبب چی امام ډیر غ نه کوی خلگ هره ډول چی په صَف کی ودریږی
هغه ډول وَلاړ وی څوك پرمخ او څوك ترشا. په مابین کی ډیری فرجی هم پیداوی
وَالی الله المشتکی،،



# فَصْلٌ فِيمَا يَفْعَلُهُ الْمُقْتَدِيُّ بَعْدَ فَرَاغِ إِمَامِهِ مِنْ وَاجِبٍ

وَغَيْرِهِ فصل دی په بیان کی دَهغو کارو، چی مقتدی یی کوی پس له فارغ والی څخه دامام
دده که واجب وی او که غیرد واجبو څخه وی. **پوه سه** امام طحطاوی په شرح
کښی د مراقی الفلاح داسی وائی. **اِعْلَم** آه **پوه سه** چی مقتدی دری قسمه دی
۱: مدرك ۲: مسبوق، ۳: لاَحِق. **مدرک** هغه مقتدی ته وائی چی ټول رکعتونه دامام سره
وکړی **لاَحِق** هغه مقتدی دی چی دامام سره خو په اول وار کښی داخل سی او بیا ټول
رکعتونه او یا بعضی رکعتونه ځندی پا ته سی، یا بیده سی. او یا ویښ وی لکن د لمانځه څخه
په سبب دیو فکر غافل سی. او یا دازدحام په سَبب پر ټولو رکعتو یا بعضو قادر نه سی.
او یا بی اودس سه سی چی دی اودس تازه کوی امام د لمانځه څخه فارغ سوی وی. او یا مقتدی
مقیم وی په مسافر امام پسی اقتداء وکړی" نو چی امام سلام وگرځوی پردده خو لمونځ
پاته دی، نو حکم دَلاحق حکم د مدرك دئ. یعنی لاحِق چی خپل لمونځ پوره کوی نه یې قرائت
وائی. او که چیری ودہ ته پخپل لمانځه سهوه ورپیښه سی. سجده سهوه یا ندی فسته.
ولی چی دی حکمًا گویا که په امام پسی وَلاړ دی. او که دَغه لاحِق چی مسافر وی. دخپلو رکعتو
در اگرځولو په وخت نیت داقامت وکړی. فرض لمونځ یې نه څلور کیږی. او لاحق که
چیری بیده وو یا بی اودس سه سوی وُو.
لکن چی دی راویښ سو او یا یې اودَس تازه کړی امام هنوز د لمانځه څخه نه وو فارغ سوی
نو که ممکن وه چی دی خپل یو رکعت مثلًا وکړی. او بیاد امام سره گډون وکړی او سلام
یو ځای سره وگرځوی خو د اغنی دی وکړی. او که داسی ممکنه نه وَه نو د امام متابعت دی
وکړی او په خپلو تیرو سوو رکعتو دی ځان نه مشغول کوی تر هغو دی امام سَلام
وگرځوی. او وروسته تر سَلام دامام خپل تیر سوی لمونځ راوگرځوی. او که پر امام
سجدهٔ سهوه لازمه سوی وَه. دی به سجده سهوه نه ور سره کوی. بلکه خپل قضا ئي
لمانځه ته دی ولاړ سی. اما پس له سَلام د لاحق دی هغه سجده وکړی. او د هغه سَری

**فائده:** مصنفؒ تشهد ذکرکړه ولې که مقتدي درود نه وو وَئیلی یا اَللّٰهُمَّ ربنا اورته یا ترو ه او مُلا سَلام وګرځاوه مقتدی به سلام ورسَره ګرځوي. ولې داخو ترك د سنت دی.

**تفریع:** دروږی په میاشت کی تراویح لبعض مُلایان بیخي چابکی کوی نو مُلا خو به کم از کم اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلىٰ محمد وعلیٰ ال محمد وائی احتیاطاً ولې چې لبعض فقهاءؒ په اخیره ناسته کی درود واجب بولي. اوس نو که مقتدی درود د غونه قدر هم نه وو وَئیلی دامام سَره دې سلام وګرځوي. لبعض صوفیَان عوام درود پوره کوي او بیا سلام ګرځوي هغه د فقهای خلاف کار دئ.

**مسئله** که امام ته بیله قصده اودس مات وه پیښن سو او په قدر د تشهد کښینستلی وو. نو ولاړ دی سی. اودس دی تازه کړي او بیا دی سلام وګرځوي او قوم ته دی یو څوك خلیفه کړي. چه هغه وقوم ته سلام ور وګرځوي **مسئله** که امام بیله تشهد ویلو څخه په قصده څان بی اودسَه کړي نو دامام لمونځ تام سُو او مقتدی که مدرك وی که التحیات نه وه وَئیلی نه بی وائې او سَلام به هم نه ګرځوي ولې چې مقتدی د لمانځه څخه ووتی چه د غه جزء چې دامام د بی اودسَیا سره جوت وُو هغه باطل سُو. نو پر فاسِد بناء نه ده رَوا. لکن د مقتدی لمونځ صحیح دی لکن ر اګرځول به پر واجب دی د پاره د جبیری د نقصان پر ترك د سَلام، ط م.

**مسئله:** که امام تشهده په قدر نه وو کښینستلی او عمداً یه اودس مات کړي او یا یه په زوره وخندل لمونځ دامام او مقتدی دواړه باطل سُو. **مسئله** که امام ودریَم رکعت ته ولاړ سو او مقتدی التحیات نه وه پوره کړي نو پوره دی کړي او که پوره نه کړي دامام سره ولاړ سی هم رَوا ده. ولې د وه واجبه د مقتدی په مخ کی دی متابعت دامام او پوره کول د تشهدی نو ده اختیار دی هر یو چې کوي. او په فتاوای فضلی کی او تجنیس کی وائی چې حتماً دی التحیات پوره کړي او بیا دی په امام پسې ولاړ سی. لکن اول مذهب مشهور او د فتوا وړ دئ.

کتبه ورتبه بیده احقر العباد فضل الحق حقانی غفرله.





چې هم مسبوق یعنی اول د لمانځه څندی تیر سوی وی او هم لاحق وي. چې اخیر د لمانځه څندی تیر سوی وی. نو امام سَلام وګرځوي. او ور وسته تر سَلام دامام خپل تیر سوی لمونځ ر اوګرځوي. او دی د ے د قضاء د پاره و لاړ سي. اول وار دی هغه رکعت او که پر امام سجده سهوه لازمه سوی وَه. دی به سجده سهوه نه ور سره کوي. بلکه خپل قضائی لمانځه ته دی ولاړ سي. [illegible] او ور وسته دی بیا هغه رکعت ر اوګرځوي چې امام به اول کی د ده څخه تیر کړي وو سره د قرائت. او کی عکس د دی وکړي ګناه کار دئ. ولې چې ترتیب د قضا ر او ړلو پر یبنود" کما فی فتح القدیر" لکن لمونځ ئې صحیح دی خلافاً لزفرؒ " **مسبوق** هغه مقتدی ته وائی چې امام تو له رکعتونه څندی تیر کړي یعنی دی پر اخیره ناسته راورسیدی او یا بعض رکعتونه یه څندی کړي وي او د مسبوق حکم دادئ چې دی قضاء ر اوړي په حق کی د قرائت د اول د لمانځه یعنی قرائت به وائی او قضاء دی ر اوړي د اخیر د لمانځه په باره کی: قال

---

## لَوْسَلَّمَ الْإِمَامُ قَبْلَ فَرَاغِ الْمُقْتَدِي مِنَ التَّشَهُّدِ يُتِمُّهُ

که چیری سلام وګرځاوه امام د مخه تر فراغ د مقتدی د التحیات څخه نو مقتدی د ے التحیات پوره کړي. ولې چې د التحیات وَیل په اخیره ناسته کښی واجب دی. او بیا دی سلام وګرځوي. ولې چې تحریمه د لمانځه پاته ده. او جمع د التحیات او سلام ممکن دی کما قلنا. دا مذهب دی د شیخینوؒ. او امام محمدؒ وائی چې التحیات دی نه پوره کوي بلکه د مُلا سَره دی سَلام وګرځوي. ولې چې مقتدی په سلام ګرځولو د امام د لمانځه څخه خارج سو:

**پوښتنه:** چې که ملا خبری وکړي د مخه د مقتدی تر التحیات هم حکم یه د غه دی ولې چې خبری د امام په اخیره ناسته کښی لکه سَلام دی چې امام د لمانځه څخه په وزی او د مقتدی تحریمه باقی ده. نو التحیات دی پوره کړي.

قال المصنفؒ **وَلَوْرَفَعَ الإِمَامُ رَأْسَهُ قَبْلَ تَسْبِيحِ الْمُقْتَدِيْ ثَلَاثًا فِي الرُّكُوْعِ اَوِالسُّجُوْدِ يُتَابِعُهُ** کہ چیرې امام سر پورته کړي د رکوع یا سجدې څخه او مقتدي درې واره تسبیح نه وه پوره کړې دی وکړي. ولې چې متابعت د امام واجب دی او تسبیح ویل سنت دی نو د پاره د واجب دی سنت پرېښي دي. قال المصنفؒ:

**وَلَوْزَادَ الإِمَامُ سَجْدَةً اَوْقَامَ بَعْدَ الْقُعُوْدِ الأَخِيْرِسَاهِيًا لَايَتْبَعُهُ الْمُؤْتَمُّ** او که چیرې زیاته کړه امام یوه سجده په رکعت کې چې وه او یا ولاړ شو امام پس له اخیري ناستې یعنې بل رکعت ته په سهوه سره. نو مقتدي د پسې د امام متابعت نه کوي نه په سجده کې او نه د بل رکعت په ولاړېدو کې. ولې د غه سجده زائده یا بل رکعت خود اصلي لمانځه څخه د امام نه دی. نو پر مقتدي په متابعت هم لازم نه دی. نو مقتدی دی داغسې درنګ وکړي که چیرې امام بېرته د ولاړې څخه راوګرځېدی یعنې خپله سهوه په یاد شوه یا یو چا فتح ورکړه. نو غوره خت چې ملا سلام ګرځوي مقتدي به هم سلام ورسره وګرځوي. قال

**وَاِنْ قَيَّدَهَا بِسَجْدَةٍ سَلَّمَ وَحْدَهُ** او که امام مقید کړي هغه زائد رکعت په سجده سره نو مقتدي دې یوائې سلام وګرځوي. **مسئله**: که امام په تکبیرو کې د اختړو بالا تکبیر ووایه مقتدي دې متابعت نه کوي. او د غه رنګه که امام د جنازې په لمانځه کې پنځم تکبیر ووایه مقتدي د پسې متابعت نه کوي. ط. کې رکعت په سجده مقید کړی او کې نه کې بېرته راګرځیدای شي سره د کراهت او لمونځ یې نه دی فاسد» قال المصنفؒ

**وَاِنْ قَامَ الإِمَامُ قَبْلَ الْقُعُوْدِ الأَخِيْرِسَاهِيًا اِنْتَظَرَهُ الْمَامُوْمُ** او که ولاړ شو امام و بل رکعت ته د مخه تر اخیري ناستې په سهوه سره نو مقتدي دی و امام ته انتظار وکړي. ساهیا ددې د پاره ووایه. که چیرې امام په قصد ولاړ شي لمونځ یې فاسد شو او د مقتدي لمونځ هم تبعًا فاسد شو. قال المصنفؒ:

**فَاِنْ سَلَّمَ الْمُقْتَدِيْ قَبْلَ اَنْ يُّقَيِّدَ اِمَامُهُ الزَّائِدَةَ بِسَجْدَةٍ فَسَدَ فَرْضُهُ** او که مقتدي سلام وګرځاوه د مخه تر دې چې امام زائد رکعت په سجده سره مقید کوي نو فاسد شو فرض لمونځ د مقتدي: قال المصنفؒ:

**وَكُرِهَ سَلَامُ الْمُقْتَدِيْ بَعْدَ تَشَهُّدِ الإِمَامِ قَبْلَ سَلَامِهِ** او مکروه دی یعنې تحریمًا سلام ګرځول د مقتدي پس له التحیات ویلو څخه د امام مګر د مخه تر سلام د امام، وجه د کراهت په دا ده چې د متابعت د امام پرېښنو. لکن لمونځ د مقتدي سره د ترکه د متابعت په سلام کې فاسد نه دی. حتی که پس له سلامه د مقتدي او د مخه تر سلام د امام د بحار په لمانځه کې نمر راوخېژي د مقتدي لمونځ نه دی فاسد. او که مقتدي په تیمم لمونځ کاوه، ده چې سلام وګرځاوه او بیه پیدا شوې هغه لمونځ صحیح دی» مرط، قال:

## فَصْلٌ فِي الْأَذْكَارِ الْوَارِدَةِ بَعْدَ الْفَرْضِ

فصل دی په بیان کې د هغو ذکرو چې وارد دي پس له فرضو یعنې پسله فرضي لمونځو څخه او فضیلت د هغو

**اَلْقِيَامُ اِلَى السُّنَّةِ مُتَّصِلًا بِالْفَرْضِ مَسْنُوْنٌ** ولاړېدو سنتو ته جوت په فرضي لمانځه پسې سُنت دی **پوهه سه**: چې مراد د اتصال دا دی چې تر هغه دعا بالا دې څنډ چې په حدیث شریف کې راغلی. کَانَ عَلَيْهِ السَّلَامُ اِذَا سَلَّمَ يَمْكُثُ قَدْرَ مَا يَقُوْلُ» یعنې وو علیه الصلوة والسلام چې سلام به یې وګرځاوه یعنې د فرض لمانځه څخه د رنګ به یې کاوه په اندازه د هغه

چې وېل بې. اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَام وَ مِنْكَ السَّلَام وَ اِلَيْكَ يَعُوْدُ السَّلَام تَبَارَكْتَ يَا ذَالْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ. ثم يقوم الى السنته :

## تَحقِيقُ المَقَام

په حديث مذكوركى لفظ د قَدَرَمَا يَقولُ آه ددے دپاره وَوَ يىل سو چې بعينه اَللّٰهُمَّ انت السلام آه لازم نه دى اونه آنحضرت صلى الله عليه وَسَلم پردغو الفاظو هميشه توب كړى دى. بلكه په اندازه د مذكوره الفاظو به ئې درنګ كاوه. نوكه څه تردغو الفاظولږ بالاوى اوعليه الصلوٰة والسّلام تر لمانځه وروسته وئيلى وي هم روادى. كما فى رواية عائشة رضى الله عنها: كَانَ رَسُولُ الله صَلى الله عليه وَسَلم لا يقعد الا مقدار مَايقول. يعنى عليه الصلوٰة والسلام نه كښېنستى يعنى پس لفرضو مګر په مقدار ددى چې وئيله بې. اَللّٰهُمَّ اَنْتَ آه چې په دے حديث كى هم لفظ د مقدار راغلى دى.

غرض دا دى چې نو دا سوال نه واردېږى چې په بخارى اومسلم كى داسى راغلى دى عن المغيرةؓ انهٗ صلى الله عليه وسلم كان يقول دبر كل صلوٰة مكتوبة لَا اِله الا اللهُ وَحْدَه لَاشَرِيكَ لَه لَه الملك وَلَهُ الحمدُ وَهُوَعَلىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. اللهم لَامَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَلَامُعْطِىَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الجَدِّ مِنْكَ الجَدُّ» اوبيا يوازى په مُسلم كى په روايت د عبد الله بن زبيرؓ داسى راغلى دي. وكان رسول الله صَلى اللهُ عليه وَسَلم اذا فَرَغَ من صَلوته قال بِصوتِهِ الاَعْلىٰ لاالهَ اِلا اللهُ وحده لَاشريكَ له له الملكُ وَلهُ الحَمد وهوعَلىٰ كل شيْءٍ قدير. لَاحَوْلَ وَلاقُوَّةَ الا بِاللهِ العَلى العظيم وَلَا نَعبُدُ الا اِيَّاهُ وَله الفضل وَلهُ الثناء الحَسَنُ لاالهَ الا اللهُ مخلصين له الدين. ولو كره الكافِرُوْنَ. نو ددغو الفاظو څخه حاصل دجواب داسو چې په حديث كى د اَللّٰهُمَّ انت السلام آه تعيين اوتحديد مقصود نه دى. نو ددغو واردو ذكرو څخه هر ذكر چې سړى وكړى پروا نه لرى **مسئله** داخير حديث څخه داسى هم معلومه سوه چې پوره ته كول د آوازو په ذكرسره وروسته ترلمونځو چې فرضى وى جائز دئ. بلكه بعض سلفؒ وائى





چې دغه رفع د صوت مستحب دَه، وَبه قال ابن حزم من المتأخرين كذا فى ط

**فائده** په بعض كتابو كښى وائى چې دغه الفاظ: كان يقول: كان يَفْعَل، ومثل ذالك دلالت كوى پر دوام او استمرار دهغه قول يا فعل نو دپوره ته حديثو څخه دا معلومه سول چې دا قاعده پرغالب بناء ده كليه نه ده فافهم **مسئله**: امام طحطاوىؒ چې هغه كلمى چې په اَللّٰهم اَنْتَ السَّلام په اخير كى جاريا تى كړى. يعنى واليك يرجع السلام فحيينا رَبَّنا بالسلام وادخلنا دارالسَّلام» هيڅ اصل نه لرى بلكه دا زائدى كلمى بعض قصى كوونكو زياتى كړي دي. قَالَ المُصَنِّفُ

## وَعَنْ شَمْسِ الْأَئِمَّةِ الحُلْوَانِيِّ لَابَأْسَ بِقِرَائَةِ الْأَوْرَادِ بَيْنَ الفَرِيْضَةِ وَالسُّنَّةِ

اوشمس الائمه حلوانیؒ څخه روايت دى چې باك نسته په وَيلو كى داورادو لكه اٰيةِ الكرسى وغيره په مابين كى دفرضو او سُنتو يعنى اتصال دفرضو اوسنتو ضرورى نه دئ. او اولى خبره دا ده چې اوراد دې ترسنتو وروسته وَوَائى چې كراهت بالكليه پوره ته بى. لكن صاحب الاختيار د شمس الائمه څخه مخالف دى او هغه وائي چې هر لمونځ چې ورو سته سنت لرى مكروه ده ناسته پسله فرضو تا چې فصل راولى په مابين كى دفرضو او سُنتو مګر هغه قدره چې د سيد تنا عائشه رضه څخه روايت دى يعنى اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلام الخ هغه مقدار د خه دُعا او يا بله وړه ذكر چې د مخه تير سوله كراهت نه لري. مر،

**دفهم وړ خبره** پوه سه: چې دغه اتصال د سنتو دفرضو سره په استثناء د اللهم انت السلام آه هلته دى چې دى سنت په مسجد كښى ګذاري اوكه كورته تلى او سنت په هورى كول نو بيا فصل جائزدى كه څه هم د قدر مسنون څخه بالاوي. ص۲۵۲

**التوفيق بَيْنَ قولى الاختيار وشمس الائمة** پوه سه چې مراد دكراهت څخه په قول كى داختيار كراهت تنزيهى دى او د شمس الائمةؒ مراد هم دا غردى ولى چې د لفظ لَابَأْسَ آه وَئيلى دى. او د الفظ د لَابَأْسَ په اصطلاح كى د فقهاو

په هغه ځای کې مستعملیږي چې مخالف طرف یه اولی وي. او یا مراد د صاحب الاختیار
ادعیه کثیره دي چې ډیر فصل لازموي.
او مراد د کراهت نه کراهت التحریم دی. او د شمس الائمۂ مراد مطلق جواز دی.
فصل په اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَام آه دئ. **مسئله:** په فتح القدیر وائي چې د علیه الصلوٰة والسلام
نه ندی ثابت سوی فصل د سُنت او فرضو ترمابین په هغو اذکارو سره چې پر هغو باندې
مواظبت کیږي په مساجدو کښې زمونږ په زمانه کې لکه قرائت د آیة الکرسي وغیره.
**سوال:** په صحیح حدیث کښې راغلی دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فقراوو ته
د مهاجرینو وویل، "تُسَبِّحُوْنَ وَتُکَبِّرُوْنَ وَتَحْمَدُوْنَ الحدیث فی دبر کل صلوٰة. نو دې
حدیث نه پراوږدو اذکارو مواظبت فهمیږي. **جواب:** آنحضرت صلی الله علیه
وسلم خو ودوی ته داسې نه دي فرمائیلي چې دغه ۳۳ واره تسبیح، ۳۳ واره اَللّٰهُ اَکْبَر
۳۳ واره تحمید. تاسې په فرضي لمانځه پسې متصل وایاست که څه هم وروسته سُنت
هم وي. نو مراد وویل دَدغو تسبیحاتو وغیره متصل په فرضو پسې دي چې وروسته
سنت نه لري. لکه د سحار او ماز دیگر لمونځ او وروسته ترسنتو ویل دي په هغو لمونځو
کې چې وروسته سنت لري لکه غیر د دغو دوو لمونځو نه فافهم:

**فائده:** که چیري مصلي پسله فرضي لمانځه ډیري خبري وکړي او یا خوراک څښاک
وکړي تر سُنتو مخه وروسته سنت وکړه. صحیح دا ده چې سنت پر باطل
نه دي. البته ثواب یه لږ دی. او بعض فقهاء وائي چې هغه چې مُصلی وروسته وکړه سُنت
نه دي بلکه نفل دي. **مسئله:** په سُنت قبلي او بعدي دواړو کښې وصل د فرضو
سنت دی. مګر هغه کې سُنت قبلي یا بعدي کور کوله بیا فصل روا دی که څه هم ډیر وي.
مثلاً یو سړي د سپید وسره د سحار په کور کښې سنت وکړي او بیا د جماعت تر وختنه پر اذکارو
او وظائفو سره اخته وي پروا نه لري.

**بیان الافضل** پوه سه: چې په سنتو کې افضل دا ده چې داسې ځای دې گذاري چې
د ریا نه لیري وي او اخلاص پکښې وي او کامل وي که قبلي وي





اوکه بعدي وي. که کور وي او که بل ځای. ما سوا د تراویحو او تحیة المسجد، ولې چې افضل
په تراویحو کښې مسجد دی او تحیة المسجد خو مسجد د پاره ده. قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَيُسْتَحَبُّ لِلْإِمَامِ بَعْدَ سَلَامِهِ أَنْ يَتَحَوَّلَ إِلَى يَسَارِهِ لِتَطَوُّعٍ**
او مستحب ده امام لره بعد السلام دا چې څرخ دگو ښي سي د فرضي لمانځه د
**بَعْدَ الْفَرْضِ** ځای نه یعنې په محراب کې که تر شا صف متصل وو ځای نه وو او یا وه
بغل ته محراب وو، لکن د امام وچپ لاس ته ددې د پاره چې تطوع یعنې سُنت وگذاري
پس له فرضو نه. **پوه سه:** چې چپ طرف د مستقل راسته طرف د مقابل راسي
لکه دوه کسان چې سره مخامخ ودریږي نو د هریوه چپه طرف د دغه بل راسته برابریږي.
نو د مصلي چپه اړخ د بیت الله شریف راسته اړخ گڼل کیږي. ددې انحراف
وجه دا ده چې یمین لره د قبلي فضیلت سته. که څه هغه بل طرف ته هم انصراف روا دئ.
او د اصل تحول وجه دا ده چې که امام په عین ځای د فرضو سُنت کوي خلګو ته چې راسي
اشتباه پیدا کیږي چې ددوي به خیال داسي چې امام هنوز په فرضي لمانځه کې دی. او داهم
مستحب ده چې قوم دې څه وچپه لاس ته سره وخوځیږي. قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَأَنْ يَسْتَقْبِلَ النَّاسَ بَعْدَهُ** او مستحب ده چې امام به مخ راړه وي و خلګو ته یعنې وروسته ترسُنتو او تطوع
او یا متصل په فرضي لمانځه پسې که وروسته تر لمانځه تطوع یعنې سنت نه وه لکن
که مخامخ وامام ته لمونځ کوونکی نه وو. ددې دمخ راګرځولو نه مقصود اذکار وغیره
ویل په اجتماعي توګه او دعا کول دي په اجتماع دَوَل چې تفصیل به یې بیا د وَل د رویش وکړی
اِن شَاءَ اللّٰه. **واوره:** چې وهابیان، او سلفیان، او د زمانې اهل حدیث، دعاء په
اجتماعي دَوَل پسله سنتو نه چې خلک او امام یه کوي بدعت بولي. او ملایان ددوئ
د بدعت معنا وعوامو ته نه بیانوي. حتی چې دعوامو دا خیال دی چې بدعت معنا کفر دی
دیوه عامي نه د دوی عاصي پوښتنه وکړه چې ته چې وائي چې دا اجتماعي دعا بدعت ده

دبدعت خو معنیٰ ده. هغه وو ئیل دبدعت معنیٰ شرك دی. اَسْتَغْفِرُاللّٰهَ الْعَظِیْم،،

**پوښتنه**: چی دعاء بعدالسنن خو بدعت نه ده بلکه بعض فقهاؤ په مستحب هم بولی. لکن په مجمع الروایات کی وائی چی امام چی د فرضو او سُنتو څخه فارغ سی دده خو ښه ده که خپلی اوراد وائی په ناستی او یا په ولاړی،،

**سوال**: د جمعی د لمانځه په ایتو کښی خدائ وائی. فَاِذَا قُضِیَتِ الصَّلٰوۃُ فَانْتَشِرُوْا فِی الْاَرْضِ الاٰیۃ نو ددی ایت څخه خو دا معلومه سوه چی اجتماعی دعا نسته **جواب** امام طحطاویؒ وائی چی دا امر د پاره د اباحت دی. او اباحت ده نه کولو د دعاء اجتماعی منافی د استحباب سره نه دی: قَـالَ المُصنفُ:

---

## وَيَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ وَيَقْرَؤُوْنَ اٰيَـةَ الْكُرْسِى وَالْمُعَوِّذَاتِ

او دوی د ېره طلب بخښنی وکړی د خدای څخه. او دوی دی ووائی ایۃ الکرسی او قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ آه قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ آه چی دری سره وو ته معوذات تغلیبًا وائی

---

## وَيُسَبِّحُوْنَ اللّٰهَ ثَلَاثًا وَّثَلَاثِيْنَ وَيُحَمِّدُوْنَهٗ كَذٰلِكَ وَ يُكَبِّرُوْنَهٗ كَذٰلِكَ

او دوی دی سُبْحَانَ اللّٰه ووائی ۳۳ واره او اَلْحَمْدُ لِلّٰه دی ووائی هم ۳۳ واره. او اَللّٰهُ اَکْبَرُ دی ووائی هم ۳۳ واره. قَالَ

---

## ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ

او بیا دی دا کلمی ووائی. نسته معبود ما سوا د الله څخه چی یو دی شریك نه لری. او د هغه باچهی ده.

---

## وَ لَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ثُمَّ يَدْعُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ وَ لِلْمُسْلِمِيْنَ

او د اغه الله لره حمد دی. او دی په هر شی باندی قادر دی. او وروسته دی دعا وکړی په اجتماعی ډول خپلو ځانو او تولو مسلمانانو ته.





## رَافِعِىْ اَيْدِيْهِمْ ثُمَّ يَمْسَحُوْنَ بِهَا وُجُوْهَهُمْ فِىْ اٰخِرِهٖ

لاسونه دی د دعا سره پورته نیولی وی. او بیا دی مسح کړی په لاسونو خپل مخونه په اٰخر کښی.

**د امام او منفرد تر لمانځه وروسته اوراد** په حدیث کی د ثوبانؓ داسی راغلی چی وو به رسول الله صلی الله علیه وسلم چی د لمانځه څخه به خلاص سو، دری واره به ئی استغفر الله تعالیٰ وَیَله. او دا ئی هم وئیله اَللّٰهُمَّ انت السلام ومنكَ السلام آه رواه مسلم، وقال رسول الله صلی الله علیه وَسَلم: که څوك استغفار ووائی وروسته تر هر لمانځه دری واره او داسی ووائی: استغفر اللّٰهَ الذی لا اله الا هو الحی القیوم واتوب الیه نو خدای پاك بی گناهونه ورو بخښی که څه د جنگ څخه د کفارو تښتید لی وی. او ایۃ الکرسی دی هم وائی: لقول النبی صَلی الله علیه وَسَلم: که څوك ووائی په ورو سته کی د هر لمانځه ایت الکرسی نو نه به کی منع د دخول څخه د جنت مگر موت، او که چا ایت الکرسی وو ئیله په هغه وخت کی چی په ځای د خوب د پاره پریوتی خدائ به امن کی ولری د ده سرای او سرای د همسایه دده او نورکورونه تا وخوا دده،، ط صـ ۲۰۵ او بیل معوذات دی ووائی. لقول عقبۃ بن عامرؓ: اَمَرَنی رسول الله صلی الله علیه وَسَلم ان اَقرءَ المعوذات دبر کل صلوٰۃ. او تسبیح او حمد او تکبیر دی ووائی ۳۳، ۳۳، ۳۳، واره چی په حدیث شریف کی راغلی دی که چا دغه تسبیحات یعنی چی په نورالایضاح کی هم دا اوس تیر سوه وو ئیل. و به بخښل سی گناهونه دده که څه هم په مثل د ځگ د دریاب وی. رواه مسلم.

**پوښتنه**: چی د دغو تسبیحا تو په مابین کی خو ترتیب لازم نه دی یعنی هره یوه کلمه چی د مخه کوی روا ده. او په روایا تو کی د حدیثو مبارکه وو هم کاهی یوه مخه وی او کاهی بله د مخه وی. لکن اولیٰ دا ده چی اول دی تسبیح ووائی چی معنا یه دا ده چی خدائ د هره عیبه څخه پاك دی. چی د ېر ته په عربی تخلیه وائی. او بیا دی تحمید ووائی چی معنا یه دا ده چی خدائ په ښو اوصافو ستائیلی دی. چی دې ته په عربی تحلیه

وائی اوقانونًا تخلیه تر تحلیه د مخه ده. مثلاً سړی به سرپاك منځی او بیا بی غوړوی. او مِسگر به دد یگ خیره ایسته کوی بیا بی سپینه وي. و لهذا امثلة کثیرة «

او تر دواړو وروسته دی اَللّٰهُ اَکبر ووائی چی دال پر تعظیم اللّٰه دی. ولحچی طبعًا تر تحلیه او تخلیه وروسته دئ. **پوښتنه**: چی په بعض احادیثو کی ۱۱ یوولس واره دهریوه راغلی دی. او په بعض روایتونو کی لس لس راغلی دی. او په بعضو کی ۶ شپږ شپږ راغلی دی. او په بعضو روایتونو کی ۷ اویا اویا راغلی دی. او په بعضو کی یو وار راغلی دی: حافظ زین العراقیؒ وائی چی ټوله اعداد ښه دی. وَمَا زاد فهو احب الی اللّٰه او بدر الدین العینیؒ په شرح کی د بخاری. او ملا علی قاریؒ په شرح کی د مشکوة وائی. چی د دغو عددو تفاوت په سبب د اختلاف د احوالو د مصلی دی مثلاً د چا تلوار وی یا خوك معذور وی. او یا د چا سره بل سړی مجلس کوی. او بغویؒ وائی چی دا اختلاف د پاره د خیار د لمونځ گذاره د پاره دی، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصواب «

## آدابُ الدُّعاء

دعاء کوونکی به دواړه لاسونه پورته کوی تر برابره پوری د ځیگر، او مخان د لاسونو وطرف ته د مخ د داعی وی. او په حصن حصین او شرح د هغه کی وائی. چی لاسونه به تر برابره پوری د اوږو پورته کوی، او ورغوی بی وطرفته د آسمان وی، لانها قبلة الدعاء « لکن د دی دوو رفعو تفاوت لږ دی. اصلی مقصود دا دی چی د لاسو مخان د مخکی وخواته وی او په حدیث کښی د ابوداؤد هم ودغه توجیه ته اشاره ده، عن ابن عباسؓ ان ترفع یدیك حذو منکبیك او دونهما. **پوښتنه**: په حدیث شریف کی راغلی دی چی رسول کریم صَلَّی اللّٰهُ علیه وسلم لاسونه دومره پورته کوله چی سپین والی د تخلو بی معلومی دي. **جواب**: دومره هو پورته کول یا په حال کی د استسقاء وه. او یا د پاره د بیان جواز دی. او یا په سخته بلاء کی. او یا د پاره د مبالغه په دعاء کښی»ط





په نهر کی وائی چی کیفیت د مستحبی دعاء دا دی چی په مابین کی د لاسو دی لږ پیوست وي. **مسئله**: یو لاس پر مخکله او یو پورته کول په دعاء کی مکروه دی. نو کی دواړه لاسونه نسوای پورته کولای په سبب د کوم عذر او یا د یخ په سبب. نو یوه گوته مسبحه هم کافی ده. چی پورته یه کړي. لکن په شرح کښی د حصن حصین وائی چی ادب د دعاء دا دی چی لاسونه دی سره جوت نسی او گوتی دی وقبلی ته مخامخ کوی. او په شرح کی د مشکوة وائی چی آنحضرت صلی اللّٰه علیه وسلم جمع کړه دواړه ورغوی په دعا کی. درویش وائی. چی د دی کیفیتو په مابین کښی منافات نشته. ولی د حصن حصین مراد دا دی چی لاسونه د پرسره نژدی وي. نو بین فرجه خود هغه سره منافی نه ده. او په حدیث شریف کی مراد دا دی وَاللّٰهُ اعلم چی عَلیه السَّلام په دواړو لاسو دعا کوله نه په یوه لاس. حاصل دا چی لاسونه به دواړه پورته کوی. او ډیر بی لیری نه سره نیسی او مابین کی دی لږ پیوست او فرجه وی. او بل ادب د دعاء دا دی چی پس له دعاء دي لاسونه پر مخ تیر وی. په حدیث شریف کی راغلی دی چی ته درخواست وخدایٔ ته کوی نو دعاء کوه په باطن د ارغوو او په شا د هغو یه مه کوه. او چی د دعا څخه فارغ سوی بیا دواړه لاسه پر مخ تیر کړه. او په بل حدیث کښی راغلی دی چی رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم چی به لاسونه پورته کړه په دعاکی نه ئی کښته کول تر هغو چی مخ مبارك بی په مسح کړئ. او یو لاس پر مخ تیر ول د عادت د متکبرانو دی نو مکروه دئ.

**فائده**: دا خیر حدیث څخه یعنی چی علیه السَّلام به لاسونه پورته کړه آه اشاره ودی ته ده چی د پاره د دعا لاسونه پورته کول شرط نه دی او چی لاسونه نه کړی پورته نه بیا مسح د مخ هم نه غواړی. دلیل یه دا دی چی علیه الصلوٰة والسَّلام ډیری دعاگانی کولی په نفل لمانځه کی، په طواف کی، او په وروسته کی د لمونځو، او په وخت کی د بید یدو، او پس له خوړ که، او نور دغسی لمایونه، او لاسونه یه نه پورته کوله، او نی مسح پر لاسو د مخ مبارك کوله، کذا فی شرح المشکوة وشرح حصن الحصین

**ښه دعاگانی او ښه وختونه**: د ابی امامهؓ څخه روایت دی چا وویل یا رسول اللّٰه ای الدعَاء اسمع یعنی کومه دعا ښه قبلیږی. قال جوف اللیل الآخر، په اخیر

حصر کی دَشپی، ودبر الصلوات المکتوبات، اوورو سته ترفرضی لونځو. چونکه دا حدیث مطلق دی نومراد دادی که ترفرضی لمانځه وروسته سنت نه وه خو پسله لمانځه به دعا کوی اوکه سنت وه نوچې سُنت وکړی بیا به دُعا کوی. نو دغه دعا گانی که په انفرادی ډول وی اوکه په اجتماعی توگه وی. اوپه اجتماعی توگه اجابت ته اقرب دی. نوهم دا سبب دی چې دجماعت لمونځ په ۲۵ یا ۲۷ درجې په ثواب بالا دی تر یوازی لمانځه.

اوبل سبب هم دادی چې په انفرادی دعا کی دداعی خپل حال معتبر دی په اخلاص او حضور القلب کی اوپه اجتماعی دعاکی که چیری یو سړی حاضر القلب او خاشع او اخلاص دره لوونکی وو اود هغه دعاء خدائ قبوله کړه د ټولو دعا کوونکو دعاء تبعًا ورته قبلیږی ځکه چې په یو ځای وخدائ ته پیش سوی او رب جل شانه اکرم دی ددے څخه چې د بعضو خلکو دعاء دی منظوره کړی اود بعضو دعاء دی رد کړی. اوبل دلیل دادی چې د نور الایضاح عبارت هم پر اجتماعی دعاء دلالت کوی. ولی چې وائی امام دې مخ وخلکو ته راواړوی. ثم یستغفرون لا نفسهم وللمسلمین آه نو که انفرادی دعاء وای نو د امام مخ راړولو ته څه ضرورت وُو. اود یستغفرون په صیغی د جمع څه معنیٰ وه. وهابیان، سلفیان اود دی زمانی په نامه محدثان وائی چې دعا بالاجتماع خصوصًا بعد السنن بدعت دئ.

او **درویش** به ددے مسئلی بنه پراخه پوره تحقیق وروسته وړاندی کړی إن شاء الله که څه هم درویش د دی مسئلی تحقیق په سیف القندهاری کی چو د خیالی پر بیاض سره د نور و مسئلو د وهابیانو وغیرهم کړی دی. لکن چونکه هغه رساله عربی ده. نوزه غواړم چې د دغی یوی مسئلی د دعاء اجتماعی تحقیق په مناسبت دَمقام په پښتو عام الفهم ژبه دلته هم وکړم تا چې د عوامو د زړو څخه شکوک دوهابیانو ووزی. ومن الله التوفیق

**پوښتنه:** چې بنی دعا گانی هغه دی چې یا په قرآن کریم کی په مختلفو آیتو کی راغلی دی او یا په صحیح حدیثو کی راغلی چې د هغو شمیر ښځی ډیر دی. او یا د صحابه کرامو څخه منقول وی او یا د تابعینو څخه منقول وی، وهکذا، په حدیث شریف کی راغلی دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم و حضرت معاذ ته وویله وَ الله انی لاحبك،، قسم په خدائ





دی چې زه تا دوست گڼم، اُوصِیكَ یَا مَعَاذ،، زه وصیت کوم وتا ته ای معاذه، لاتدعنّ دبر کل صلوٰة اَنْ تَقُول،، ته هرگز مه پریږده په وروسته د هر لمانځه ویلو دا ارشاد نه ده اللّٰهُمّ اَعِنّی علیٰ ذکرك و شکرك وحُسن عبادَتِكَ،،

**مسئله:** دَتسبیحاتو او یا دنورو عدد والا اورادو ویل پرگوتو افضل دی او که پر ډېرو او یا دخرما پر منډکو او یا مصطلح تسبیحگانو، په صحیح حدیث کی راغلی دی چې امهات المؤمنین یا پر کشنی ډېرو خپل ورد وایه او آنحضرت صلی الله علیه وسلم ولیدہ او منع یې ورته ونه کړه. او بعض فقهاءؒ وائی چې پرگوتو حساب کول افضل دئ. لکن صحیح دا ده که خوا ننده د غلطیدو څخه په امن کی وُو. نو پرگوتو ورد وَیل افضل دئ. اوکه په حساب کی خطاوتی نو سنگریزی یا معتاد تسبیح گانی افضلی دی،، کذا فی شرح المشکوٰة،،

**مسئله:** قال بعض الفقهاءؒ چې هغه اذکار چې په احادیثو کی راغلی وی. او د هغو دپاره یو عدد مخصوص ښوول سوی وی او ثواب مخصوص بیان سوی وی. نو که یو سړی په قصد سره تر هغه عدد مخصوص بالا ووائی نو د غه سړی تر هغه ثواب چې په هغه کم عدد کښی راغلی وی نه ور کول کیږی. دوی وائی چې شاید په هغه ښوول سوی عدد کی به یو حکمت الهی وی چې تر هغه بالا عدد کی به نه ور کول کیږی. لکن بدر الدین العینیؒ په شرح کښی د بخاری شریف وائی چې دَغه اعداد چې ښوول سوی دی دا داسی حدود نه دی چې تر هغو به مجاوزة ناروا دی، او خاصیت بی خاص پر هغه عدد مرتبیږی بلکه اذکار الهیه چې طاعت دی په هغو کښی حصر او بندیز نسته بَل هیٰ مما ینا فس فیها المتنافسُون ویرغب فیها الراغبُون،،

درویش وائی چې هُو اذکار الهیه چې فقط و فقط دپاره دَتحصیل دَثواب ویله کیږی، په هغو کی تعیین دعدد وارد شرط نه دئ. لکن بعض اوراد یا وظائف چې مشائخو کرامو د پاره دحصول دیو مطلوب جائز په عدد مخصوص وضع کړی وی په هغو کی دی تجاوز تر عدد معین عمدًا نه کوی. اونه دی تر هغه معین کم وائی. ددے په مثال کی دوی داسی وائی چې دقلف د کلی غاښونه که تر حد معین دقلف دپاره بالا وی اوکه تر هغه قدر کم وی قلف نه

نه په خلاصیږی. نوهم دغه رنګ مشائخو چی کوم عدد په یوه ورد کی دیوه خاص مطلوب دپاره ټاکلی وی. تر هغه په کم یا زیاد سره قصدًا هغه مطلوب نه حاصلیږی.

**پوښتنه**: آیا داسی رواده چی سړی لعض آیا تونه قرآنیه او یا بعض اسماء الهیه یا بعض ادعیه ماثوره، یا بعض درود ونه دبعض مقاصدو او مطالبو دپاره و اسطه وګرځوی او که څنګه؟ **جواب**: هُو بلکه تر استعانت په ادویه وو طیبه وو او یا په آلات ظاهره وو سره استعانت په مذکوره شیا نو سره ډیر اعلیٰ او افضل دیٔ. چی دا اِیَّاكَ نَعبد و اِيَّاكَ نَسْتَعِينُ: هم دا غه معنا دَه.

**سَوال**: آیا دغه ذکار په عدد د معین سره په وخت معین کی پر له پسی ویل شرط دی او که تفرق هم روادی: قَالَ البدر العینی: کل ذالِكَ لیسَ بشَرط، لکن افضل یه تتا بع ده په هغه معین وخت کی. **پوښتنه**: چی په نور الایضاح کی داسی عبارت دی، ثُم یَدعُوْنَ لِاَ نفسهِمْ اه، په حدیث شریف کی راغلی دی. وَابْدَءُ بنَفْسِکَ، الحدیث، دا حدیث که څه هم په انفاق ظاهری کی وارد دیٔ. لکن محققان دعلماؤ وائی چی په امورو کی د اُخرت یعنی دبخښنی غوښتنی هم داغسی شان دیٔ حتیٰ چی علماء وائی په عالِم واجب دَه چی شروع د تعلیم دی دتولود مخه په خیال سره کوی. بدلیل قوله تعالیٰ. قُوْٓا اَنْفُسَکُمْ وَ اَهْلِیکُمْ نَارًا، کذا فی شرح الجامع الصغیر للابیاریؒ.

**بل ادَبُ دُعَادا دی** چی په طلب کی د حاجت دې وخدای جَلّ شانهٗ ته ډیر ټینګیږی او مرةً بعد اخرٰی او وقتًا فوقتًا خپله غوښتنه مکرر وی او د طلب څخه د حاجت دی نه ستړی کیدونکی هَلی ځلی کوی. **دَ دُعَاء مکروهات**، د دعاء په وخت کی د آسمان وخواته نه ګوری. ولی چی په دی کی ترك دادب دی او تو هم دَ جهت دخدایٔ کیږی. او بل مکروه تجاوز تر حد دی په دُعا کی. بِقَولهٖ تَعَالیٰ: اِنَّهٗ لَایُفْلِحُ الْمُعْتَدِیْنَ، مفسران وائی چی تجاوز تر حد دا دی چی د داسی شئ سَوال کوی چی هغه محال وی یا شرعًا یا عقلًا. او بعض اهل تفسیر وائی چی اعتداء په دعا کی دا ده چی سړی د داسی شئ طلب وکړی چی دَ دَه د حال سره مناسب نه وی. لکه چی یو څوك چی خواست وکړی چی خدایه و ما ته په اُخرت کی دوه مره





مرتبه راکړی لکه دانبیاء عَلیهم الصلوٰة والسَّلام. او یو عادی سړی وائی چی ماته دټولی دنیا پادشاهی راکړه، او نور، او بعض وائی چی د دعا په وخت کی چغی وهل. او بعض وائی چی د دعا په الفاظو کی تکلیف په سجع کی کول. او بعض وائی چی طلب د داسی شی کول چی د هغه حقیقت معلوم نه وی. لکه یو سړی چی و وائی خدایه ته په ما عنقا راو وینی. یا عذاب القبر راو وینی وغیر ذالک:

**فَائِدَه**: مصنفؒ و وئیله وَ للمُسلمین د دے عبارت څخه دا معلومه سوله چی عمومی دعاء و مسلمانانو ته رواده. ولی چی خدای پاك په قرآن کریم کی حکایت دقول دابراهیم علیه الصلوٰة والسلام په دی الفاظو سره کړی دی، رَبَّنَا اغْفِرْ وَلِوَالِدَیَّ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ یَوْمَ یَقُوْمُ الحِسَابُ، وقال الله مخاطِبًا للنبی صلی الله علیه وَسَلم: وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَ لِلْمُؤْمِنِیْنَ وَالمؤمِنَاتِ، **سَوال**: امام عراقیؒ وئیلی دی چی ټولو مسلمانانو مؤمنانو ته دعا د مغفرت دټولو ګناهو حرامه دَه. ولی چی حکمت دَ وعید دخدایٔ مؤمنا نوته پر بعض کبائرو ګناهو لکه په قرآن مجید کښی چی په څو ځایو کی راغلی ده. دما بین څخه ځی. او په ورته دعا کی د دغوا یتو څخه مخالفت لازمیږی **جواب** دسوال څخه او د عا څخه د مغفرت مذکوره دا نه لازمیږی چی خدای پاك به ټوله بخښی. ولی چی اجابت د دعا پر خدایٔ لازم نه دی صرف او صرف په ورته دعاء کښی د مغفرت اظهار د افتقار او احتیاج دی و رب جل شانه ته. وعلی تقدیر الاجابة لا یلزم ان یغفر لهم جمیع الذنوب، بلکه عین ممکنه ده چی په سَوال مذکور کی د ټولو مؤمنا نو بعض ګناهونه خدای جل شانه وَ ټولو مؤمنانو ته وَر و بخښی، هذا ما ذکره ابن العمادؒ ونقله الامام الطحطاویؒ مع زیادة من در،

**فُروع** د علماؤ په دی کښی اختلاف دی. بعض وائی چی په ذکر کښی اخفاء افضل کار دی لاحادیث کثیرة. چی یو د هغو څخه دا دی سه خیر الذکر الخفی وخیر الرزق مایکفی. او بل وجه دا ده چی خفیه ذکر کښی اخلاص وی او اجابت ته اقرب وی. او بعض علماؤ وائی چی ذکر بالجهر افضل دی. او په دے باره کښی هم ډیر احادیث نبویهؐ موجود دی. چی یو یې ماروا ابن الزبیرؓ چی آنحضرت صلی الله علیه وَسَلم چی به د لمانځه سَلام وا ړاوه په لوړ آواز بی داسی

ویئیلہ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْكَ لَهٗ: او بل دلیل دادی چې علیہ الصلوٰۃ والسلام به امر کاوه هغه سړي چې قرآن بې په مسجد کې وایه، چې داسې وایه چې بل څوك يې هم اوري او عبد الله بن عمرؓ به امر کاوه. يو څوك چې قرآن مبارك په جهر پوهنې ووايه او دوی تولو به غوږ ورته نيولی وو. او بل دليل دادی چې په جهر سره ذکر کښې عمل د ذاکر تر خفيه ډېر دی. او نفع یې متعدی ده. ولې چې زړونه د غافلانو را ويښوي. او اوريدونکي هم تدبر په کښې کولای سي:

## ذکر خفی او جلی

الجمع بين الاحاديث المذكورة هذا: ذکر خفی او جلی په خلګو کې او په احوالو کښې مختلف کیږي بالاولويه، مثلاً که سړي په ذکر جهري کې پر ریاء بيريدی. او یا بل څوك په آزاريدئ نو اخفاء افضله ده، او که دا موانع نه وه نو ذکر جهري افضل دی. لکن پر وجه مشروع يعنی الفاظ د ذکر به صحيح وائی. او رقص به نه کوی. او خپل ځان به خلګو ته بلا جذبه مجذوب نه ښکاره کوی. او په تمامی سکون او خشوع او حضور قلبی به ذکر جلی جهري کوي.

**مسئله:** په فتاوای بزازیه کې وائی چې څوك دې سړي نه منع کوی د ذکر جهري څخه په مساجد وکې. يعنی چې شرطونه د ذکر جهري موجود وي. تاچې تر آيت مباركه لاندې داخل نه سي. وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ، او امام شعرانیؒ پخپل کتاب کې چې نوم یې «ذکر الذاکر المذکور» و الشاکر المشکور» دئ. داسې تصريح کړېده: اجمع العُلماء سلفًا وخلفًا: پر دې خبره چې مستحب دی ذکر د خدائ په مساجدو کې او په نورو ځايو کښې په جګه سره. مګر هغه وخت بيا مکروه دی که د دغو خلګو ذکر بالجهر يا بيده سړي د خوبه وزي او يا په لمونځ کوونکی ته تشويش پر لمانځه کښې ور پېښوي او يا تالی د قرآن د وظيفی څخه ايستل کيدی، وقال الشعرانیؒ کما هو المقرر فی کتب الفقه،

**مسئله:** د ر منيفی د فتاوای قنيه څخه نقل کړی دی چې مکروه ده چې په ډلرايزی توګه





قرآن شريف په زوره وائی. ولې چې دا د دې ايت څخه مخالفت دی: وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا وَاَنْصِتُوْا: او بعض فقهاءؒ وائی چې پروا نه لري. **مسئله:** په حمام کې د قرآن پاك ويل که څوك عورت لڅی نه وو. او غولی د حمام پاك وو جهرًا او خفيةً روادی. او که دا دوه شرطه نه وه موجود نو جهرًا مکروه دی او خفيةً روا دئ.

**مسئله:** په باب کراهت کې د در مختار وائی چې خوش آوازی په وخت کې د تلاوت د قرآن کریم یا د اذان کولو ښه کار دی لکن په شرط د دې چې حروف به نه زیاتوی، ور نه ده ته هم اوريدونکی ته هم مکروه دی ده ته زیا تول د حروفو او اوریدونکی ته غوږ نیول. **مسئله:** که یو قاری یا یو مؤذن په زیاتولو د حروفو تلاوت کاوه يا به اذان کاوه. او دی چې ساکت سو بل يوه ورته وويل احسنت، نو که د دې بل سړي مراد دا وو چې ښه دی وکړه چې پته خوله سوې. نو دا خو ښه خبره ده. او کې مراد دا وو چې اَحْسَنْتَ قِرَائَتَ القرآن، يا اَحْسَنْتَ الْاَذَان، بيره د کفر پر ستہ. ولې چې غير مشروع کار تې احسنت وويل» وفيه ايضًا، التغنى بالقرآن يعنی په ښه آواز او شوق ويل د قرآن ښه کار دی لکن چې الفاظ د قرآن مبارك او حروف د هغو د ده په تغنی سره تر حدود و عربي نه وونځي. والا فمکروه بل حرام،

## خبره تر خبری

**پوه سه:** چې سروز يعنی غزل ويل که چيری په هغې کې د معيني ښځې چې ژوندی وه او يا تعريف کول د شرابو چې د خلګو رغبت ور ته پيدا سي، يا هجوم او ذم د يوه معين سړي که څه هم اهل ذمه وي حرام دی. او بعض علماء وائی که سرود په واده کې روادی لکه د ریبه وهل په واده کې او بعض صوفيان وائی چې تغنی او سرود مطلقًا مباح دئ. او بعض فقهاءؒ وائی چې مکروه دی مطلقًا، کل ذالك ذكره البدر العينی» لکن په بحر الرائق کې وائی چې د حنيفيانو مذهب دادی چې تغنی مطلقا حرام ده، بلکه د هدائی د ظاهر عبارت څخه داسې فهميږي چې تغنی ګناه کبيره ده که څه يوازی د ځان د پاره وی. وهو قول شيخ الاسلامؒ وكذا السامعه الحاضر كذا فی سكب الانهر،

- اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولوالديهما آمين.

**خُرُّمَلا** دغه کسان چې دزوی یا دورور په واده کې مثلاً د نورو میلمنو دپاره په اصطلاح شوقیان راولي او گویاوي ورته پسته کړي چې ټوله کورونه یې واوري، او دبنځو دپاره بنځې غزلیانې په اصطلاح مَسلیانې راولي تر سحاره دواړه دلي په غزلو سره دسروز تېروي دا فعل حرام او گناه کبیره ده: قال الامام الطحطاوی ناقلا عن سکب الانهر" او هرچه رقص کول دي په وخت د ذکر او یا چک چکي کول دي د ذکر سره. او یا رباب وهل دي یا سارنگي یا باجه وهل دي په وخت کې د ذکر کما یفعله لبعض من یدعی التصوف فهو حرام باجماع الفقهاءُ ولې چې دا عادت د کفارو دئ.

**مسئله**: جذب او وجد چې سړي په کښې مسلوب الاختیاره وي. او حرکات یې لکه حرکات د مرتعش وي پر هغه هیڅ ملامتیا نشته او نې انکار روا دی. او هغه جذب او وجد چې سړي ئې قصداً په حال کې دهوش کوي صرف ددې دپاره چې خلگو ته وښیې چې زه د ذکر په سبب جذب سوم هغه ناروا او گناه ده. کذا فی مجمع الانهر والتاتارخانیه.

**بي ځایه فائده** مصافحه یعنې روغبړ سنت دی. په ټولو اوقاتو کې. لما اخرج ابوداوُد عن ابی ذرؓ: زه هیڅ کله نه یم یوځای سوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم مگر زما سره ئې روغبړ کاوه آ. او هم د ابی ذرؓ څخه روایت دی چې یو وخت زما سره علیه الصلوٰة والسلام د غیږ ی روغبړ وکی. لیعنی لاس یې په غاړه کښې راواچاوه.

**د روغبړ مسنونه طریقه** داده چې وَرغوی پر وَرغوی سره برابر کړي او مخامخ سره ولاړ وي. او صرف گوتو سره نیول روغبړ د خوارجو دی. او روغبړ به په دواړو لاسو وي. په یوه لاس روغبړ مکروه دی. او د نورو دپاره پر لاسو یو ټکر اچول او بیا روغبړ کول مکروه دی.

او په هدایه کې وائي چې مکروه دی مچول د یوه نر بل نر لره پر خوله او یا پر لاسو، یا پر بل ځای. او چې یو لنگ ئې وهلی وي خیته یې لخه وي د غیږ ی روغبړ مکروه دی. و قال ابویوسفؒ لا بأس بذالک کله: لکن په غایة البیان کې وائي: مچول د لاس د عالم او یا عادل بادشاه روا دئ.





**یوه سَله**: چې بدرالدین العینی ډېر حدیثونه ذکر کړي چې پردې دلالت کوي چې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم لاسونه، او پښو بعض خلگو یعنې بعض صحابهؓ مچ کړي دي او په حدیث شریف کې راغلی دي چې علي علیه الصلوٰة والسلام حسنؓ او فاطمهؓ مچ کړي دي. او علیه السلام عثمان بن مظعونؓ پس له مړینې مچ کړی دی. او دا هم په صحیح حدیث کې دا هم راغلی ده چې علیه السلام د خپل آکا زوی جعفرؓ پر تندی مچ کی. او په متدمرکی د بخاري دا هم راغلی ده چې امام مُسلمؒ د امام بخاریؒ ملاقات ته یوه ورځ ور راغلی. او د امام بخاریؒ لاسونه یې ور مچ کړه. او دا یې ورته وویل دعنې اقبلُ رجلیكَ ماېرین ده چې پښې دې هم در مچ کړم.

قَالَ البَدرُ العینیُّ پس له ډېرې تفصیله د مصافحې په باب کې چې ددې ټوله تفصیل چې مونږ ذکر کړي دا معلومه سوه چې مچول د لاسو، او پښو، او د سر، او د تندی، او بین العینین چې پر وجه د اکرام او احسان وي روا دی، او که پر وَجه د شهوت وَه ټوله نا روا دی مگر نه په مابین کې د میړه او ماینې، او یا د بادار او د منځې تر مابین یعنې په شهوت سره مچول روا دی، ونقل الامام الطحطاویؒ عن رفع العوائق نقلا عن بحر الرائق: چې پروانسته، په مچولو کې د لاس د عالم او د سلطان عادل، او په غیر کې ددې دوو نفرو کې غرض په مچولو کې د لاس دنیائي غرض وُونو مکروه دی. او کې ارادت تعظیم او اکرام د مسلمان ورور وو او عزت ور کول وهغه ته وي فلا بأس بہ یعنې پروا نلري.

**فائده**: د قرآن پاك مچول روا دی بلکه مستحب دی. ولې چې امیرالمؤمنین حضرت عمرؓ به هر سحار قرآن مبارك مچاوه. او امیرالمؤمنین حضرت عثمانؓ به هم قرآن شریف مچاوه او هم بې مخ په مسحه کاوه.

**مسئله**: مچول د ډوډی مذهبیان د حضرت الامام الشافعیؒ بدعت مباحه بولي. وقالوا چې مکروه دی پر ډوډی ختل نه مچول ئې قال البحر وقواعدنا لا بأس" وفی رسالة المصافحة للشرنبلالیؒ چې په ځای د سلام تحیته په رکوع سره او یا په کښته کولو سره د سر یا په پورته کولو سره د لاس مکروه دئ. وهر چا ته چې وي.

كما نصت عليه الحنيفية" لکن شرنبلالی زیاته کړیده چې اشاره هلته مکروه ده چې فقط دغه اشاره وکړي. یعنی که یوسړی لیرې وو ستا دخولې سلام نه ور رسیدی نوتا په خوله سلام هم ووایه لکن اشاره د لاس دده دپاره وکړه چې هغه په دی پوه سی چې ما ته یه سلام واچاوه نوبیا کراهت نسته، او شرنبلالئ یو حدیث ذکرکړی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم جمع والی کړي د سلام ویلو او د اشاره کولو ترمابین،،

**مسئله**: په مشکل الاثار کی وائی چې دیوه چا د تعظیم دپاره و هغه ته ولاړیدل مکروه لعینه نه دی. مکروه هغه وخت دی چې د هغه سړي داخوښه وی چې ماته د ښه ولاړسی- او که د هغه تقاضا نه وه لکن بیا هم خلک ورته ولاړ سوله نو کراهت نسته. او بعض فقهاء وائي چې صرف و عالم ته ولاړیده رواده. او بل چاته ولاړیده سنه ده روا. په مشکوٰة کی دابو هریره رض څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به زمونږ سره په مسجد کی خبری کولی نو څه وخت چې دی مبارک به ولاړ سو نومونږ به کښی نستلو وعن واثلة رض بن الاصقع رض روایت دی چې یو وخت یو سړي پر علیه الصلوٰة و السلام داخل سو. رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وخوزیدی هغه سړي ورته وو ئیله چې ځای ډیردی آنحضرت صلی الله علیه وسلم ورته وو ئیله: إن للمسلم حقاه

ب، ط، ر،،

**درویش وائي** چې دے په مسئلو کښی وهابیه، سلفیه، وغیرهم مخالف دی بلکه اکثر ددغو کارو دغه ډلې شرك مطلق بولي. لکن مقلدین بر د خپل مذهب د کتابو مراعات کوی نه ددغو ډلو چې ابتداع فی الدین کوی.

**بسم الله الرحمن الرحيم**

محترمو لوستونکو! دا کتاب ان شاء الله العزیز تاسو ته ددی مکتبې مکتبة القراءة والتجوید له خوا مکمل تاسو ته وړاندی سی. (هر فضل الحق حقانی غفرله)





بسم الله الرحمن الرحيم نحمده ونصلي على رسوله الكريم وعلى آله وصحبه أجمعين، امابعد خوانندهگان محترم درویش، ستاسی سره وعده کړې وه. چې د دعاء مبحث به په تفصیل سره څیړم. ولې چې وهابیان، او پنج پیران، او سلفیان، او نام نهاد اهل حدیث، دا مسئله یې تر ډیرلوی تنقید لاندی نیولې ده، او پر بعض افرادده دعاء په د بدعت حکم کړی دی. چې هغه دعاگانی د بخوا څخه په افغانستان او پاکستان کی مروج وې او دي. بیځایه خلک وخپلو بدعتی مذهبو ته رابولي. او غلط غلط دلائل وعوام ته وائي. نو هم دا اوس هغه وعده پوره کوم، ان شاء الله تعالىٰ.

**واورئ او پوه سئ**: چې د دعاء لفظ چې عربي دی. معنا یې طلب دادلیٰ دی د اعلیٰ څخه دیوشي یا دیو کار. لکن د عجز او خشوع او خضوع او نیاز پر طریقه. او په فارسی ژبه یې ترجمه حاجت خواستن دی. نو پوه سه چې دعاء مخ العبادة ده. یعنی مغز د عبادت ده كما ورد في الحديث: الدعاء مخ العبادة: وقال الله تعالىٰ: أُدْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ» ددی ایت مبارکه څخه دا معلوم سو چې دعاء عبادت دی. او دا ایت د هر قیده څخه مطلق دی. او اصولی قاعده ده چې مطلق یجری علیٰ اطلاقه. یعنی که دعا تر لمانځه وروسته وي. او یا تر سنتو وروسته وي او یا په بل وخت کی وی. او که په اجتماعی توگه وی او که په انفرادی ډول وی: وقال الله تعالىٰ: قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ: وقال الله تعالىٰ. وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ او دا ایت مبارکه هم مطلق دی. او پر اطلاق مذکور یې اجراء لازمه ده. نو ددی ایتو څخه نفس مشروعیت د مطلق دعاء بلکه استحباب د دعاء معلوم سو.

**فائدة شرعية**: دعاء پخپله عبادت څخه او د عمل صالح څخه ده ضرور یا نو او بدهیا تو څخه د دین ده ځکه فقهاء وائي چې دعاء پخپله عمل صالح څخه قاعدة شرعيه. والشاهد على ذالك: چې څه وخت چې ابراهیم او اسمٰعیل

عليها الصلوة والسلام دبناء څخه دكعبې شريفې فارغ سوه نو يې دغو الفاظو په دعاء وكړه: رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ: كما هو المذكور في القرآن الكريم
او په ډيرو روايتو كې داحاديثو مباركو وداسې راغلې دي چي يو سړي چي يوه روژه فرضي يا نفلي پوره كړي. نو داسې دعاء دي وكړي. اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ لَكَ صُمْتُ وَبِكَ اٰمَنْتُ وَعَلٰى رِزْقِكَ اَفْطَرْتُ فَاغْفِرْلِيْ: او دغه رنګه پسله فراغه دحج او دار كانو دحج بعد كل ركن ادعيه ما ثوره من النبي صلى الله عليه وسلم واصحابه رضي الله تعالى عنهم مثلاً اللهم اجعله حجا مبرورًا وسعيًا مشكورًا وذنبًا مغفورًا - كه څوك تفصيل دغو دعاګانو غواړي نوكتابونه د مناسكو دحج دي وګوري. د محدثينو په كتابونو او دفقهاؤ د غلو و مذهبو په كتابو كې نو چونكه لمونځ يو اهم او بر جسته عبادات و څخه دى نو وروسته تر لمانځه هم دعاء مستحب ده.
لما علم مما قبل ان الدُّعاء بعد العبادات قاعدة متقررة في الشرع الانور" قَالَ اللهُ تعالى شانه فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ: محقق الوسي بغدادي په خپل تفسير رُوحُ المَعَانِي ص۱۷۲ ج۳۰ كى ددې ايت په تفسير كى داسې وائي، چي ته فارغ سې د لمانځه څخه نو كوشش وكړه په دعاء كې. او دا تفسير د قتادة او ضحاك وغيرهما څخه امام بخاري دعاء بعد الصلوٰة تر عنوان لاندې نقل كړي دئ ص۹۳۷ ج۲.
نو د ايت مباركه څخه او قول څخه د امام بخاري چي سند يې ور رسول الله صلى الله عليه وسلم ته رسيږي دا معلوم سول چي پسله لمانځه څخه دعاء ستر. او دا هم ظاهره خبره ده چي دعاء په مابين كى د فرضو او سنتو خونسته. ولې چي فصل په مابين د فرضي لمانځه او سنتو بالاتر: اللهم انت السلام آه مكروه دي. كما قال العلامة الشامي في ص۳۴۷ ج۱ او دغه رنګه مكروه دي فصل په ويلو داورادو حتى كې په مابين كى د فرضو او سنتو تر اللّٰهُمَّ اَنْتَ السلام آه بالا دعاء وكړه. او يا يې اوراد وويله سنت يې خپل مسنون ځاى كى نه سوه.
وفي المراقي ص۱۷۱ چي هر لمونځ چي وروسته سنت لري مكروه ده ناستَه پسله فرضو او دعا كول بلكه پسله اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السلام دي دستي شروع په سنتو كوي. كيلا يُفْصِل بَيْن المكتوبة والسنة" نو نتيجه دا سوه چي په مابين كې چي دعاء نسته نو دعاء به پسله سنتو كوي. په دليل د ايت مذكوره او حديث د بخاري،،

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه آمين





**پوښتنه**: آيا اللهم اَنْتَ السَّلَامُ آه دا ايت قراني او حديث نبوي څخه مراد نه دئ چي په اتفاق تر فرضو وروسته او تر سنتو د مخه ويل كيږي. **جواب** قران مبارك په قرار د تفسير د آلوسي بغدادي او نورو مفسرانو امر په دعا سره كړي دی. او د بخاري د باب عنوان هم داسې دی"، باب الدعاء بعد الصلوٰة، نو اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَام آه خو دعا نه ده بلكه ذكر دى" كما قال العلامة الطحطاوي في شرح المراقي په داسې عبارت: قوله والدُّعَاءُ: چي د دعاء كراهت په مابين كى د فرضي لمانځه او سنتو منافي نه دى د اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَام آه ويلو سره په دغه مابين كى لانه ليس بدعاء بل ثناء انتهى: فثبت الدعاء بعد السُّنن "
**سوال**: وهابيان وغيرهم خو دعاء پسله سنتو په هيئت اجتماعي سره بدعت بولي او په مذكوره دليل سره خو دعاء په هيئت اجتماعي نه سوه ثابته. **جواب**: دعاء خو عبادت دى كما مر من قبل. والعبادة بالهيئة الاجتماعية افضل تر عبادت انفرادي لكه چي په حديث مبارك كښې راغلي چي لمونځ په جماعت سره افضل دى تر انفرادي لمانځه په ۲۵ درجې يا ۲۷ درجې
**سوال** نفل خو هم عبادت دي او سره د دې چي بيله تراويح په جماعت مكروه دي **جواب** نفل په جماعت هلته مكروه دي چي خلګ په بلنه راغواړي نو اصل مكروه تداعي او بلنه ده نه جماعت په نفلو كې. فرضًا كه يو څو كسه په يوه كور كې اتفاقًا سره جمع سي او لمونځ نفلي په جماعت سره وكړي هيڅ كراهت نسته. او امام مسلمؒ په خپل كتاب كى په دې عنوان سره باب راوړى دى باب الاجتماع على تلاوة القرآن وعلى الذكر ص۳۴۵ ج۲ نو دې كى شك نسته چي دعاء حتمًا مشتمله پر ذكر دخداى جل شانه ده. وايضًا قاضي بيضاوي په تفسير كى د دې ايت، اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ چي په صيغه د جمع متكلم مع الغير راغلى ده داسې وائي: چي مصلي درج كړي عبادت خپل په عباداتو كى د نورو خلګو د دې سببه چي شايد د ده لمونځ په بركت د اجتماع قبول سي. او مخه تيره سوه چي دعاء مخ العبادة. نو بايد د دعا عبادت دي هم په اجتماع افضل او اقرب واجابت ته وي تر يوازې دعاء.
**پوښتنه** څه سر دى چي دعاء يا بل عبادت لكه لمونځ او ذكر په هيئت اجتماعي سره افضل او اقرب واجابت ته دى تر انفرادي **جواب** په دنيا كى دا عادت دى چي يو غني سړي

ته چې یو سړي د فقر د پاره ورد ربږی. نو ګاهی هغه منع ور ته وکړي او ګاهی شئ ورکړي او که ډیر مسکینان په یوه پلا وغنی سړي ته ورد ربږی نو داغنی سړي به یا ټولو ته منع کوی او یا ټولو ته به شی ور کوی. او داسی نه کوی چې بعض مسکینا نو ته منع وکړي او بعضو ته شئ ور کړي. نو د کریم باد ار د رباره تر دی ډیر لوړ دی چې سائلان دی په هیئت اجتماعی حاجت وغواړي او ځا غوښتنه دی قبوله کړي. او د نورو داد سے رد کړي.

بلکه په د غه اجتماع کښی که دیوه سړي خواست قبول سو د نورو ټولو خواست تبعًا ورسره قبلیږی. ان شاء الله وهذا هو السر فی تفضیل صلوٰة الجماعة علی صلوٰة الفذ ای المنفرد» وایضا د نور الایضاح په ص۸۰ کښی راغلی دی: ویستحب للامام ان یستقبل بعده، ای بعد التطوع یعنی السنن» الناس ویستغفرون الله آه او مستحب ده امام لره چې مخ دی راواړوی وخلګو ته پسله سُنتو. او امام او قوم دی ټول طلب د بخښنی وکړي. الی ان قال ثم یدعون لانفسهم وللمسلمین رافعی ایدیهم. آه. او بیادی امام او قوم دعاء وکړي د ځان د پاره او د ټولو مسلمانانو د پاره او ټول به لاسونه پورته کړي وی. نو دعاء په هیئت اجتماعی نه ده! چې معموله ده په افغانستان او پاکستان کی. اللهم الا فی مساجد تحت سلطة الوهابیة وغیرهم من الفرق المبتدعة:

فوائد

## د دعاء ادب

۱ قال علیه الصلوٰة والسلام: اذا دعوت الله فادعوا بباطن کفیك ولا تدع بظهورها فاذا فرغت فامسح بهما وجهك م۱۴۳: چې ته خواست کوې د خدائی څخه نو د رخواست کوه په باطن د لاسو. او د عامه کوه په شاد لاسو چې د دُعا څخه فارغ سوې نو لاسونه پر مخ تیر کړه. ۲ تر دعاء مخه باید حمد وثناء د رب جل وعلا ووائی. او بیادی درود پر علیه الصلوٰة والسلام ووائی. ۳ تر دعاء دی د مخه یو کار او عمل صالح دی وکړي کما فی الحصن الحصین، لیکون سببًا لقبوله، قال فضالة بن عبید رضی الله عنه اوریدل آنحضرت صلی الله علیه وسلم د یوه سړي څخه چې دعا یه کوله په لمانځه کی یعنی تر لمانځه وروسته. او د ے سړي نه حمد د مخه تر دعاء ووایه او نه ئی درود پر علیه الصلوٰة والسلام ووایه. قال علیه الصلوٰة والسلام للحاضرین عجل هذا. دی دعا کوونکی تلوار وکړي. او بیا یه هغه سړي راوغوښتی. فقال له اذا صلی احدکم فلیبدأ بتحمید ربه ثم یصلی علی النبی صلی الله علیه وسلم ثم یدعو بما شاء: یعنی چې لمونځ وکړي یو ستاسی څخه پسله شروع دی وکړي په حمد وثناء د رب خپل





او بیادی درود پر علیه السلام ووائی. او بیادی درخواست وکړي په هغه شی چې د ده خوښه وي. ۴ دعا باید مکرره سړي وکړي. ولی چې امام بخاری رح د باب په عنوان کی داسی وائی: باب تکرار الدعاء ص۹۴۵ ج۲ او په حصن حصین کی وائی چې اقل درجه د تکرار دری واره دی. ۵ فی کنز العباد دعا کوونکی دی پر خدای پاك د پر الحاح کوی یعنی ډیر دی ور ته ټینګیږی لِقوله علیه السلام اِنَّ الله یحب المُلحین، او ادنی د الحاح ۳ واره ده او میانه ۵ واره ده او اکمل یې ۷ واره ده. م۶۴۷ ۶ دعاء پر قبرو یعنی په هدیره (قبرستان) کښی افضل کار دی. وذکر الامام مسلم ص۳۱۳ ج۱ چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به بقیع الفرقد چې او س په جنت باقیه بولی دری واره لاسونه پورته کړه او مړو ته د بقیع یې دعا وکړه. قال الامام النووی یفهم منه د دی حدیث څخه معلومیږی چې لاسونه پورته کول مستحب دی او مکرر لاسونه پورته کول هم مُستحب دی دی» قال الامام حجة الاسلام الغزالی په خپل کتاب احیاء العلوم ص۲۱۱ ج۱ کی لیکی چې مجاهد وائی چې لمونځونه په بنو ساعتو کی ایښو ول دی» فعلیکم بالدعاء خلف الصلوٰة. وذکر الغزالی چې حبیب عجمی چې ولی مشهور دی. د اسی دعاء بی کوله اَللّٰهم جعلنا جیدین وَلا تفضحنا یوم القیامة اَللّٰهُمّ وفقنا للخیر والناس یدعون فی کل ناحیة ورائه» وهذا دعاء بالاجتماع»

قال ابو سفیان دارانی څوك چې اراده لری چې د خدائی څخه یو حاجت وغواړي نو اول دی درود ووائي او بیادی خپل حالت او د حاجت غوښتنه وکړي. او په اخیر کی دی بیا درود ووائی. ولی چې پاك خدائی خود اوه درود ه قبلوی او خدای جل سلطانه کریم دی ما بین د دی دوو درودو به هم رد نه کړي. چې دسړي حاجت دئ. ص۲۱۲ ج۲ وقال اعرف الناس بمذهب الحنیفیة صاحب البحر الرائق چې سنت بعدی زمونږ په نیز مقدم دی تر دعاء الذی هو عقب الفراغ ص۳۰۴ ج۱ وفی شرح شرعة الاسلام چې دعاء پسله فرضو او سُنتو څخه او اوراد و څخه: هو المعمول المشهور فی زماننا» د اعبارات صریح دی په دعاء اجتماعی بعد السنن سره. وفی ص۱۱۵ دعاء کوی امام وقوم ته پسله لمانځه او پسله اذکار الماثورة وعلی ما هو المتعارف بین الائمة رحمهم الله تعالی. الی ان قال چې په قنیة الفتاوی کی وائی چې امام دی مخ راواړوی. وقومته فی صلوٰة لیس بعدها سنة». او د امخ راړول سنت دی که پر برابر د امام مسبوق نه وو. او که مسبوق سړي وو نو مخ دی نه

اروی، درویش وائی ددغه اره ولو څخه دامام بعد الصلوة که سنت بعدی نوه او یا پس له سنتو څخه نو غرض څه دی بیله اجتماعی دعاء. نو ولی وهابیان دعاء بعد السنن بدعت بولی.
وذکر الفقیه ابو اللیث السمرقندیؒ نقلا عن ابی حنیفةؒ چی امام چی دعاء کوی پس له لمانځه مخ دی د خلکو د جماعت ته اواړوی. نو که دعاء اجتماعی بدعت وای نو امام ولی مخ و جماعت ته اړوی انفرادی دعاء خو امام بیله مخ راړولو هم کولای سوای. فعلم ان تحویل الوجه الی القوم للدعاء بالاجتماع، وهذا هو الدعاء المتعارف الذی ینکره الوهابیة وغیرهم.
وفی الهدایة ص۱۲۴ ج۱ والجمع ارجیٰ فی الاجابة، یعنی په اجتماع دعاء کول اجابت ته نژدیده. وقال العلامه محمد انورشاه الکشمیریؒ فی فیض الباری شرح البخاری چی دعاء په هیئت اجتماعی بدعت نده، په دی معنیٰ چی اصل په دین کی نه لري. یعنی لکه وهابیان چی وائی الیٰ ان قال فمن کان محتاجا فلیدع بالاجتماع ومن لا فلا: یعنی که څوک محتاجه وی چی زما دعاء دی قبوله سی نو هغه دی په اجتماع دعاء کوی. او که څوک محتاجه نوی نه دی کوی. وفی المشکوٰة ص۲۱۲ کان علیه الصلوٰة والسلام یقول فی دبر صلوٰة الفجر دعاء: یعنی علیه الصلوٰة والسلام به وئیله چی په روسته کی سحار د لمانځه دعاء سته. درویش وائی د احادیث مطلق دی که په اجتماع کوی او کی انفرادی کوی بل الظاهر هو الاجتماع:
وایضا روی عن امام المسلمین ابی حنیفة رحمه الله تعالیٰ. چی ده وویل که امام دعا کول پس له فراغت د لمانځه نو مخ دی جماعت ته اواړوی. فتاوی ابو اللیث السمرقندی الفقیه ص۱۳ درویش وائی چی اوس خبره د دعاء بعد السنن په باره کی افراط او تفریط ته رسیدلی ده، او حق په مابین کښی پاته دی، بعض امامان دعاء بعد السنن بیخی کلک سُنت بولی. او پر تارک یې په سخت انکار کوی. او دا افراط دی او حق داغسی نه دی. او وهابیان یې بدعت بولی او پر کوونکی باندې حکم د مبتدع کوی او دا تفریط دی او حق داغسی نه دی. بل الحق دا دی چی دعاء بالاجتماع اقرب و اجابت ته ده. لکن کی څوک کاهی نه وکړی خلاف السنة کار نه دئ. او کی څوک کوی په امید د اجابت بنه کار دئ. او انکار کول پر هغه او مبتدع بلل د هغه غلط خبره ده. **پوښته** چی د وهابیانو لوی دلیل پر دی خبره چی دعاء په بعد السنن وخت کی بدعت دی، دا دی چی د حضرت



النبی صلی الله علیه وسلم څخه دعاء په هیئت اجتماعی د قوم سره پس له سُنتو هیڅ نده ثابته نو ځکه بدعت ده» **فالجوابُ عَنه**: چی عادت نبویؐ غالبًا دا وو چی سُنت به یې په حجره مبارکه کی د کور کول کما ورد فی حدیث» افضل صلوٰة المرء فی بیته الا المکتوبة» یعنی بنه لمانځه د سړي هغه دی چی په کور کی وی. مګر فرضی لمونځ» درویش وائی چی عجب خبره دا ده چی وهابیان د دعاء بعد السنن بالاجتماع بدعت قبیحه بولی. او س ددی چی په در مختار اورد مختار ص۳۳۲ او په شرح کښی د نخبة الفکرؒ تعریف د بدعت داسی کوی: هی اعتقاد خلاف المعروف عن النبی صلی الله علیه وسلم، لا بمعاندة بل بنوع شبهة فاطلاق بدعت علی الدعاء بای کیفیة ممنوع: یعنی بدعت اعتقاد کول پر هغه شی چی خلاف وی د هغه شی چی معلوم وی د نبی علیه السلام څخه لکن نه د ضد پر طریقه بلکه په سبب د یوې شبهی او شك نسته چی دعاء که انفرادی او که اجتماعی وی د علیه الصلوٰة والسلام څخه ثابته ده. که څه هم په بعض احوالو کی لکه استسقاء وغیره ولی چی ثبوت د جزئیه جزئیه د علیه السلام څخه شرط نه دی. مثلاً څوك نسی ویلای چی د سمیټو او ګچو څخه جوړ سوی محراب کښی لمونځ کول بدعت قبیحه دی. ولی چی په ورته محراب کښی اصلاً نبی علیه السلام لمونځ نه دی کړی.
او یا څوك نسی ویلای چی پر هغه منبر چی په ګچو او سمیټو جوړ سوی وی د جمعې خطبه ویل بدعت قبیحه دی. ولی چی علیه الصلوٰة والسلام منبر د لرګو او تختو څخه جوړ سوی وو پر هغه باندی یې خطبه ویل. او یا مثلاً د سترنجی پر مصلیٰ او یا غالی پر مصلیٰ لمونځ کول بدعت قبیحه دی. ولی چی علیه الصلوٰة والسلام پر دغو مصلاوو لمونځ نه دی کړی. وامثاله کثیرة. بلکه د بدعت څخه د وتلو د پاره ثبوت د اصل کافی دی،» ولو فی بعض الاحوال والاوقات،» وهو موجود فی الدعاء بالهیئة الانفرادیة والاجتماعیة، بلکه وهابیان باید فکر وکړی که ثبوت د جزئیاتو په دینی امورو کی شرط وائی. نو د غه سائل او کتابونه چی وهابیان یا نور امامان یې نوشته کوی دا ټول بدعت قبیحه وائی. فما هو جوابکم بان اصل هذا ثابت لکتابة آیات القرآن علی الاکتاف وغیرها.
فهو جوابنا بان اصل الدعاء ثابت: بلکه بدعت هغه کار او فعل ته وائی چی هیڅ دلیل پر هغه نه وی نه قولی. او نه فعلی او نه تقریری نه د قرآن څخه با نواعه من الخاص والعام والظاهر والخفی

وغیرها. اوند دحدیث څخه دَعلیه السلام باقسامه مِن المتواتر والمشهور والخبرالواحد والمتصل والمرفوع وغیرها. اوند بَل دلیل پروي لکه اجتماع او اجتهاد د مجتهد وغیره.

ومن الظاهرالمبین علیٰ غیرالغبی ان الدعاء بکل هیئة کانت من الانفراد والاجتماع لیست کذالک فافهم ایها الذکی والطالب للصواب المعرض عن طریق البدعة والعناد، وعزوجوده فی هذا الزمان.

وقال بعض الوهابیة: چې دځابنت لمونځ په اجتماع سره مکروه دی سره د دې چې اصل لري یعنې مطلق دځا بنت لمونځ **وَالجَواب** عنه: دادی چې صلاة الضحیٰ خو نفل دی او نفل په تداعی سره بیله تراویح مکروه دی»، کما صرح به الفقهاءُ. خو نو خرنګه وهابی دعاء بالاجتماع پر قیاسوي او سره د دې چې په هدایه کښې وائي: چې اجتماع پر دعاء اقرب واجابت ته ده. او په عین العلم کې چې یو مَنل سوي کتاب دی قدیما وحدیثا په ص۶۸ کی وائي ومنها الدعاء والدعاء مُخ العبادة. نو باید د دعاء د پاره د ښو وختو انتظار وکړ سي. الیٰ ان قَالَ چې دعاء په داسي جماعت کې چې سل تنه سړي ښه وخت دی. والوقوف با العرفات والملتزم، وزیارة قبر النبی علیه الصلوٰة والسلام.

وهابیان وائي چې دعاء په هیئت اجتماعي نیاتوب دی پر هغه منصوصه دعاء چې انفرادي ده نو د دعاء د هیئت اجتماعي شان داسي دی لکه اذان، کول د پاره د لمانځه د عیدینو وهو بدعة مکروهة **والجواب**: چې ستاسي دا قیاس فاسد دی. ولې چې اذان د خصوصیاتو څخه د فرائضو خمسو څخه دی په اجماع د امت مرحومه او اجماع د دلائل اربعو څخه ده. بخلاف الدعاء فانه لا یختص یعنې دعاء خاص نه ده نه په فرائضو سره او نه په نوافلو سره. او نه په انفراد او نه په اجتماع پوري. بلکه دلائل ماضیه دال دي پر دعاء په هیئت اجتماعي بلکه پر استحباب د دعاء مذکوره. ولې چې اجتماع پر دعاء اقرب واجابت ته ده، لتظاهر النفوس»

**وهابیان وائي** چې دعاء په هیئت اجتماعي داسي ده، لکه زیاتوب پر ۳ واره په غسل کښې د اعضاؤ د اودا سره وهو مکروه **والجواب**: چې په منع کښې د زیاتوب د پریولو د اندامو د اودا سره صریح نص موجود دی. قال علیه الصلوٰة والسلام بعد بیان تثلیث الغسل فمن زاد او نقص فقد تعدیٰ وظلم» ولم یوجد نص فی المنع عن الدعاء بهیئة الاجتماع بعد السنن او الفرائض **وهابیان وائي** چې دعاء بعد السنن په هیئت اجتماعي سره حدیث





فعلي د علیه الصلوٰة والسلام نه دی موجود نو دا دعاء اختراع فی الدین ده او بدعت قبیحه ده

**جواب**: دَلائل د احکامو د بنیه وو خو یوازې احادیث فعلیه نه دي. ورنه ډیر احکام به معطل پاتې سي»، او حدیث قولي خو موجود دی: قَالَ علیه الصلوٰة والسلام: الدعاء مخ العبادة»، او په دې حدیث کی هیڅ قید نسته نو دعاء د هیئت اجتماعي هم تر دې حدیث لاندې راځي. او علامه شامي په رد محتار کی وائي چې اختراع فی الدین هغه فعل دی چې په شرع کی هیڅ دلیل نه لري نه قولي او نه فعلي،،

**سؤال**: وهابیان خو نه هدایه مني او نه رد محتار او بحرالرائق مني او نه عین العلم وغیره ته هیڅ اعتبار نه ورکوي» بلکه د دغو کتابو په باره کی دوی ډیر بد الفاظ مستعملوي نو ته څرنګه د دوی په مقابل کی په دَغو کتابو سره استدلال کوې. بلکه دوی تصریح کوي بلکه پر دیوالو باندې هم نوشته کړي دي چې دلیل زمونږ په نیز. قَالَ اللهُ وَقَالَ الرسول دی. و بس

**جواب**: دد رویش دا مقصد نه دی چې وهابیان وغیره هم زه دد غو کتابو په حواله ودوی ته قناعت ورکوم بلکه زما مقصد دا دی چې خپل ورونړو حنیفیانو ته پر دې آګاهي ورکوم چې دعاء په هیئت اجتماعي ولو بعد السنن زمونږ د مذهب سره برابره ده بلکه د قرآن کریم د مطلق عباراتو سره هم برابره ده او هم د احادیثو مبارکه وو د بې قید الفاظو سره برابره ده، کما مَرَّ سابقًا»

ورنه د رویش به دې ښه پوهېږي چې د دوی په نیز هیڅ کتاب اعتبار نه لري بیله کتابه د ابن تیمیه حرانی، او یا د کتابه عبد الوهاب النجدی وامثالهما. نو بیان د عاصي په مثل د دواء دی یعنې لکه بعض دواګانی د پاره د حفظ صحت وي او بعض دواګانی د پاره د دفع د علت او مرض وي د غه رنګه زما دغه بیانات د پاره د حفظ صحت د خپلو ورونړو حنیفیانو دی. تا چې په مرض د وهابیت مبتلا نه سي. نه د دې د پاره چې دَفع د مرض دَ وهابیت د وهابیانو وغیره هم د دما غو او زړو سره په وکړم،، وهابیان وائي چې دعاء بالهیئة الاجتماعیة مما لم یأذن به اللهُ نو بدعت قبیحه ده. **جواب** چونکه دعاء په هیئت مذکوره ثابته با الادلة الشرعیه ده کما مرآنفًا وسابقًا نو مما لم یأذن به الله نه ده،

وهابیان وائي چې همیشه توب پر امر مستحسن بدعت دی. نو لعض ملایان چې دعاء په هیئت اجتماعي همیشه دعاء کوي بدعت دی. **جوَاب**: دا خبره ستاسي بیخي غلطه ده ولې علامه آلوسي بغدادي مصنف د روح المعاني. همیشه او هره شپه به د سورة الملك تلاوت کاوه او پر دي کار به حمد د خدای جل جلاله وئیلی دی او سره ددې چې تلاوت د سورة الملك خود واجبات څخه نه دی. او د غزا تګه په هغه چې بخاري وغیره روایت کړی دی چې علیه الصلوٰة والسلام و بلال رضی الله تعالیٰ عنه چې ته کم بنه عبادت کوي. چې ما به ستا د څپو تپو ئړبي په عالم رؤیا کښې تر ځان د مخه اوریدی یعني په جنت کې. حضرت بلال رضی چې زه چې هر وخت بې اوده سم، نو څو اوده اودس تازه کوم، او چې دوام پر اوداسه او دوام پر تحیة الوضوء خود ولجبات څخه نه دی بلکه یو مستحسن کار دئ. او بله خبره داده چې اولیاء او صلحاءٌ د تهجد پر لمانځه باندي دوام کوي.

او د تهجد لمونځ هم یو مستحسن کار دی واجب خو نه دی. او آنحضرت صلی الله علیه وسلم په دعا بنائیسته کلماتو د دوام پر امر مستحسن مدحه کړیده. چې وائي خیر العمل ما دیم علیه، هو بايد مرتب دعبادا تو مراعات وکړه سی. یعني فرضي عمل به فرض بولې. او واجب به واجب ګڼرلې او نفل به په نفلي نظر وړته ګوري. **وهابیان وائي**: چې عدم نقل د اجتماعي دعاء د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه دلیل ددې دی چې دعنه کار مکروه دئ. **جواب**: مکروه به هله وائي چې بیله فعل نبويؐ بل دلیل د جواز نه وای. موجود = او تا ته قریبًا و بعیدًا ذکر سوه چې اشارات قرآنیه او ر موزات نبویه پر جواز د دعې دعا دلالت کوي. ولې چې په کتابو کې د اصول الفقه په بحث کې د وجوه فاسده وائي چې عدم د دلیل خاص پر عدم د مدعی دلالت نکوي. ولا نه یجوز اثباته بدلیل اٰخر کما فی ما نحن فیه» **وهابیان وائي**: چې دعاء بعد السنن په هیئت اجتماعي دا سي مثال لري لکه نفل کول بیله ما زدیګر د لمانځه څخه او یا د سهار د لمانځه څخه **جواب**: د نفلي لمانځه بعد العصر و الفجر څخه صریح منع راغلي ده. په احادیثو نبویه وو کې او د دعا څخه صریح منعه نه ده راغلی» فکیف القیاس: درویش باګناه محمد عُبید الله کندهاري حنفي نقشبندي ایوبي، سلیمانخیلی وائي که څه هم مقصد د د رولیش پښتو ته نقل





کول د نور الایضاح دی. لکن په مناسبت د ذکر د دعاء په نور الایضاح کی. تفصیل د مسئلی د دعاء مناسب وګاڼه تا چې طالبان، او بعض امامان، بلکه نراونبځی د څېل ګران افغانستان په مورنۍ ژبه د دې مسئلې په تفصیل خبر کړم. او د وهابیت د دامه څخه خلاص کړم. په امید د دعاء د بعض مسلمانانو، پښتنو په باره کې د دې عاصي بانواع المعاصي په دربار کې د رب العزت جل سلطانه د مغفرت د ذنبه الجلي و الخفي، او ان شاء الله تعالیٰ دا به د فقیر د خواخیر باقي او صدقه جاریه وي إلیٰ یوم القیامه وما ذالك علی الله بعزیز» ربنا تقبل منا إنك انت العزیز الحکیم الحمد لله رب العٰلمین والصلوٰة علیٰ سید المرسلین وآله وصحبه اجمعین:

ـه غرض نقشیست کز ما یاد ماند؛ که هستی را نمی بینیم بقائی ؛

مګر صاحبدلی روزی ز رحمت. کند در حق این مسکین دعائی.

پوهسه: چې اوس زه بیرته رجوع و څپل مقصد اصلی ته کوم. وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللّٰهِ علیه توکلتُ و الیه اُنیبُ،

**خبردار**:

د نور الایضاح د اپښتو شرحه چې مصنف یه حضرت علامه محمد عُبید الله الایوبيُ القندهاري السلیمانخیلی ده، او په کتابت زما احقر محمد فضل الحق حقانی» لیکل سویده» او حضرت ایوبي د څپلو مشفقانه پیرزوینو له مخې ټول حقوق د طباعت او کتابت هم وموږ ته را کړیدي.

لږ هم د بې اداري له خوا به ان شاء الله مکمل ستاسو په دړانه خدمت کې وړاندي سي.

احقر الانام فضل الحق حقانی نقلیه
مدرس بقسم القراءات و التجوید و الدروس العربیه
بجامعة تجوید القرآن بشارع سرکی کوټه

# بَابُ مَا يُفسِدُ الصَّلٰوةَ

باب دی په بیان کی د هغو شیانو چی لمونځ فاسده وي. **پوهـسـه**: چی فساد او بطلان په عبادا تو کښی یو شی دی. او په معاملا تو کی فرق سره لري. نو یو فعل چی اصل یه مشروع وی لکن وصف یه شرعی نه وی هغه ته فاسد وائي. لکه بیعه په شرط د داسی شی چی عقد یه مقتضی نه وي لکه یو سړی چی سرلی خرڅ کړي په دې شرط چی یوه میاشت مثلاً به زه پکښی اوسیږم او نور په مثل د دغه شرط چی په اوسنی زمانه کی ډیری بیوعی د فساد څخه خالی نه وی.

**دبیع فاسد**: چی ملک خو د مشتري ثابت وي. لکن پر یوه د بائع او مشتري واجبه ده. **حکم دادی** چی دا عقد دی فسخ کړي چی د گناه څخه خلاص سی. او که یو کار د اصل مشروع نه وُو لکه خرڅول د وینی یا د مُرداري یعنی هغه حیوان چی مردار سوی وی دې کار ته باطل وائي. او حکم یه دادی چی ملک نه فائده کوي. وَلَو بعد القبض. **فرعه**: په او س وخت کی چی د جراحی عملیات وخپل اوج ته رسیدلی دی او بعض عملیات د ډاکټري په مسلک کی مریض ته د نورو وینه ته ضرورت لري.

یعنی که وینه و مریض ته ترزیق نه سی د ډاکټری په حساب مریض ته سل په سل کی خطره د مرګ وی نو بعض اشخاص چی گروپ د وینی یه د مریض د وینی د گروپ سره برابر وی خپله وینه پر مریض خرڅوی دا بیع خو بیله شکه و هغه سړي ته حرام او دا بیع باطله ده، لکن انتفاع په جزء دانسان و بل انسان ته په وخت کی د ضرورت روا ده. لکه خوړل د میتی په وخت کښی د مخمصی کافی کتب الفقه «ط»

قَالَ المصنفؒ **وَهُوَ ثَمَانِيَةٌ وَسِتُّوْنَ شَيْئًا اَلْكَلِمَةُ وَلَوْسَهْوًا اَوْخَطَاءً**

او هغه مفسد د لمانځه اته شپیته ۶۸ شیان دی. یو د هغو څخه یوه کلمه ویل دی که څه هم په سهوه یا په خطاء سره. **پوهـسـه**: چی دا عدد تقریبي دی تحقیقی نه دی «م» په سهوه ویل دادی چی هېر شوی ئې هُندی وسی. د ده خیال دا وی چی دی په لمانځه کی نه دئ. او خطاء دا ده چی لمونځ گذاره غواړي چی





دا ایت ووائی: يَا اَيُّهَا النَّاسُ " په خوله یه داوړسی " يَا زَيْدُ ". **پوهـسـه**: چی مراد د کلمی څخه کلمه نحوي نه ده چی لفظ موضوع د پاره د معنی مفرد ې دئ. ولی چی لمونځ په ویلو د لفظ مهمل هم فاسدیږی لکه " جَسْق " او په مرکب لفظ هم فاسدیږي لکه غُلَامُ زَيْدٍ وغیره. بلکه مراد معنی لغوي ده چی مَا يُتَكَلَّمُ بِهٖ " ده چی دا معنی ټولو الفاظو ته شامله ده "

**مسئله**: په فاسدولو کی د لمانځه شرط دادی. چی د کلمی حروفو په صحیح تلفظ کوي. او دی یې هم او ري. نو که یو د دې دوو شرطونو ولمونځ نه فاسدیږی لعدم اعتباره "حلبیؒ بنقل ط".

**مسئله** امام خواهرزاده وائی چی لمونځ په یوه سره چی مسموع سی که څه هم حروف نه وی هم فاسدیږي. **مسئله**: که سړي په لمانځه کښی وویل: آشِيْ " یعنی دا کلمه چی سړی خر په شړي " یا پَشْتَه " هم لمونځ په فاسدیږی " س، ن، در " نو هغه خبره چی بعض کتابو کښی کړیده که سړي پر خره سپور وو لمونځ به کاوه مثلاً نفل او وی ویل " آشِي " لمونځ یه نه دی فاسید د فقهی څخه لیری خبره ده. کذا قَالَ الشرنبلالیؒ:

**سَوَال**: په حدیث شریف کی چی بخاري یه هم روایت کړي دی داسی راغلی چی یوه ورځ په رباعي لمانځه کی آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم سهوًا په دوو رکعتو سلام وگرځاوه نو یوه سړي چی آنحضرت ؐ به په ذوالیدین ورته ویله. هغه ورته ووئیله: اَقُصِرَتِ الصَّلٰوةُ اَمْ نَسِيْتَ " ایا چه لمونځ کوتاه سو یعنی په لمانځه کی وچې راغلی چه د لمونځ به دوه رکعته گرځیدلی وي. او که ستا هېر سُو. علیه الصلوة والسلام ورته وفرمائیل: كُلُّ ذَالِكَ لَمْ يَكُنْ " یوه د دغو دوو خبرو څخه نه ده پیښه یعنی په گمان د علیه السلام. ولی چی د ده خیال دا وو چی لمونځ ما پوره ۴ څلور رکعته وکړه. خیر آنحضرت صلى الله عليه وسلم و خلگو ته وویل " اَصَدَقَ ذُوالْيَدَيْن " آیا رشتیا وائی. ذوالیدین " خلگو ورته وویل هُو. نو علیه الصلوة والسلام دوه رکعته نور وکړه. او سجدة السهوه وکړه. نو که خبری مفسد د لمانځه وائی نو به علیه الصلوة والسلام لمونځ د سره راگرځولای وای نو هم په د غه وجه په دی حدیث سره دلیل وائی. حضرت امام شافعیؒ چی وائی چی په هیره سره په لمانځه کښی خبرې کول لمونځ نه فاسده وی مگر په بیخی ډېر وي. **جواب**: حدیث د ذوالیدین محمول دی پر ابتدائی حالاتو د اسلام چی په لمانځه کښی قصداً هم خبری روا وي. یعنی نو

اوس داحدیث منسوخ دی. په دلیل ددی حدیث چی علیه الصلوٰة والسلام فرمائی: اِنَّ هٰذِهِ الصلوٰة لا یصلح فیها شئ من کلام النَّاسِ په تحقیق سره دغه لمونځ یعنی جنس لمونځ په هغې کښې صلاحیت نشته د شی دخبرو د خلګو او هیڅ عذر وای نو باید قلیل الکلام او کثیر سره برابر وای خبری او السلام علیکم خو باید په حکم سره برابر وای ولې چې دواړه قاطع د لمانځه دی

**پوښتنه** او ضمیر د مخاطب لکه په خارج الصلوٰة چې بیود بله سړی خلک په تحیه کې سره وائی موجود دی. او سړی ددی چې تاسی وایاست چې په سلام سره قصدًا لمونځ فاسدیږی. او په خبرو مطلقًا لمونځ فاسید بولئ. **جواب:** چونکه سلام د اسما وو څخه د خدائی دی او د جنسه د لمانځه هم دی السّلام عَلیكَ ایها النبیّ. نو دی د اذکارو د قسم دی. او په ذکر خو لمونځ نه فاسدیږی. نو چې سلام په هیره وی په سبب د مشابهت د اذکارو لمونځ نه په فاسدیږی او کړد مخاطب دچا سره غرض وه یعنی عمدًا وو نو د کلام الناس حکم لری او لمونځ نه په فاسدیږی ط، در، مر،

**پوښتنه:** چې مصنفؒ د خبرو سره داقید هم ولیلی دی په مراقی کی "وَلَوْ نَائِمًا فی المختار" یعنی که څه هم په لمانځه کی خبری وکړی په داسی حال کی چې بیده وی وی هم لمونځ په فاسدیږی مطلب دا چې په ناسته کی یا په سجده کی بیده وی او خبری وکړی. لکن مختار په دی کښله وایه چې فخر الاسلامؒ وائی چې دخوب په خبرو لمونځ نه فاسدیږی، ض، ن، ط، **مسئله** فعل قلیل په لمانځه کی عفوه دی. ولی چې احتراز ځنی مشکل دی مثلًا سری پریږی باندی غوماشه وچیچی ده هغه ځای وګوریږ. او یا په پټو، اشوه سوده بیرته په عملی قلیل برابره واچاوه وغیرذالک، مر، در، قَالَ المُصنفؒ:

**وَالدُّعَاءُ بِمَا يُشْبِهُ كَلَامَنَا** او دعا کول یعنی د خدای با که شی غوښتل چې مشابه زمونږ د خبرو سره وی یعنی لمونځ فاسده وی لکه اَللّٰهُمَّ اَلْبِسْنِی ثَوْبًا وَاَطْعِمْنِی لَحْمًا، او اقْضِ دَیْنِی، او انکحنی فلانة، ولی چې دغه د عبادو دخوا څخه هم دسره کیدای شی. بخلاف اَللّٰهم عافنی وارزقنی واعف عنی"

**پوښتنه:** چې صاحب د بحرالرائقؒ په نقل د مرغینانیؒ څخه داسی تفصیل د دعاء بیان کړی





دی. نو وائی چې دعاګانی چې په قرآن شریف کی او یا د علیه الصلوٰة والسلام څخه منقول وی په لمانځه کی کول لمونځ نه فاسده وی. او که قرآن آیات ماثوره کی یو دعا نه وی، نو کی طلب د بنده ګانو څخه محال وو هغه هم لمونځ نه فاسده وی لکه اللهم اغفرلی وارحمنی وارزقنی وغیرذالک، او کی طلب د بنده ګانو څخه محال نه وو لمونځ فاسده وی. نحو انکحنی فلانة، وَاَطْعِمْنی وَاَقْضِ دَینی

**سوال:** دعاء خو په عموم کی د کلام داخلوه نو حاجت په وذکرته څه وو. **جواب** په دعاء کی امام شافعیؒ مخالف دی هغه وائی چې په هیڅ دعا لمونځ نه فاسدیږی. نو ددی سبب په دعاء علیٰحده یاد ذکر کړه.

**پوښتنه:** دعاء خو خطاب د انسانانو سره نه دی نو ولی لمونځ په فاسدیږی!

**جواب:** په فساد کی د لمانځه خطاب شرط نه دی مثلًا که لمونځ کوونکی په لمانځه کی وویل قرائتُ الفاتحة لمونځ په فاسید دی. که څه هم هیڅ څوک حاضر نه وی، ت، ط، در،

**پوښتنه:** چې په طلب د رزق مطلق لمونځ نه فاسدیږی او په طلب د رزق مقید لمونځ فاسدیږی لکه چې اَللّٰهُمَّ ارزقنی لحمًا ووائی وغیرذالک" قَالَ المُصنفؒ:

**وَالسَّلَامُ بِنِيَّةِ التَّحِيَّةِ وَلَوْ سَاهِيًا** او د غه رنګ لمونځ فاسده وی ویل د سلام په نیت د تحیه دیوچا. که څه هم په سهو سره وی. **پوښتنه:** چې په مراقی کی وائی که څه هم عَلَیکُم ورسره و نه وائی. لکن ورسره دلیل داسی وائی لانه خطاب، نو سوال دا پیدا کیږی چې بیله علیکم ویلو نو خطاب چیری دی. د دے سوال په جواب کی ط داسی وائی چې مراد د خطاب څخه، مامن شانه ان یخاطب به، او درویش وائی چې دخطاب څخه خطاب عرفی مراد دی. او که مراقی والا داسی دلیل ویلای وای: چې سلام که څه هم عَلَیکُم نه وی ورسره په کلمه بالمعنی الاعم کی داخل دی نو ددی سوال به خلاص وائی.

**درویش وائی** چې دا قول د مصنفؒ مخالف دی د هدایه څخه چې په هدایه کښی داسی وائی: بخلاف السلام یعنی بیله عَلَیکُم لانه من الاذکار فیعتبر ذکرًا حالة النسیان و کلامًا فی حالة العمد آه بحرالرائقؒ تطبیق د مصنفؒ د خبری او د هدایه د خبری داسی کړیده که

چیری مخاطب حاضروو نومطلقًا یه لمونځ فاسِد دی کہ پہ قصدوی اوکی داهیروی چی زه په لمانځہ کښې یم اوکہ علیکم ورسره ووائی اوکہ نه. اوکہ چیری مخاطب حاضرنه وو نوکی په قصد سَلام سره د علیکم اویا بغیرد علیکم ووایہ لمونځ فاسِد دی. اوکی دنسیان په حال کی ووایی لمونځ یه نه دی فا سِد قیاسًا عَلیٰ ما سلم علی رأس الرکعتین فی الرباعیة سهوًا او نسیانًا فان صلوته لاتفسد فکذاهھنا، بحر، م، در، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَرَدُّ السَّلَامِ بِلِسَانِهٖ اَوْبِالْمُصَافَحَةِ

اود غرنگه لمونځ فاسدیږی په جواب ورکولو دسَلام چاوسَلام ته په خوله اویا په رو غیره. ولی چی رد دسَلام په خوله مفسد دی د لمانځه که عمدًا وی اوکه سهوًا ولی چی رد دسَلام خود اذکارو څخه نه دی بلکه کلام اوخطاب دی. اوهغه مفسد دی مطلقًا، ش، م، ط، ب، قید د لسانی مصنفؒ ددی سببه وَوایه، چی که رد دسَلام په لاس وکړی مثلًا لاس یه ورته پورته کړی لمونځ یه فاسدیږی. ولی چی په صحیح حدیث کی داسی راغلی دی چی آنحضرت صَلی الله علیه وَسَلم مسجد قبا ته یووَخت تللی وو. او پر لمانځه ولاړ وُو. انصارؓ چی به راتله سَلام به ورته وو وایه عمرؓ وبلالؓ ته چی دعلیه السلام سره ملګری وُو پوښتنه وکړه چی علیه الصلوٰة والسَّلام به څرنګه دوی ته جواب ورکاوه. نو بلالؓ ورته وَوئیله چی په لاس یه جواب ورکا وَه. یعنی لاس به یه پورته کړی دوَرغوی خوا به د مخکی وَخواته وه

**سَوَال**: د فقهی شریفی په ډیرو کتابونو کی وائی چی جواب دَسَلام په لاس سره مکروه دی ددی حَدیث شریف څخه خواسی فهمیږی چی مکروه نه دی. **وَاجَابَ** عنه ط چی فعل د علیه السلام دپاره دبیان دجواز دی او کراهت هم تنزیهی وُو.

او رد دسَلام بالمصافحة خو د جهته دعمل کثیروالی لمونځ فاسده وی. او چاچی وئیلی دی چی رد بالمصافحة خبری دی په معنیٰ کی هغه دَلیل غلط دی. ولی رَد بالید خو هم کلام دی. په معنیٰ کی. او سره ددی چی لمونځ نه په فاسدیږی، کمامرّ اٰنفاً فافهم؛ قَالَ المُصَنِّفُ

## وَالْعَمَلُ الْكَثِيْرُ

او ډیرعمل هم لمونځ فاسده وی. یعنی قلیل عمل لمونځ نه فاسده وی لانه لایمکن الاحتراز عَنهُ.





**پُوهَسَه**: چی فرق دعمل کثیراو قلیل څوك داسی کوی چی دری حرکته متوالی سری وکړی په لمانځه کی هغه کثیر دی یعنی لمونځ فاسده وی. اوکه دری کم وه اویا دری وه لکن متوالی نه وَه بلکه په مابین کی فصل موجودو وهغه قلیل دی لمونځ نه فاسده وی.

او **مشهوره فرق یه دادی** چی دَغه لمونځ کوونکی ته چی بل څوك وګوری کی د لمونځ کوونکی گمان پرده نه وو هغه عمل کثیر دی. اوکی گمان د لمونځ کوونکی خورکیږی. اویا په ترد اوشک کی وو هغه عمل قلیل دی.

**پوښتنه**: یوسړی بل سړي وَلیدی چی د لمانځه نیت یه وکړی. اویو رکعت مثلًا یه هم وکړی وروسته هغه لمانځه کوونکی دَجیبه څخه زمونځ راوکښه اوسَر اوزیره یه زمونځ کړی نو لمونځ خو یه په دغه فاسِدشُو اوسره ددی چی د عمل کثیر ذکرسوی تعریف نه پرصادقیږی. ولی چی لیدونکی خو یقین دی چی دی په لمانځه کی دی. ولی چی لیدونکی په ابتداء کی دده حال ولیدی چی پر لمانځه ودریدی. **جَوَاب** پوته فرق بناء پرهغه صورت چی خارجی سړي دده په حال د مخه نوی خبر فتدبر؛ قَالَ المصنفؒ

## وَتَحْوِيْلُ الصَّدْرِ عَنِ الْقِبْلَةِ

او اړول د څیګر دی دَقبلی څخه چی لمونځ فاسده وی ولی چی په تحویل سره استقبال دقبلی چی په لمانځه کښی فرض وو پاته شُو

**پُوهَسَه**: چی کښَل د لمونځ کوونکی دستَرګو په کجنسیا نو مکروه دی اوفاسدوونکی نه دئ. اوکی څیګرد قبلی څخه واړاوه لمونځ یه فاسد دی. کذاقالوا. اوکی څیګر سر ځای وُومخ یه واړاوه لمونځ یه مکروه دی فاسد نه دئ.

**پُوهَسَه**: چی کښَل د لمونځ کوونکی که یوجزء د څیګرو قبلی ته وی لا یه هم لمونځ نه دی فاسِد. نود تهوله څیګر اړول هلته راځی چی مثلًا قبله وغرب ته وی ادی څیګر و شرق کی وبالعکس. کذا قَالَ الامام الطحطاویؒ فی شرح المَراقی. ص۲۶۲

## التَّحقِيقُ فِي الْعَمَلِ الْقَلِيْلِ وَالْكَثِيْرِ وَتَحْوِيْلُ الصَّدرِ عَنِ الْقِبْلَةِ

**پوهسَه**: چی صحیح مذهب په باره کی د عمل کثیراو قلیل خو هغه وو چی د مشهور په عنوان ذکرسو، م، کی وائی

وهوالاصح. او په تبیین کی وائی: وهوقول العامة وهو المختار. او په مضمرات کی وائی وهوالصواب: ددره ومتوالی حرکتومثالونه. کرسری په لمانځه کی دگرمی په دوران کی په یوه رکن کی دری واره برله پسی پیک ووهی لمونځ یې فاسد دی. اویا یې وگروی یوځای د جسد نخه په یوه رکن برله پسی لمونځ یې فاسد شو. او په دی ټولوصورتو کی که په مابین کی فصل موجودوو لمونځ یې نه دی فاسد که څه ترددری واره بالاوی. او په خلاصه کی وائی کی دری واره ځان وګروی یې. په یوه رکن کی. او هر وار یې هغه ځای ته چی کا یې کول لاس پوره ته کول لمونځ یې فاسد دی او که رکن جلاوه. اویا یې دری واره لاس نه کی پورته بلکه په یوه پلا پوره ته کیدوسومثلاً سر دری واره یې بالا وگوراوه لمونځ یې نه دی فاسد. ولی چی دا یو وار گروول دی.

## دحیرانولوپوښتنه

یوچا دری واره شئ وچښی اولمونځ د بل چا یې فاسد سو

**جواب**: ښځه یې لمانځه په النحیات کی ناسته وه او ددی کشنی شیرخوره لمن وره پوره ته کړه او دری واره ددی شیدی ورودی د دغی ښځی لمونځ فاسد سو علی الاصح کما فی المضمرات، او بعض فقهاء وائی: چی هغه عمل چی په عادت کی په دوارو لاسو کیږی لکه د لنگوټی تړل یا پرتگا بنی تینګول عمل کثیر دی یعنی لمونځ په فاسدیږی کی څه هم دی په یوه لاس وکړی او هغه عمل چی په یوه لاس کیږی لکه رنجینه (خولی) پرسر کول، یا یوځای گروول عمل قلیل دی کی څه هم دی په دوارو لاسو وکړی. او په بعض کتابو کی وائی کی د دغه عمل مقصود وود کوونکی لکه یوځای چی کا. وکی وی گوری چی هغه عمل کثیر دی. او که متصود د عامل نه وو لکه په نیږ کینی ناختی گوتی و هی هغه عمل قلیل دی. او موافق د رای سره د امام اعظمؒ کما فی التبیین، د ادی چی قلت او کثرت د عمل ورائی ته دمبتلا به مفوض دی. که دده په فکر دیر وو هغه دیر دی لکه فکر د تقوی دار وخلگو، او که دده په خیال کی لږ وو هغه لږ دی. لکه د عوام الناس فکر او خیال.

**پوښتنه**: چی مصنفؒ په مراقی کی وائی چی سورته کول د دوارو لاسو د تکبیر سره د رکوع لکه نوراهل المذاهب چی کوی زموږ په نیز مکروه دی. لکن لمونځ نه په فاسدیږی علی الصحیح او په شرح کی د جامع صغیر په روایت د مکحولؒ د امام اعظمؒ نخه داسی وائی چی لمونځ په رفع





یدین فاسدیږی.

**پوښتنه**: چی امام حلبیؒ وائی چی تنگ په لمانځه کی که چیری برله پسی نه وو یعنی مصلی تنگ وکړی په قدر دیوه صف او بیا و دریدی په قدر دیوه رکن لکه د رکوع او سجود، او بیا په قدر دیوه صف روان سو بیا و دریدی یو رکن مقدار. او داغسی روان وو او تردیرو صفو تیر سو لمونځ یې نه فاسدیږی. مگر کی په سجده کی چی لمونځ ئې کاوه او ترمسجد ووتی لمونځ یې فاسد سو. او کی په صحرا کی لمونځ کاوه چی تر ټولو صفو تیر سو لمونځ یې فاسد دی.

**پوښتنه**: چی امام طحطاویؒ د ابن امیر الحاج نخه داسی تفصیل نقل کړی دی. چی تنگ په لمانځه کی به بیله عذره وی. اویا په عذر سره وی. که بیله عذره وو. نو که دیر وو او برله پسی وو نو لمونځ یې فاسد دی. کی په دغه تنگ کی قبلی ته شا سی او که نه! ولی چی دا عمل کثیر دی. او د لمانځه د اعمالو نخه هم نه دی. او که تنگ دیر وو او برله پسی نه وو لکه یو وار په یوه رکعت کی او بل وار په بل رکعت کی. وهکذا. اویا خو په یوه رکعت کی وو. لکن ترما بین د دوارو په مهلت وو، نو کی قبلی ته شا سوه لمونځ یې فاسد دی. ولی چی شا گرځول و قبلی ته په لمانځه کی بیله عذره منافی د لمانځه دی. او کی قبلی ته شا نه وه گرځولی نو لمونځ خو یې نه فاسدیږی. لکن داسی عمل مکروه دی. ولی چی فقهاءؒ ټوله وائی چی هغه عمل چی کثیر یې مفسد وی لږ یې مکروه دی. چی ضرورت نه وی. او که تنگ په لمانځه کی په عذر سره وو لکه وسری ته چی په لمانځه کی او دس ماتیږی نو په او داسه پسی روانیږی. اویا په صلاة خوف کی د دښمن مخ ته ورځی یا څنډی راځی. نو داغسی تنگ نه لمونځ فاسده وی او نه مکروه دی. که قلیل وی او که دیر کی شا و قبلې ته سی او که نه، انتهی، وهو تحقیق انیق،

**عذر**: د عمل کثیر او قلیل په باره کی او په لمانځه کی د تنگ په موضوع کی. درولیش دومره اطناب او اوږد بیان کړی. ولی چی بعض صوفیان په علم فقه ناخبره کسان په یوه اندك او لږ عمل سره د سړی د لمانځه د فساد حکم صادروی. او د غه ر تګه که لمونځ کوونکی یو قدم واخستی دوی ورته وائی چی لمونځ دی فاسد سو.

ونعم ما قیل ۔ آن کس کہ نداند۔ وبداند کہ بداند۔ درجہل مرکب ابد الدہر بماند: وآنکس کہ نداند وبداند کہ نداند۔ اواسپ خرد از گنبد فیروزہ جہاند: نود نور الایضاح د پښتو شرحې یوه فائده دا ده چې کم علم صوفیان علم زده کړي او بیا په حکم نه کوي. او دغه رنګه دا فائده هم ده چې عوام مطلق د دوی د بې ځایه احکامو څخه خلاص شي. وهذا هو الباعث علی هذا الکد والعناء من هذا العبد الاواه۔

قَالَ المُصنفُ: **وَاَکْلُ شَیٍٔ مِنْ خَارِجِ فَمِهٖ وَلَوْقَلَّ** او دغه رنګه لمونځ فاسده وي خوړل د یو شي د خولې د باندې څخه هم لږ وي. یعنې لکه د کنجتي دانه، ولې چې د دې څخه ځان ساتنه ممکن ده. ولې خارج وو. نو ده ولې وخولې ته اچاوه او تیر وي یه. قَالَ المُصنفُ:

**وَاَکْلُ مَا بَیْنَ اَسْنَانِهٖ وَهُوَ قَدْرُ الْحِمَّصَةِ** او دغه رنګه لمونځ فاسدیږي په خوړلو د ما بین د غاښو چې هغه په قدر د نخود وي۔

**پوهه**: چې فاسدوونکی د ما بین الاسنان د خوړلو هغه شي دی چې کثیر وي. او د کثیر اندازه یو نخود یې ترهغه پاکه څو هم په لږ عمل سره تیر کړي. یعنې ډیر نه وي ژروي. سبب د فساد یې دا دی چې د کثیر څخه احتراز ممکن وو. چې د خولې څخه یې راکښلی وای او ایسته کړي یه وای. او لږ شي چې په لږ عمل یې تیر کړي لمونځ نه فاسده وي. ولې چې تبعاً د نا ړه وي. او که لږ شی خوو لکن ده ډیر په خوله کې سره وار اړوه او تیر یې کې. لمونځ یې فاسد دی په سبب د عمل کثیر،

او امام خواهرزاده وائي چې کې تر ډکې خولې کم شی وخوړې لمونځ یې نه فاسدیږي. د امذهب د مصلی د پاره که څه هم آسان دی لکن د مصنفؒ مذهب اولی دی۔ او احتیاط ته په امر کښې د عبادت اقرب دی. خلاصه والا یوه متنا قضه خبره کړیده. دی وائي که لمونځ کوونکی وخوړي یو شی چې خوږ وو او وی ژووی عین د هغه او خوږ والی یې په خوله کې پاته وو او ساړي یې تیره ولې لمونځ یې نه دی فاسد. او کی مثلاً سپین مصري، یا چا کلیټ او یا پلمیټ په خوله کې وو لکن ژوولی یې نه. لمونځ یې کاوه او خوږې ناړې یې نس ته رسیدلې





لمونځ یې فاسید دی. او کې ژاولې ژووولې په لمانځه کې لمونځ یې فاسد دی که ډیرې وي آه نا فہم

قَالَ **وَشُرْبُهٗ** او څښتنګ د اوبو یا بل شي هم لمونځ فاسده وي که عمداً او که په هیر وي ولې چې شرب منافي د لمانځه دی. **مسئله**: که سړي د باران او ریدو په وخت کې لمونځ کاوه نو ده چې د آسمان وخوا ته سر پورته کړي د باران یو څاڅکی یې وخولې ته ولویدی او نس ته یې ورسیدی لمونځ یې باطل سو، ولې چې د خارج څخه دی او ده نس ته ور سیدی، م، طا، در

قَالَ المُصنفُ **وَالتَّنَحْنُحُ بِلَا عُذْرٍ** او دغه رنګه لمونځ فاسده وي غاړه تازه کول بیله عذره. مصنفؒ یه په مراقی کې علت د فساد داوئیلی دی. لما فیه من الحروف آه او ط وائي چې دا رشرمی حکم دا غه دی که حروف پیدا سی لمونځ یې فاسید دی۔ او تېغ حکم هم دا غه دی لکن چې وي ته مجبوري نه وي او که بې اختیاره وو لمونځ یې فاسدیږي۔ او تو خې څخه که حروف پیدا سوه او لې ضرورت وو لمونځ یې فاسد دی او نتژي که څه هم کلمې څندی پیداسي لمونځ نه په فاسدیږي. ولې چې غیر اختیاري کار دی.

قال السیدؒ:

**فائده**: د عذر صورتونه دا دي. چې د سړي په ستوني کې بلغم ډیر سوی وي او د قرائت څخه منع کړي وي. او یا د پاره د تحسین صوت وي په قرائت کې. او یا امام خطاوتی ده غاړې تازه کړي او امام یه په خطا پوه کاوه. او یا یو سړي خبری ورته کولې ده غاړي تازه کړي مطلب یه داوو چې په لمانځه کې یم، کذا قَالَ الامام الهمام فی فتح القدیر بنقل الامام الطحطاویؒ: ۔ قَالَ المصنفؒ:

**وَالتَّافِیْفُ** او دا غه رنګه لمونځ فاسیده وي اُف ویل یا تُف ویل. د پاره د بوی کولو د خاورو. او یا د پاره د اظهار د زړه د تنګیدو. او بعض اهل اللغة او الفقه وائي چې اُف نوم دی د خیړنو کانو، او یا د غوږو د خیرو، او تُف نوم دی د خیرو د ګوتو د بندو نو بیا دی تقدیر د تافیف معنا لیري کول دی د نوکانو د خیرو، او یا د غوږو، او یا د ګوتو د بندو، یعنې دا فعل هم لمونځ فاسده وي. او هغه اُف چې په قرآن کریم کې راغلی دی په

حق کی دمور او پلار، «وَلَا تَقُلْ لَهُمَا اُفٍّ»، هغه په معنا د اظهار د تنګیدلی دی په فعل د مور او د پلار چې حاصل یه زجردی د دوئ. قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَالْاَنِيْنُ** او دغه رنګه لمونځ فاسدوی څګیروی. وفی المراقی آه وهو آه بسکون الهاء منصوّ علی وزن دع. وفی ط اُه لوجع النجم، وبابه اَنَّ یَاَنُّ اَنِیْنًا» یعنی څګیروی وکی

**نادره** یو نحوی سړي ته وویل چې دا ترکیب صحیح دی. اَنَّ زَیْدٌ قَائِمًا»، هغه سړي ورته وویل چې دا ترکیب نه دی صحیح ده خیال دا وو چې اَنَّ خود حروف مشبه بالفعل څخه دی نو څرنګه زَیْدٌ چې اسم یې دی مرفوع دی او قَائِمًا چې خبر یې منصوب دی. او دا ترکیب په اصل کی صحیح دی ولې چې اَنَّ فعل ماضی ده یعنی څګیروی وکړو زید، زید یه فاعل دی او قائمًا یه حال دی: قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَالتَّاَوُّهُ** او دغه رنګه لمونځ فاسدوی اوه ویل: قَالَ فی المراقی وفیها لغات کثیرة ولی ط شمیر لی دي بحرالرائق په دي کلمه کی ۱۳ لغته **رفع الاشتباه**، په قرآن شریف کی په وصف کی دابراهیم علیه السلام لفظ د اَوَّاهٌ» په تشدید د واو راغلی دی د هغه معنا جلاده. چې معنا یه یقین کوونکی او یا ډیر دعا کوونکی یا نرم دله، او یا فقیه ده، د تاوّه سم فاعل متأوهٌ دی قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَارْتِفَاعُ بُكَائِهِ مِنْ وَجَعٍ اَوْ مُصِيبَةٍ لَا مِنْ ذِكْرِ جَنَّةٍ اَوْ نَارٍ

او دغه رنګه لمونځ فاسدوي پورته کول د ژړا د درد څخه په بوځای د بدن. او یا د یو مصیبت د وجهې نه چې د ځا زوی یا ورور مړوی یا یه مال ورک شي. او نه فاسدوی لمونځ په ژړا یا دولو څخه د جنت یعنی شوق د جنت او یاد او د بیری په اتفاق سره ولې چې د دغه ژړا سره کمال خشوع دلالت کوي چې د لمانځه سره او اعلی مناسب حال دی.

**پوښتنه**: چې مصنف په مراقی کی ترجمه د ارتفاع په دی کړیده. وهو ان یحصل به حروف مسموعة آه او حروفو څخه ما فوق الواحد مراد دی. او د مسموع ترجمه ط په دی کړیده چې دی ئی څپله واوریږي. او که دی دا حروف څپله هم نه واوری لمونځ نه په فاسدیږي.





او په قید کی د حروفو اشاره ودي ته ده چې نفس آواز بیله حرفه مفسد نه دی» خلافا للظاهر کلام البحر او مصنف زیاته کړي په دلیل کی د فساد چې دا خو کلام دی معنی. نو که ژړا د مرض او درد څخه وه. ګویا ده داسی وویل اِنَّهٗ مَرِیْضٌ فَاعْذُرُوْه»، دی ناجوړه دی ماسی معذور وګنړئ. او که بکاء د مصیبت د وجهې وه ګویا ده داسی وویل چې دی مصیبت زده دی د لاسائی ورکړي. او که سړي صراحة د غه عبارت ووائی خو لمونځ یه فاسد دی. فکذا بما یؤدی معنا الصریح لان الدلالة تعمل عمل الصریح والدلالة هو البکاء المسموع: او بل په دی ژړا کی اظهار د تاسف دی. وهو من جنس کلام الناس ط او که ژړا د شوق د جنت وی او یاد یاره د بیری داوروی ګویا ده داسی وویئیله: اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ الْجَنَّةَ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنَ النَّارِ» او که لمونځ کوونکی په لمانځه کی صریح د غه دعاء وکړي لمونځ یه نه په فاسدیږي. او په دلیل د هغه چې ژړاده هم لمونځ نه فاسدیږي.

**مسئله**: محل د فساد په حروفو مسموعو وسره هغه ځای دی. چې د مصلی په قدرت کی وی منع د ګګیروی، یا تأوه. یا ژړا، او کی تروس تیره وه. نو لمونځ نه په فاسدیږی. په نیزد تولو فقهاوو: قال فی الظهیریة. نو په وخت کی دنا وسی دا دري کاره لکه نږی، یا ټیغ، دی چې بی اختیاره د سړي څخه صادریږی. نو په ټیغ یا نږي که څه هم حروف پیداسی لمونځ نه په فاسدیږي لانه ورد: لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا»، فکذ الثلثة المذکورة»

**فرع** که امام قرائت مصلی ته خوند ورکړي. او د ده بعض استفهامو په جواب کی نعم ووائی. او د بعض په جواب کی بلی ووئیله لمونځ نه په فاسدیږي. **فرعه** که شیطان په لمانځه کښی سړي ته وسوسه ور واچول نو ده. لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ» وو ئیله که د اخرت د کار د پاره وه لمونځ نه په فاسدیږی. او که د دنیائی کار د پاره وه لمونځ په فاسدیږی. **فرعه**: که سړي په لمانځه کی لرم وخوړي ده وویل بِسْمِ اللّٰهِ لمونځ نه په فاسدیږي. وعلیه الفتوٰی، ط، کذا فی المضمرات والنهر: قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَتَشْمِيتُ عَاطِسٍ بِيَرْحَمُكَ اللّٰهُ

او دا غه رنګه لمونځ فاسدوی جواب ورکول او دعاء کول

ویوسہی ته چې ونښږی په لفظ د یَرْحَمُكَ اللّٰهُ" خدای دی پر تا باندې رحم وکړي.

۱ اولًا واوره که څوک ونږېږي خارج تر لمانځه بایدی ووائی یعنی مستحب ده چې وائی به اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ"، وجه د حمد ویلو داده چې په نږی سره دماغ ته استراحت رسیږی. او چې د الحمد لله وویل پر سامع لازم ده چې دعا د یَرْحَمُكَ اللّٰهُ جواب به ورته کوی که خارج الصلوٰة وو.

۲ ثانیًا که سړي په لمانځه کی ونږل او خپل ځان ته دیَرْحَمُكَ اللّٰهُ جواب ورکړي نه په فاسدیږی ولی دا ګویا ده داسی دعا وکړه ځان ته یَرْحَمُنِیَ اللّٰهُ: او په دی دعاء اتفاقًا لمونځ نه فاسدیږی ظ، ط، ۳ ثالثًا که بل چا ونږل او لمونځ کوونکی دعاء دیَرْحَمُكَ اللّٰهُ ورته وکړه. دغه مسئله دمتن ده لمونځ په فاسیږي. ۴ ورابعًا که سړي په لمانځه کی ونږل، او ووې ویل الحمدُ لله لمونځ نه په فاسدیږي ۵ خامسًا: که بل چا ونږل او لمونځ کوونکی ووَیل الحمد لله او مقصود یې صرف ثواب وُو لمونځ یې نه فاسدیږی اتفاقًا. او که مقصود تعلیم او ښوونه وه وعاطس ته یعنی چې ته اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ووایه لمونځ یې اتفاقًا فاسدیږي او که مقصود جواب دعاطس وُو، لمونځ یې نه فاسدیږی. ولی چې اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ په عرف کی جواب دعاطِس نه دی. بلکه کلمه د ثواب ده"

او بعض فقهاءُ وائی چې لمونځ یه فاسدیږی چې اعتبار د ده نیت لره دی د ده نیت خو جواب دعاطِس دیٔ. ۶ سادسًا چې لفظ د تشمیت په شین او سین دواړو سره مستعمل دی لکن شین یه افصح دی، م، ۷ سابعًا چې فساد د لمانځه په تشمیت سره مذهب د امام اعظم ابو حنیفهؒ او د امام محمدؒ دیٔ او امام ابو یوسفؒ وائی چې لمونځ نه فاسدیږی ولی چې دا دعاء ده مغفرت او رحمت ده ورور مسلمان ته، او د لیل د قول د طرفینو هغه حدیث دی چې معاویهؓ بن الحکم یه روایت کړی دی: چې یو سړي په لمانځه کی وبل عاطس ته یَرْحَمُكَ اللّٰهُ وویَله. نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم: وهغه ته داسی وویله: اِنَّ صَلٰوتَنَا لا یَصْلح فیها شیٔ من کلام الناس"، په تحقیق زمونږ یعنی د مسلمانانو لمونځ صالح د هیڅ شی د خلکو د خبرو نه دیٔ:

اَللّٰهُمَّ اغفِر لمؤلفه ولکاتبه آمین





قال المصنف

## وَجَوَابُ مُسْتَفْهِمٍ عَنْ نِدٍّ بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

او د غه رنګه لمونځ فاسدوی جواب ورکول وی او چاته چې هغه د مصلی څخه پوښتنه وکړي هَلْ لِلّٰهِ نِدًا یا خدای لره مثل یعنی شریک سته. په دغه کلمه د توحید چې جواب ورکړي نو لمونځ د ده فاسد خلافًا لابی یوسفؒ: ابو یوسفؒ وائی چې لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ" کلمه توحید او ثناء ده نو سړي په قصد سره تغیر نه خوري. او طرفینؒ وائی چې دا خو جواب دی نو متکلم په منافی بولل کیږي

قال المصنف

## وَخَبَرِ سُوْءٍ بِالْاِسْتِرْجَاعِ

او د غه رنګه لمونځ فاسده وي جواب د غمرد خبر. لکه چې یو سړي و لمونځ کوونکی ته ووائی چې مثلًا زوی دی مړ او یا مور چې یه سوو غیر ذالک. لمونځ کوونکی په لمانځه کی جواب ورکړي په دی کلماتو: اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ: قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَسَارٍّ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ

او جواب ورکول وخبر ورکوونکی ته د ښه خبر لکه یو سړي چې په لمانځه ولاړ وی بل سړي ورته ووائی چې زیری می در باندی زوی دی پید اسُو. یا مسافر د سفر څخه په خیر راوړسیدی وامثال ذالك. دی په جواب کی ورته ووائی اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ" نو لمونځ یه فاسد سُو: قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَعَجَبٍ بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَوْ سُبْحَانَ اللّٰهِ

او د اغه رنګه لمونځ فاسده وی جواب ورکول و یو چا ته چې هغه یوه تعجب آوره خبره ورته وکړی مثلًا ورته ووائي چې فلسطینا نو وه اسرائیلو ته ماته ورکړه او بیت المقدس یه څخه ونیوی دی په جواب کی ورته ووائی لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ یا سُبْحَانَ اللّٰهِ **پوه سه**: چې د غه مثال د خبری سار هم کیدای سی اعتباری فرق یه دیٔ. قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَكُلُّ شَیْءٍ قُصِدَ بِهِ الْجَوَابُ كَيَا يَحْیٰ خُذِ الْكِتَابَ

او د غه رنګه لمونځ فاسدوی هر هغه شیٔ چې قصد کړه سی په هغه سره جواب د یو چا مثلًا یو سړي وو چې

نوم یې یحیٰ وو دلمونځ کوونکي ځنې سوال وکړی چې دغه کتاب راکړه نولمونځ کوونکي ورته وویل یا یحیٰ خذ الکتاب. یعنی ای یحیٰ کتاب در واخله.

قالَ المصنفُ فی مَراقی. اولمونځ فاسده وی هرایت دقرآن څخه چې مقصود په هغې جواب ورکول دچاوی. مثلاً یوچا په لمانځه ولاړسړي ته وویله چې دلره راوړم. ده ور ته وویل اٰتِنَا غَدَائَنَا، اویاد لمونځ کوونکي څخه پوښتنه وکړه د بعض گنهو په باره کی. ده ور ته وویل وَتِلْكَ حُدُودُ اللهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا اوکه چیری مقصود د لمونځ کوونکي جواب نه وُو بلکه هغه بل سړي په دی خبراو چې په لمانځه کی یم نو بیا لمونځ اتفاقاً نه دی فاسد.

**پوهه سه:** چې مصنفؒ ایت دقرآن ذکر کړی تاچې حکم دغیر دقرآن په طریق اولیٰ معلوم شي. مثلاً مؤذن شهادتین په آذان کی ووئیلی بل سړي چې په لمانځه ولاړ وو اجابت هغه شهادتین ووئیلی لمونځ یې فاسد شو. اویا سړي په لمانځه کی لفظ د اَللّٰه د چاڅخه واوریدی. ده وویل جَلّ جَلالُه لمونځ یې فاسد شو. اویا یې نوم د علیه الصلوٰة والسلام واوریدی. ده په لمانځه کی درود ووایه لمونځ یې فاسد شو. اویا یو سړي خارج الصلوٰة قرآن شریف ووایه لمونځ کوونکي ورته وویل «صدق الله العظیم» لمونځ یې فاسد شو. اویا لمونځ گذاره د شیطان نوم د چا څخه واوریدی. نو ده ووئیله لعنة الله علیه لمونځ یې فاسد شو. اویا امام تکبیرونه کړل وېل یو بل سړي ورته غږ کړه چې دا تکبیرونه په زوره وایه. او امام هم داغسی وکړه. د امام لمونځ فاسد شو.

**پوښتنه:** په حدیث شریف کی راغلی دی یو وخت عبدُ الله بن مسعودؓ د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه اجازه د دخول وغوښتنه او علیه الصلوٰة والسلام په لمانځه ولاړوو نو علیه الصلوٰة والسلام د ابن مسعودؓ په جواب کی داسی ووئیله اُدْخُلُوهَا بِسَلَامٍ اٰمِنِیْنَ» او سره د دی چې لمونځ فاسد نه شو. **واجاب** عند الامام السرخسیؒ وتبعه شراح الهدایة: چې دا اتفاقاً داسی پیښه سوه چې اذن غوښتل دابن مسعودؓ په داسی وخت کی وسوه چې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم





قرائت د لمانځه هم دغه ایت ته رسیدلی وو یعنی اُدْخُلُوهَا بِسَلَامٍ اٰمِنِیْنَ» او د علیه الصلوٰة والسلام قصد د اجابت د ابن مسعودؓ نه وو» قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَرُؤْيَةُ الْمُتَيَمِّمِ مَاءً** او د غه رنگه لمونځ فاسده وی لیدل د تیمم والا اوبه لره. **پوهه سه:** چې مراد هغه اوبه دي چې دی پر قادر او پر استعمال هم وي. او بل دومره قدر وي چې د طهارت دپاره کافی دی.

**فائده:** که امام متیمم وو او هغه اوبه ولیدلی دده لمونځ فاسد شو. او د مقتدی که څه هم متوضی وی تبعاً فاسد شو. او که مقتدی متوضی اوبه ولیدلی. او امام نه وې لیدلی او امام متیمم وو د مقتدی لمونځ خو فاسد سو ولی خوده په عقیده د امام لمونځ په تیمم سره د وجود د اوبو نه دی روا. **فائده:** که متیمم په قدر د تشهدی کښېنستلی وو بیا یې اوبه ولیدلی لمونځ نه فاسدیږي. ولی چې اوبه یې بعد تمام الصلوٰة ولیدلی. لکن دا مذهب د یاراڼو. او په نیز د امام اعظمؒ په لمونځ فاسدیږي. یاراڼ وائی چې رویة د متیمم د اوبو که څه هم مفسد د لمانځه دی تکه حدث او خبری. لکن دا مفسد خو په سله تمامه لمانځه پیدا سو. ولی چې پر دغه مصلی شئی دارکانو او فرائضو نه دی پاتی لما جاء فی حدیث ابن مسعودؓ اذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلوٰتك»، نو دغه مصلی نو قعده وکړه.:

د حضرت الامام الاعظمؒ د مذهب په بیان کی امام بردعیؒ وائی. چې خروج د مصلی دده په فعل سره د لمانځه څخه هم فرض دی د امامؒ په نیز او پر دی سړي هغه پاته دی. او عام احنافؒ د امام بردعیؒ د قول په ملاتړ کړیدی کما فی العنایة. او ابو الحسن الکرخیؒ وائی چې سبب د فساد د لمانځه د دغه متیمم چې په قدر د تشهدی کښېنستلی هم دی. په نیز د امام الاعظمؒ داده چې دغه رویت د اوبو خو مغیر د لمانځه دی لکه نیت د اقامت د مسافر. نو په دی کی اول د لمانځه او اخیر د لمانځه برابر دی یعنی که دغه متیمم په اول کی د لمانځه اوبه ووینی خو لمونځ یې فاسد دی نو په اخیر د لمانځه چې ووینی هم یې لمونځ فاسد دی. او امام کرخیؒ زیاته کړیده

چی خروج د لمانځه نه په صُنع د مصلی فرض نه دی په اتفاق د یارانو اود امام اعظمؒ، صرف امام بردعیؒ د دغه اختلاف مسائلو نه دا فهمولې ده چې خروج په صنعه د مصلی د امام اعظمؒ په نیز فرض دی. قال وهو غلط منه» امام طحطاویؒ وائی: چې مجتبیٰ والاوائی چې محققانو د احنافو مذهب د کرخیؒ مختاره کړې ده او په معراج کې چې نسبت یې وامام حلوانیؒ ته کړې دی کې وائی والصحیح ما قاله الکرخیؒ» وفی التاسیس ما قاله ابوالحسن الکرخیؒ احسنُ»

د رویش وائی چې ظاهر هم مذهب د کرخیؒ دی. ولې نفس خروج په صُنعه خو قربت نه دی نو چې د امام اعظمؒ فرض بو للای. نو سلام چې قربت او ذکر دی هغه بې فرض گنړلی وای. والله اَعْلم بالصّواب: قَالَ المصنفؒ

**وَتَمَامُ مُدَّةِ الْمَاسِحِ اَیْ لِلْخُفِّ** او دغه رنگه لمونځ فاسده وي پوره والی د مدت د مَسح د موزو یعنی د لمونځ کوونکی په مَابین کې د لمانځه مده د مسح د موزی ختم شوه. یعنی یو شبانه روز د پاره د مقیم او درې ورځې د پاره د مسافرونو د ده لمونځ فاسد شو. ولې چې پښو ته یې حدث ور سیدی او د پښو پر یولو پر ده فرض شوه. قَالَ المصنفؒ **وَنَزْعِهِ** او یا موزه وه د لمانځه په مابین کې د پښې نه وخیژی که د ده په صنعه شوه او که بې صنعی د ده لمونځ فاسده وي. **مسئله**: هغه عذر چې سړی ته یې تیمم روا کړی وو لکه ناجوړی او یا بیره د دښمن چې د مخه تیر سوی دی. په قدر د تشهد ی زائل سی هم لمونځ فاسد سوم **وَزَوالُ** مده د مسح که پوره سوه او او به وی خو لمونځ فاسد دی بالاتفاق قاله الزیلعیؒ. او که او به نه وی لمونځ یې نه دی. ولې چې پښو لره خو په تیمم کې برخه نسته، م، ط، او بعض فقهاءؒ وائي چې لمونځ یې فاسدیږي ولې چې حدث سابق و پښو ته راغلی نو بل تیمم دی وکړي. ن، س، ط» **پوښتنه** چې هلته لمونځ فاسدیږي چې په قدر د تشهد ی نه وي کښېنستلی او که کښېنستلی وو نو دا مسئله په اختلاف ده بین الامام الاعظمؒ وصاحبیه: کما مر من قبل قریباً» قَالَ المُصنفؒ:

اللّٰهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه آمین





**وَتَعَلُّمُ الْاُمِّیِّ اٰیَةً** او دا غه رنگه لمونځ فاسده وي چې زده سي د امی یو آیت «تحقیق د لفظ د امی» دا لفظ منسوب دی وامة العرب ته چې په هغه زمانه کې دوی د علم او کتابت نه بیخی خالی وه. دی سړي ته په دی وائی چې په هغه حال چې اُم (مور) زیږولی وو پاته دی»

**پوښتنه**: چې د امی نه عرفی امی نه دی مُراد. ولې چې په عرف عام کې امی هغه ته وائی چې عالم نه وي کې نه هم. الحمد لله وقُلْ هُوَ اللهُ آه اونور سورتونه هم یاد وي. بلکه مراد امی فقهی ده دی چې هغه سړی دی چې یو آیت د قرآن شریف یې هم نه وي یاد» مصنفؒ په مَراقی کې وائی. ولم یکن مقتدیًا بقاءِ. او دی امی اقتداء په قاري پسې نه وی کړې. ط وائی چې امی چې مقتدي په قاري پسې وی او یو آیت ور یاد سی عام فقهاءؒ پر دی مذهب دي چې لمونځ یې باطل سُو. او په فتاوای ظهیریه کې وائی چې لمونځ یې نه فاسدیږي. وبه قال الفقیه ابواللیث السمرقندیؒ او د مصنفؒ دا قید بناء پر قول د ظهیریه دی. ولې که د امی که قاري فرض کړي خو هم دی ممنوع دی د قراءت نه خلف الامام. نو تذکر او نه تذکر و ده ته برابر دی» م، ط، در»

**پوښتنه**: هغه کې اختلاف د امام اعظمؒ او د صاحبینو لپاره هم جاري دی **فَائِدَه** تعلم د امی یو آیت لره دوه قسمه دی. یو دا چې یو آیت مثلاً خو یې په یاد وي. لکن بیا ځندی هیر سوی وي. او بیا او سنی لمانځه کې ور یاد سی. دوهم دا چې په لمانځه کې بل ور ښئی دی او یاده وی دا چونکه عمل کثیر دی په دغه عمل سره د ده لمونځ فاسد سُو. قَالَ المُصنفؒ

**وَوِجْدَانُ الْعَارِي سَاتِرًا** او دا غه رنگه لمونځ فاسده وي پیدا کول د داسی جامی چې لمونځ کوونکی د سببه څخه د نه وُجود د ساتر العورة لمونځ په لخته کوی. او س یې په لمانځه کې جامه پیدا کړه. یعنی یو چا ورته ور کړه لمونځ یې فاسد سو. ولې چې عذر د لڅ لمانځه د جواز وو هغه یې قطعه سُو:

**پوښتنه** چې دا فساد هلته لازمیږی چې دی مالک د دغسی جامی سی یعنی څوک یې ور وبخښی. او یا د لمانځه کولو په هغې جامی کې اجازه ور کړه. نو که دا جامه نجس الکل وه بیا یې لمونځ نه فاسدیږي. ولې په نجس الکل کې خو پړ ده لمونځ نه دی لازم بلکه سره د وجوده دَ

نجس الکل جامی په ابتداء کی هم دَه نه لمونځ په لځر روا وُو. او کی ربعه د جامی پاکه وه یا بالا ترهغه او نوره سره وه خو له په نیز دده او به وی چی نجاست یه پریوی یا نه وي. خو لمونځ به فاسدسو. ولی که ابتداءً د عنی جامه چی خالصه یا بالایه پاکه وه موجوده وی دده لمونځ په لخه ناجائزدی، نو اوس انتهاءً یه هم لمونځ باطل دی. او که طاهرالکل وی هغه خو په طریق الاولی لمونځ فاسده وي. وَلاَ تنس الاختلاف بین الامام وصاحبیهٔ فی هذه الصورة ایضًا، ط، مرد، قَالَ المُصنفُ

## وَقُدرَةُ المُومِی عَلَی الرُّکُوعِ وَالسُّجُودِ

اودغه رنگه لمونځ فاسده وي چی لمونځ کوونکی چی په سبب د یو مرض او عذر یه لمونځ په اشاره کاوه اوس یه قدرت پیدا کړي پر رکوع او سجده یعنی هغه مَرَض یه جوړ سو. او عذر یه زائل سو. ولی چی بناء دقوی لمانځه چی سجده او رکوع په کښی وی پر ضعیف لمانځه چی په اشاره دی نه دی رَوَا. م، قَالَ المُصنفُ:

## وَتَذَکُّرُ فَائِتَةٍ لِذِی تَرتِیبٍ

اودغه رنگه لمونځ فاسده وي په یاد یه په لمانځه کی د قضائی لمونځ هغه چاته چی خاوند د ترتیب وي. یعنی چی قضائی لمونځونه یه لزومًا تر وختی لمانځه د مخه کوي.

**پوښتنه**: که د سړي څخه یو یاد وه لمونځونه تر پنځو پوري قضا سوي وی هغه سړي بغیر قضائی لمونځونه تر وختی لمانځه د مخه بی قضاء راوړي. او که قضائی لمونځونه شپږ تر وسیدله نو ترتیب ساقط دی لکی د مخه راګرځوي او که وروسته؟

**پوښتنه**: چی د چا څخه شپږ لمونځونه قضا سوي وه او وقت د ټولو راګرځیدو نه وو بلکه وخت تنګ وُو. نو یو لمونځ یه راوګرځاوه نو څو پنځه پاته سوه ایا په هغو کی ترتیب سته که څرنګه!

**جواب**: ترتیب نسته لان الساقط. **مسئله** که د سړي لمونځونه هیر وه چی وختی لمونځ یه وکړي ور پیاد سوه د غه کړی لمونځ یه نه دی فاسد. په سبب د عذر د هیری وروسته په بل لمانځه کی بی د مخه راګرځوي. تکمله مصنف ووَیل وتذکر فائتة آه.





**مسئله** که د لمونځ کوونکی څو قضائی لمونځونه پیاد وه لکن دوقتی لمانځه وخت لږ پاته وُو. نو وختی لمونځ یه نه دی فاسد د عذر د سببه **فائده**: که د سړي قضائی لمونځونه پیاد وه او وخت هم فراخ وُو. لکن قضائی لمونځونه یه تر وختی د مخه نه راوګرځول نو که چیري د غه سړي قضائی لمونځونه ده پنځم لمانځه د وخت تر وتلو د مخه راوګرځول حکم یه دادی چی هغه ټول پنځه لمانځه چی کړي وه ټول نفل سوه. او پر ده باندی د کرد و قضاء لازم ده. او که چیري د پنځم لمانځه وخت تیر سوده راوګرځول ټول لمونځونه یه صحیح سوه. ولی چی قضائی شپږ سوه او ترتیب ساقط سوم، ط،

**فائده** زمونږ د زمانی عوام چی بعد البلوغ دده څخه په جاهلی کی ډیر لمونځونه قضا سوی وی د هغه د پاره چی اوس قضا یه راوړي ترتیب نسته.

**پوښتنه**:

که سړي دا قدر پوهیدی چی ما څو ډیر لمونځونه په ځوانی کی مثلاً قضاء کړي دي. لکن حساب یه نه وو ور ته معلوم نو دی به د څو لمونځو قضاء راوړي **جواب**

ترهغو پوري دی قضائی لمونځونه راګرځوي چی دده ظن غالب دا کیږي چی قضائی لمونځونه خلاص سوه، در، قَالَ المُصنفُ:

## وَاِستِخلاَفُ مَن لاَّ یَصلِحُ اِمَامًا

اودا غه رنګه لمونځ فاسده وی خلیفه ګرځول د هغه چا چی صالح د امامت نه وی لکه امی یا معذور سړي. یعنی امام قاري وو لکن ده ته په مابین کی د لانځه بی اود سیا وَ پیښه سوه. نو یه خلیفه د لمانځه د پاره امی یا معذور مقتدی ودراوه نو د امام او هم د مقتدیا نو لمونځ فاسد سو. لکن دا خبره پیاد لره چی فساد د لمانځه هلته لازمیږی چی امام قاري په اخیره ناسته کی په قدر د تشهد ی نه وي کښیناستلی. او که اخیره ناسته کړي وه صرف سلام یا درود وغیره ورته پاته وه او دس یه مات سُو نو دده لمونځ پوره دی او استخلاف ته ضرورت هم نسته. کذا قَالَ الفقیه ابوجعفر الطحاویؒ. فخرالاسلام علی البزدویؒ او د دوی دعوی د اجماع هم کړي ده، او صاحب الکافی وائی چی د غه مذهب صحیح دی. او به

فتح القدیر کی وائی وهو المختار او نهر فائق والاوائی چې وجه د عدم الفساد دا ده چې خلیفه برول
فی نفسه ئ رکتیر دی په مابین کی د لمانځه چې مونږ اجازه د دی عمل ورکوله د جهت ځنګه
د ضرورت چې لمونځ دېر باته وو. نواوس چې اخیره ناسته امام کړي وی نو خلیفه ګرځول
ده ته د نا اهله سړي څه ضرورت سته او کی اهل د امامت خلیفه کړي هغه به صرف د سلام
ګرځولو وظیفه ادا کړي لانه حینئذٍ لا یبقٰی غیره » حاصل ط » قال المصنفؒ:

وَطُلُوعُ الشَّمْسِ فِی الْفَجْرِ اوراختل د لمر د سحار پ، لمانځه کی د سحار لمونځ فاسده وي. په دلیل د دی چې د مخه تر
طلوع الشمس وخت کامل او ورو سته تر طلوع الشمس وخت ناقص دی. ولې چې د غه
وخت کی لمر پرستان و لمر ته سجدی کوی. نو د غه سحار لمونځ خو کامل لازم سوی وو. نو
ناقصه اداء به نه ده صحیح »ح، مر،

**پوهسه:** چې مراد د طلوع الشمس څخه دا نه ده چې د لمر ټیکی به وینې بلکه چې رڼا د لمر
،ځن یا بناء عالی، نو وای ټیکی د لمر بې هم معلومیدائ. نو به د اسی حال کی هم لمونځ فاسد
دی، د بعض عوامو ګمان دا دی چې څه وخت چې ټیکی د لمر پر غره راپوره سی نو د سحار لمونځ
نه دی روا. قال المصنفؒ:

وَزَوَالِ الشَّمْسِ فِی الْعِیدَیْنِ اود غه رنګه لمونځ فاسده وي چې لمر زوال وکړي د اختر په لمونځ کی. یعنی خلګ به
لمانځه د یوه اختر یا بل اختر ولاړه وه چې لمر زوال وکړي لمونځ به یه فاسد سوه. ولې
چې وخت د اختر د لمانځه تیر سو، لا قضاءَ لَهُ » قال المصنفؒ:

وَدُخُولُ وَقْتِ الْعَصْرِ فِی الْجُمُعَةِ اود غه رنګه لمونځ فاسده وي داخلیده د ماز دیګر وخت د جمعې
په لمانځه کی یعنی خلګ د جمعې پر لمانځه ولاړه وه چې د ماز دیګر وخت داخل سو نو جمعې لمونځ
به فاسد سو ولې، چې شرط د جمعې د لمانځه د ماپښین د لمانځه وخت دئ. نو د جمعې وخت تیر سوا

**پوهسه:** چې وخت د ماپښین چې سایه د شئ په مثل د هغه شئ وګرځی د ده وخت تیر سو





په نیز د یارانو او د په نیز د امام اعظمؒ چې سایه د شی دوه مثله د هغه وګرځی نو د ماپښین وخت
پای ته ورسیدی. نو د جمعې په لمانځه کی چې سایه و مثل ثانی ته داخله سوه د جمعې
لمونځ فاسد سو. په نیز د یارانو. او چې مثل ثانی پای ته ورسیدی نو د جمعې لمونځ
فاسد سو په نیز د امام اعظمؒ. لِکُلِّ عَالِمٍ هَفْوَةٌ » په مجمع الانهر کی په نقل د فتاوای
سراجیه د اسی وائی. چې قید د جمعې اتفاقی دی. ولې چې، د ماپښین د لمانځه حکم هم دا غسی
دی انتهی، ولا یخفٰی انه خلاف الفقه » ولې چې په فقه شریفه کښی وائی چې په دخول
دوقت العصر ماپښین نه فاسدیږی. ط »

**شکایت** د پښتون آباد په بعض جامع مسجدو کښی د جمعې لمونځ داسی وخت کوی چې وخت
د ماپښین پر مذهب د یارانو خو یقیناً وتلی وی بلکه داسی جامعګانی هم سته
چې د جمعې لمونځ داسی وخت کوی چې د حضرت الامام الاعظمؒ په نیز هم د ماپښین وخت تیر
سوی وي. د دې سببه څه دئ! لعض ملایان د غرمی د خوب ډیر شوقیان وی نو بیده
سی او خوب چې په سر سی نو د جمعې و لمانځه ته راووزي. او بعض ملایان بیا تر لمانځه
د مخه د رښتیا او د رواغو اوږدی اوږدی قصی کوی او خلګ زړه وی چې د ده جاه به
بالاسی. نو په دی قصو کی د ماپښین وخت تیر سی بیا نو د جمعې لمونځ کوي. معصیت
د خالق یه یاد یاره د خوب او یاد یاره د جاه و جلال پر غاړه واخستې.

ـــه چو بینم دین احمد در غریبی :: دلم سوزان ز چشمم خون جاری ::
د عبید وَیل به هلته بکار د رسی :: چې یوه دیوال ته مخ و بل ته شاسی.
غرض نقشیست کز ما یاد ماند :: که هستی را نمی بینم بقائی :: مګر صاحبدلی روزی ز رحمت :: کند در حق این مسکین دعائی
صرفت العمر فی لهو و لعبٍ :: فاهاثم آها ثم آها ::
احب الصالحین ولست منهم :: لعل الله یرزقنی صلاحًا ::
آئی تھے ہم مثل بلبل سیر گلشن کر چلے :: دیکھ مالے باغ اپنا ہم تو اپنا گھر چلے ::

د محمد فضل الحق حقانی اعزه الباری په قلم لیکل شویدی.

قَالَ المصنفؒ **وَسُقُوطُ الْجَبِيْرَةِ عَنْ بُرْءٍ** اودغه رنګه لمونځ فاسده وي لويدل د سکندي يا پټکي دجوړيدو وسره

يعني يو سړي پر يوځای په سبب د عذر د ټپ او يا ماتوالی او يا د هډ ختلو دکبله پټي تړلي وه. او مسح يې پر کوله. په لمانځه کې هغه پټي جلا سوه لکن لا ندی عذر يه جوړ وو لمونځ يې فاسيد دی. ولی حدث سابق په دغه ځای بنکاره سُو. او که لا ندی ټپ وغيره هنوز لا جوړ نه وو لمونځ يې نه دی فاسد، قَالَ المصنفؒ

**وَزَوَالُ عُذْرِ الْمَعْذُوْرِ** اودغه رنګه لمونځ فاسده وي چې زائل سي عذر د معذور سړي. چې په ناقض داوداسه معذور وي لکه سلس البول، انفلات الريح، رعاف ممتد وغيره يعني سړي په يو عذر معذور وو هغه عذر يې په لمانځه کې زائل سُو نو لمونځ يې فاسيد دی **پوښتنه**: چې زوال د عذر په دې معلوميږي چې يوه لمانځه کامل وقت بيله دغه عذره پر تير سي.

**دې مسئلې صورت** دا دی چې يو معذور څوک چې دمخه ذکر سو په عذر و مبتلا وو. او يا مستحاضه ښځه وه چې اودس يې دمًا پښين په تازه کاوه عذر يې جاري وو چې لمونځ يې شروع کړي عذر يې جاري وو بيا د مخه تر قعود په مقدار د التحيات عذر يې قطع سو، او تر لمر لويدو پوري عذر قطع وو او د ماز ديګر وخت کامل بې عذره پر تير سُو. هغه د ما پښين لمونځ يې فاسد دی بيرته به يې راګرځوي. وانما قلنا بياد مخه تر قعود آه ولی که په مقدار د التحيات کښېنستلی او عذر يې وو او د مخه تر سلام قطع سو، د ما پښين لمونځ يې صحيح دی. ولی چې دی معذور دی،،

**فائده**: که چيري يو معذور اودس تازه کاوه عذر يې قطع وو او بيا چې لمونځ کاوه عذر يې قطع وو تر اخيره د لمانځه. نو د غه لمانځه راګرځول پر ده نسته. کی هم پسله لمانځه څخه عذر بيرته راوګرځي. ط د ر، قَالَ المصنفؒ:

**وَالْحَدَثُ عَمَدًا اَوْ بِصُنْعِ غَيْرِهٖ** اودغه رنګه لمونځ فاسده وي چې لمونځ کوونکی د په قصد اودس مات کړي مثلاً ګوز يا پسکی په قصد





واچوي. و انما قال عمدًا. ولی که بې قصده ګوز يا پسکی ځندی ولويږي لمونځ يې نه فاسيږي بلکه پر هغه لمانځه بناء کوي کما تقرر في الفقه،،

اودغه رنګه لمونځ فاسديږي که اودس ماتيده د بل څوا څخه پيښ سوه. مثلاً سړي پر لمانځه وو يو بل چا په ډبره ووليشتی سر يې ور مات کړي. او يا سړي په لمانځه کې پر رکوع وو يو بل سړي پر سپور سو او ده باد يې سو. نو دی سړي لره هم بناء پر تير سوي لمانځه نه ده روا ولی چې د صحت د بناء شرط دا دی چې عذر به سماوي وي. قَالَ المصنفؒ:

**وَالْاِغْمَاءُ وَالْجُنُوْنُ وَالْجِنَابَةُ بِنَظَرٍ اَوْ اِحْتِلَامٍ** اودغه رنګه لمونځ فاسده وي بيهوشي يعني پر سړي په لمانځه کې بيهوشي راغله. اودغه رنګه ليونتوب لمونځ فاسده وي يعني چې سړي په لمانځه کې ليونی سي. اودغه رنګه لمونځ فاسده وي جنابت چې د کتو له سببه ور پيښ سي. مثلاً دی پر لمانځه ولاړ وو يوه ښځه تيره سوه ده چې ورته وکتل اودس پر راووبت. او يا د خوب په حال شيطان بازي ورکړه،، اودس پر راووبت لمونځ يې فاسيد سُو وانما قال بنظر او احتلام، ولی که چيري ناحقی اودس پر راووبت لمونځ يې نه دی فاسيد ولی چې دا عذر سماوي غسل دی وکړي او پس تير سوي لمانځه دی بناء وکړي.

**سوال**: احتلام خو په وخت کې دخوب پيښيږي نو د دی سړي خو اودس په خوب مات سُو نو د احتلام وذکرته څه ضرورت وو! **جواب**: مصنفؒ په مراقي کښې وائي: نَائمٍ مُتمكن،، حاصل د جواب دا دی چې د احتلام ذکر پر دی بناء دی. چې لمونځ کوونکی په لمانځه کې پر داسې حالت بيده سي چې په خوب يې اودس نه ماتيږي لکه په ناسته کې چې بيده سي او تکيه يې کړې وي. **پوښتنه**: چې اغماء داده چې قوت عاقله يې پر ځای وي لکن اعضاء محرکه يې کار پريښې دی. او جنون دا دی چې اعضاء محرکه يې فعاله وي. لکن قوة عاقله يې کما ينبغی کار نه کوي. په بعض کتابو کښې ما وليده چې يو سړي چې شراب يې چښلی وه کله چې نشه يې سر سوه بولو ونيوی. نو بولې کولی او دواړه لاسونه يې ورته نيولی وه او مخ ئې په پريولی او دا بې ويئيله. الحمد لله الذی جعل الماءَ طهورًا آه.

درویش وَائی چې فهم د مسئله د محاذات د نر او د ښځې په لمانځه کې چې مفسد د نَر د لمانځه گرځي پاتې ډیر مشکل کار دی. نو د دې مسئلې د ښه فهم د پاره یو څو خبرو ته په طور د مقدمه ضرورت سته. تفصیل د هغو خبر دا دی.

١ **سوال** څه سبب دی چې په محاذات سره یوائې د نر لمونځ فاسدیږي او د ښځې دانه فاسدیږي. **جَوابُ** سبب دا دی چې نر خپلو، سپارل سوی وظیفه پرېښوله قال علیه السّلام مخاطبًا للرجال: اَخِّرُوهُنَّ مِنْ حَیْثُ اَخَّرَهُنَّ اللّٰهُ» ترجمه: تاسی نر دوی یعنی ښځې وروسته کوئ په لمانځه کې په دې سبب چې دوی خدائ په خلقت کې وروسته کړي دي.

٢ په محاذات مفسد کې ماینه دَسرې، خور، مور، او نور محرَما ن سره برابر دي، او جره او منځه هم برابر دي ٣ فساد د لمانځه د نر معلول په عروض د شهوت نه دی. ولې که وای نو محرمې ښځې په محاذات به لمونځ نه وای فاسد سوی. بلکه اصل علت په ترك د مقام مفروض دی د ښځو د پاره کما فی فتح القدیر کما مَرّ اٰنفًا. نو چې شهوت په علت نه دی نو هغه چې بعض علماء وائي چې په محاذات سره د بي بري ښا ئسته هلك هم لمونځ فاسدیږي نه روایتًا صحیح ده او نه درایتًا صحیح ده» لما مرّ اَنَّ الفساد غیر معلول بعروض الشهوة »

٤ د مشتهات ښځې نه مراد عام دی که مشتها ت بالفعل وي او که په تیوالي وي. نو ډیره خړه بوډۍ سپین سَرې ښځه هم په کښې داخله سوه. ٥ او مشتها ت بالفعل هغه ښځه یا جَنلۍ ده چې د جماع قابله وي او سن نه اعتبار نسته. کذا قال الشامي : او په در مختار کې وائی چې مشتهات حالا هغه جَنلۍ ده چې د نهو کالو وی مطلقًا که چاغه وی او که ډنگره ـ او د اوو کلو یاد اتو کلو وي که چاغه شلنده وه. ٦ تبیین والا او مصنفؒ هم په مراقی کې وائي چې محاذات کې محاذات د نر او ښځې محاذات د پجلکي او پنډۍ شرط دی دا تحقیق او تخصیص اصلا زیلعيؒ شارح د کنز کړي دی. لکن په نهر کې وائي چې دی تخصیص له کوم دلیل نسته بلکه صحیح تفسیر د محاذات هغه دی لکه چې مجتبٰی والا چې ذکر کړی دی حیث یقول وهو ان المرئة اذا قامت بجنب الرجل او قدامه من غیر حائل. او په در مختار





کی وائی چې معتبر محاذات په یو اندام سره دی هر اندام چې وي. دلیل د دې تفسیر د صحیح والی دا دی، چې د زیلعي یا مصنفؒ په تفسیر» که ښځه پر دکا نچه ولاړه وی او نر کښته چې کانچه د نر تر قامت کښته وي. یعني د نر اوږ ی د ښځې پر یو ځای برابري وي. باید لمونځ د نر فاسد نه سي. ولې چې محاذات د کعب او ساق خو نسته. او سره د دې چې ټول فقهاء وائي چې د نر لمونځ فاسدیږي. او مصنفؒ وروسته په مَراقی کې وائی چې په مذکوره صورت کې لمونځ فاسد دی. ٧ دا امام محمّد مذهب دا دی چې په هر رکن کې سره محاذی سوه د هغه تر تمامه چې محاذی پاته سي نو د نر لمونځ فاسد دی. او په فتاوای خانیه کښې وائی چې لږ محاذات او ډیر محاذات لمونځ فاسده وي. او د دې مذهب نسبت په وامام ابویوسفؒ ته کړی دی لکن صحیح هغه ده چې مصنفؒ په مراقی کی وائی چې دا امام ابویوسفؒ مذهب دا دی. چې په مقدار دادنی رکن سره محاذی سي لمونځ د نر فاسد دی. ٨ چې اشتراك او محاذات د نر او ښځې په په کامل لمانځه کښې وی یعنی چې رکوع او سجده په کښې وي. نو که په لمانځه کې د جنازې سره محاذی سوه د نر لمونځ نه فاسدیږي ٩ که دامام د ښځې د امامت نیت نه وو کړي نو د ښځې لمونځ فاسد دی د نر د اصحیح دی او کې دامامت د نر او ښځو دواړو کړی وو، نو د نر دا فاسدیږي ١٠ که ښځې جلا لمونځ کاوه یعنی نفل مثلًا او نر جلا لمونځ کاوه لکه فرض مثلًا او سره محاذی سول نو د نر لمونځ نه دی فاسد لعدم الاشتراك فی الصلوٰة. وهو شرط فی فساد الصلوٰة کما مر فی کتب الفقه» .

او اشتراك دا دی چې مفترض په مفترض پسې اقتداء وکړي او یا متطوع په متطوع پسې یا متنفل پسه مفترض پسې. ١١ که سړي و ښځې ته اشاره وکړه چې تر شا سه او دې عمل په ونه کړي. نو د نر لمونځ صحیح دی او د ښځې دا فاسد دی. ١٢ که د سړي او ښځې تر ما بین دومره فاصله وه چې یو نر لمونځ پکښې کولای سوای د نر لمونځ نه فاسدیږي. قاله الزیلعيؒ. وتبعه مَن جاء بعده من المتأخرین ١٣ که د ښځې او نر تر ما بین کې یو گز اوږده او پنډه والی په د گوتې په اندازه ستره وه بیاد نر لمونځ نه دی فاسد او دا ستره په ما بین کې د پښو د ښځې او نر به این دی. او یا په ما بین د محل سجدې د دوی او یا هرځای چې این دی په ما بین کې د

ددوی دوو، پسله دی مقدمې اوس واوره عبارت د نورالایضاح او په قیدو کې فکر وَهَهٔ قَالَ

**وَمُحَاذَاتُ الْمُشْتَهَاةِ** اوډغه رنګه لمونځ فاسده وي برابر والی یعنی د ښځې سره د هغې ښځې چې اشتهاء وړ ته کیدای سي یعنی یا اوس یا د مخه لکه سپین سرې زړه. په مراقې کې لفظ د رجل ویل سوی دئ. چې بالغ سړي ته وائي اشاره ودي ته ده چې د نابالغه هلک لمونځ په محاذات نه فاسدیږي. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**فِي صَلٰوةٍ مُطْلَقَةٍ** په لمانځه کامل کښې چې رکوع او سجده لري. د صلٰوة په وئیلو سره دي ته اشاره ده چې د لیونۍ ښځې په محاذات سره د نر لمونځ نه فاسدیږي. ولې چې د لیونۍ کښته او پورته کیدل و ته په شرع کې صلٰوة نه وائي. **فَائِدَه**: که ښځې نیت دما پښین د لمانځه وکړي په هغه نر پسې چې هغه د ماز دیګر لمونځ کاوه نو په مذهب د ښځې د غه لمونځ نفلاً صحیح دئ. نو که په دغه لمانځه کې نر ور سره محاذی سي لمونځ به فاسد دئ. **پوښتنه**: چې د مطلقه د قید سره د جنازې لمونځ ووتٌ. فقهاء وائي علت یې دادی چې د جنازې لمونځ په اصل کې لمونځ نه دی بلکه مړي ته دعاده"

**سَوَالُ**: چې لمونځ نه دی نو ولې اقتداء د نر په ښځه پسې د جنازې په لمانځه کې ناروا ده **جَوَابُ** د دی سببه چې د جنازې لمونځ د مطلق لمانځه سره مشابهت لري په تحریمه او سلام کې" کذا نقل عن العنایه" قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**مُشْتَرَكَةٍ تَحْرِيمَةً** چې لمونځ د نر او ښځې به سره شریك وي نو که ښځې یو لمونځ کاوه. او نر بل لمونځ کاوه او سره محاذی سوه د نر لمونځ نه فاسدیږي. بلکه مکروه دی. ط، د اشتراك هغه دری صورته وه چې ذکر سوه مصنف د اشتراك فی التحریمة په بیان کې وائي: باقتدائهما بامامٍ واحدٍ او اقتدائها به" **تَنْبِيه**: اشتراك د دوی په اداء کې د لمانځه په وخت کې د محاذات هم شرط دی په فساد کې د لمانځه د نر. حتی که نر او ښځه پس له لمانځه په امام پسې بیله محاذات ولاړ وه لکن دواړه بې اودسه سوه. نو چې اودسه ته تله او یا د هغې خواړ اتله سره محاذی سوه د نر





لونځ نه فاسدیږي. ولې چې دا خوحال د اداء د لمانځه نه دی. او دغه رنګه که نر او ښځې څخه یو رکعت تیر سوی وُو. نو چې امام سلام وګرځاوه دوی دواړه ولاړ سوه وقضاء ته د رکعت لکن په دغه وخت کې سره نږدې سوه. او محاذات شرطو برابر پیدا سوه د نر لمونځ نه دی فاسد ولې چې مسبوق د قضاء په وخت کې منفرد دی نو که څه هم دوی دوه شریکان دی تحریمةً لکن اداءً نه دی سره شریکان"

## مَسْئَلَه دَ اِشْتِرَاكِ تَحْرِيمَةٍ

معنا دا نه ده چې دوی به اول د لمانځه د امام نیولی وي. پر صحیح مذهب. بلکه که نر اول د لمانځه د امام نیولی وي او ښځه وروسته تر یو رکعت کولو یا بالا تر هغه راغله او د نر سره محاذی سوه د نر لمونځ فاسد سُو، نقله ط عن ب، عن س" قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**فِي مَكَانٍ مُتَّحِدٍ** په یوه ځای کې، حتٰی که ښځه پر یو لوړ ځای ولاړه وه په داسې شان چې د دی هیڅ اندام د نر سره نه وو برابر د نر لونځ نه فاسدیږي. او که مکان د لمانځه د دوی سره یو وو حکماً لا حقیقةً" هغه داسې چې ښځه خوږ لوړ ځای ولاړه وه لکن تر قامت د نر کم یعنی چې بعض اجزاء د نر د دی بعضو سره برابر وه. نو هم د نر لمونځ فاسد دئ"

**پوښتنه** د، څه شي دا معلومیږي چې تاخیر د ښځې په لمانځه کې فرض دئ. **جَوَابُ** د هغه حدیث څخه چې ابن مسعودٌ په موقوفاً روایت کړي" کما مَرَّ: اَخِّرُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَخَّرَهُنَّ اللّٰهُ: **سَوَال** دا خو خبر واحد دی نو فرضیت څنګه په ثابتیږي **جَوَابُ** دا حدیث بیان د مجمل الکتاب" وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ" نو په ده فرضیت ثابتیږي. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**بِلَا حَائِلٍ وَنَوَى اِمَامَتَهَا** د دی دوو قیدو معنا او فائده په مقدمه کښې ذکر سول ځکه نو و تکرار ته یې ضرورت نسته"

## دحج په مُوسَم کی

**پُوښتنه:** چی حکم او مسئلی ته د محاذات په بلاد اسلامیه وو کی د ټولی نړی چندان ضرورت نشته په استثناء د حکم د حرم مکی. ولی چی ښځی و هیڅ جماعت لمانځه ته نه راځی په سبب د منع شرعی. اَللّٰهُم الا العَجائِزُ یعنی سپین سری ښځی. او هغه هم په بعض لمونځو کی لکه د جمعی یا اخترو، او هغه هم په بیځی لږو جامعگانو کی. او په هغو جامع مسجدو کی چی سپین سری ور ته راځی د ښځو د پاره علحده ځای ستته. چی ترهغه ځای ته وراځی او نه ښځی که څه هم ډیری وی د نرو ځای ته راځی. نو د محاذات مسئله نه پیدا کیږی البته که په بعض نورو کی نر او ښځی په یوه جماعت د رینی هلته امکان د محاذات ستته لکن هغه هم سهل الدفع دی، ولی چی امام به و ښځو ته ووائی چی ترشا ودریږی. او په حرم کی د مدینی منوری هم مسئله د محاذات نه پیدا کیږی. ولی هلته د سعودی عسکر ښځی نه پریږدی چی د نرو ځای ته ورسی. بلکه په مسجد نبویؐ کی د ښځو د پاره باقاعده ځای ستته چی دوی ټولی په هغه ځای کی لمونځونه په جماعت د امام کوی.

مگر په حرم مکی کی دی مسئلی ته جدی ضرورت ستته د دی سببه چی نر او ښځی په طواف اخته وی خونا کیاه اقامت د لمانځه شروع سی. او په دغه وخت کی وَتل د ښځو د مابین څخه د نرو ډیر مشکل کار دی. نو اخرالامر نران او ښځی گډ وډ پر لمانځه په امام پسی اقتداء وکړی. کاهی تر نرد مخه ښځه ولاړه وی. او کاهی پر تغل بلا فاصله ښځه پر لمانځه ولاړه وی. نو بناءً علیٰ هذا د دی مسئلی و تفصیل ته ضرورت ستته»

**درویش وَائی:** چی تراوس سنی: ۲۲ ۱۴ھ دیرش، څلویښت کاله د مخه چی زائرین د بیت الله شریفی ډیر لږ وه. خصوصًا ښځی چی هغه پر ډیر محصو عدد ځج ته راتلی او هغو د پاره په حرم مکی کی لکه په حرم کی د مدینی مُنوری مخصوص ځای وُو. نو هم محاذات شاذ او نادر پیښی دی. او د هغه د دفع د پاره چی مُلا یا نورا ثرانو، وه امام ته د حرم رجوع کړی وه چی د دی محاذات مفسد دفع وکړی هغه په جواب کی داسی ورته وویل





چی زه نیت د امامت د هغو ښځو کوم چی ځچپل مخصوص کی ولاړی وی د مابین الصفوف نرانو نیت د امامت نه کوم. او د فساد د نرد لمانځه په محاذات د ښځی خو نیت د امامت د ښځو لازم دی کما مر. نو د غو ښځو چی بین صفوف الرجال ولاړه وی لمونځونه یه فاسد دی. او د نرانو لمونځ یه رَوادی. لکن ډیر کلونه وروسته تر دی سَنی پوری د حجاجو شمیر و تکثیر رسید لی. او د ښځو حاجیاتو تعداد هم په لکوسو. او هغه مقام مخصوص هم مختل سو»

حتی چی په اوسنی زمانه کی به ډیر لږ خلک او نران د محاذات څخه د ښځو خلاص وی، او د حرم مکی د امام هغه پخوانی خبره هم اوس زما په عقیده نه وی پاته، ولی چی په زرو ښځی امام په وینی چی بین صفوف الرجال ولاړی دی. نو دی به څرنگه ددی دونه ښځو لمونځونه فاسده وی. سره ددی هغه مقام مخصوص د دوئ هم مختل النظام دی. نو په اوسنی حالت کی د پاره د خلاصون د نرو د لمونځو د فساد څخه بل چاره نسته چی د کم نری سره چی ښځه محاذی سی. یعنی یا د مخه تر نرو ولاړه وی او یا بلا فاصل په و بغل ته ولاړه وی. نر دی و هغی ښځی ته اشاره وکړی چی ترشا سه. نو که هغی د ده په اشاری عمل و نه کړی نو د غی ښځی لمونځ فاسد دی. او د نر لمونځ صحیح دی کما من قبل قریبًا

## وَكَشْفُ عَوْرَةِ مَنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ

او د اغر نگه لمونځ فاسده وی لخوالی د عورت د هغه چا چی ور پیښه سی بی او دا سیا که نروی او که ښځه. **پوښتنه:** چی د نر او د ښځی عَوَت ځایونه ور ښندی تیر سوه

## وَلَوِاضْطُرَّ اِلَيْهِ كَكَشْفِ الْمَرْئَةِ ذِرَاعَهَا لِلْوُضُوْءِ

که څه هم مجبوری د غه محدث و لغولوته د عورت لکه چی لخ کړی ښځه څچ لی او د سه سوی وی په لمانځه کی خپل بازو د پاره د او د اسه نو لمونځ ددی فاسد سُو. پر تیر سوی لمانځه په بناء نه ده روا بلکه دسره بر لمونځ راگرځوی **پُوښتنه** چی دا حکم د ظاهر الروایت دی. او په فتاوی خانیه او تنویر او د هغه په شرح کی وائی که د غه بی او د سه وکشف العورت ته مجبور وُو لکه په

مثال مذکور کی نو پس تیر لانځه دی بناء وکړي. یعنی لمونځ یه نه دی فاسد اوکه بی ضرورت یه عورت لخ کړی لمونځ یه فاسد سُو. لکه دغه منځه چې بی اودسه سوی وه. نو په دی وخت کی داوداسه دپاره لاسونه تراوږی پوری لخ کړه. ولی چې ضرورت تر څنګلو پوری وو. قال

**وَقِرَاءَتُهُ ذَاهِبًا اَوْ عَائِدًا لِلْوُضُوْءِ** اوداغه رنګه لمونځ فاسده وي قرائت دقرآن دهغه سړي چې په لمانځه کی بی اودسه سی. په داسی حال کی چې داوداسه په خوا ځي. اویا داوداسه څخه بیرته راستنیږی یعنی د پاره د پوره کولو د لمانځه»

**پوښته**: چې تسبیح یا تهلیل یا استغفار په دغو دوو حالو کی لمونځ نه فاسده وي. ولی چې دا شیان جزء د لمانځه نه دی بخلاف القراءة. ولی چې هغه جزء د لمانځه دی. نو دي سړي چې ذاهبا یه قرائت وواید یو جزء د لمانځه یه په بی اودسیا سره ادا کړی. او کی عائدا قرائت ووایه نو دغه تر شروع په لمانځه خارج یو جزء د لمانځه ادا کړي» ط ب، در قال

**وَمُكْثُهُ قَدْرَ اَدَاءِ رُكْنٍ بَعْدَ سَبْقِ الْحَدَثِ مُسْتَيْقِظًا**

اوداغه رنګه لمونځ فاسده وی چې درنګ وکړی دغه څوک چې بی اودسیا ورپیښه سوه په قدر د یو رکن د لمانځه پسله پیښودی د بی اودسیا په داسی حال کی چې ویښ وی. لکن مصنف په مراقی کی وائی چې هلته یه لمونځ فاسدیږی چې دا مکث دده بیله عذره وی اوکه پرنږدی ازدحام د پیروو اوده ته وار ژر نه ور رسیدی او پرلیږی اوبو ازدحام نه وواو نوبت ژر ور رسیده دا عذر دی وده ته رواده چې هغه لیری اوبو ته ولاړ سی. «در» روکه پر اوبو ازدحام وو، اویا ئی دېږی وینه نه درېده، اویا دی بیده وو، چې پېږی وینی وکړی. اوکُنه یې پر محکله تنیګه وه وروسته راپیدار سُو. نو په دروسره صورتو کی لمونځ نه دی فاسد بلکه بناء دی پسله اوداسه پر تیر سوی لمانځه وکړي» قال المصنف:

**وَمُجَاوَزَتُهُ مَاءً قَرِيْبًا لِغَيْرِهِ** اوداغه رنګه لمونځ فاسده وي چې داغه بی اودسه سړی د نږدی اوبو څخه تیر سی





ولیږی اوبو ته. دپاره داوداسه ولاړ چې دا تیرسیده دده بیله عذره دی.

**مسئله**: که لمونځ کوونکی په رکوع یا سجده کی پسکی واچول اویا پزه وینی سوه نو دی چې سر اپورته کوی نیت دی داوداسه وکړي نه ددی چې دا رکوع یا سجده پوره کړم. ولی که یې داغسی نیت وکړی لمونځ یه دغه سره فاسد سُو. او کی نه نیت داوداسه وکی او نه نیت دا تمام درکن وکړی لمونځ یه فاسد دی لکن په یوه روایت «در»

**مسئله**: که دسړی په رکوع کی اودس مات سُو چې راپورته کیدی سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ یې وویل لمونځ یه فاسد سُو. ولی نفس سر اپورته کیده خو ضروری وه. داوداسه دپاره لکن ده چې سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ وویله دامعلومه سوه چې دده قصد اتمام د رکن دی» ط، فقد قال السید دغه سړی چې په رکوع یا سجده کی بی اودسه سوی وو. چې اودس یه تازه کړی نو هغه رکوع یا سجده دی را اوګرځوي. او کی نه را اوګرځول لمونځ یه فاسد سُو په اتفاق» د امام محمدؒ په نیز په دی سبب چې پوره والی دیو رکن چې دلته رکوع یا سجده ده د هغه رکن څخه په انتقال سره کیږی. او دلته خو انتقال داوداسه د پاره دی د رکن د پوره کیدو د پاره نه دی. او په نیز د ابو یوسفؒ چې قومه او جلسه دده په نیز فرض ده نو ددي سړي څخه خو قومه د رکوع څخه. او یا جلسه پسله سجدی پاته سوه.

**فائده**: که څه هم سړی په لمانځه کی پسکی اچولی وي. لکن چې په اوداسه پسې ځي لاس دی پر پزه ونسی یعنی چې خلګو ته دا په خیال ورسی چې پزه یې وینی سوه. او پسکی چې عیب ګڼل کیدل پټه سی. د بعض حیلو د جواز دلیل هم دغه حیله ده، م، ط، در، قال المصنفؒ

**وَخُرُوْجُهُ مِنَ الْمَسْجِدِ بِظَنِّ الْحَدَثِ وَمُجَاوَزَتِهِ الصُّفُوْفَ فِيْ غَيْرِهِ بِظَنِّهِ** اوداغه رنګه لمونځ فاسده وي وتل د لمونځ کوونکی د مسجد څخه په ګمان د بی اودسیا. او یا تر صفو تیریدل یعنی تر دوه صفه بالا په غیر کی د مسجد یعنی چې جماعت په صحراء کښی وو بیا هم په ګمان د حدث» مثلا په لمانځه کی د سړي تر پزه اوبه راغلی دده خیال دا سو چې دا وینی دي. نو په اوداسه پسی روان سو نو کی لمونځ په مسجد کی [illegible]

مسجد لانه وو وتلی اوکی په صحرا کی جماعت کاوه، تر درو صفونو وو تیر سوی ور ته معلومه سوه چې هغه زما دېزی او به وی وینه نه وه لمونځ یې نه دی فاسد. بلکه خپل لمونځ دی پوره کړي اوکه تر مسجد ووتی یا تر درو صفو تیر سو لمونځ یې فاسد سو: که څه هم هغه گمان غلط ور ته ثابت سی دسره دې لمونځ ر اوگرځوی،،

## مسائل شتّٰی

۱ بې اودسه سړي چې ځاه ته ورغلی وه ته رواده چې د ځاه څخه په سولاغه اوبه را وکاږی که څه هم ډېر وخت په کښنی تیر سی. ۲ که د ځاه سولاغه خیري وه او اوبه نه پکښې را ختلی او ده سره ستن او سپن سی وو گندل یه روادی. ۳ اوکه ځاه په خونه کی وو دروازه یې خلاصولای سی. یعنی لمونځ یې نه فاسدېږی ۴ داوداسه سنن لکه دخولی په یوله دری واره، دېزی دری واره دمخ دری واره دمخ، دلاسو، دپښو دری دری واره ور ته روادی علی الاصح ۵ اودغه رنگه وسړي ته رواده چې جامه خپله دغه نجاست څخه پری مینځی لکه وینې ۶ اومرداری دځان لیری کول ور ته روادی. ۷ په حکم کی دمسجد دی دوتلو په صورت سرای او یا خونه او یا عیدگاه مسجد ۸ که دغه بې اودسه د صفو په خوا نه وتی. بلکه دمخ وخواته په اودسه پسی روان سو. نو د امام تر برابر تیریده معتبر دئ. ۹ اوکی یوائی لمونځ کاوه په صحرا کی نو کی ستره وه ستری ته اعتبار دی او کی ستره نه وه ځای ته د سجدی یه اعتبار دی ده طرفه څخه

۱۰ که چا واقعی اودس مات سو. نو اودس یې تازه کړ او امام یه ده لا نځه څخه نه وو فارغ سوی دی هلته د اوداسه پر ځای پر لا نځه ودرید ی لمونځ ئی فاسد دئ. ۱۱ کی امام د لانځه څخه فارغ سوی وو. نو دغه خونبه ده که هوری لمونځ کوی اوکه مسجد ته لامام راځي واختلفوا فی الافضل، ۱۲ که پراقرب ځا سولاغه نه وه او پر ابعد وه نو داعذر دی لیری ځاته روادی چې ولاړسي. ۱۳ که دغه سړي چې بې اودسه سوی دی وبل سړي تی اشاره وکړه چې ماته او به راکړه لمونځ یې فاسد سو. ۱۴ که دغه سړي د جیبه روپۍ را اوکښي او او به خرڅونکی





ته ئې ورکړي لمونځ فاسید سو. قال المصنف

وانصرافه ظانا انه غیر متوضئ
او دغه رنګه لمونځ فاسد سوی چې لمونځ کوونکی دځای څخه د لانځه وګرځې په ګمان د دې چې زه اودس نه لرم که څه هم وروسته ور ته ښکاره سی چې اودس لرم،،

اوان مدة مسحه انقضت اوان علیه
او یا دی ګمان وی چې مده د مسح دموزی زما تیره سوی ده. که څه وروسته ور ښکاره سی چې نه ده تیره سوی. او یا یه ګمان د دې

فائتة اوان علیه نجاسة
وی چې پر ما باندی نجاسته که څه هم په دغو څلورو مسئلو کی د مسجد څخه

وان لم یخرج من المسجد
نه وي وتلی. د دی څلورو مسئلو او سبق الحدث فرق دادئ چې په دې مسئلو کی خو ده انصراف د پاره د ترک ده لانځه دی نه د پاره د اصلاح د لانځه لکه په سبق الحدث کی. **پوهسه**: چې د سبق الحدث څخه مراد دادی چې په قصد سره ځان نه کی بې اودسه. نو کی په قصد ئې سکی واچول مثلا یا بناء نه ده پر صحیح. بلکه سره څخه به لمونځ راګرځوی. او په لعض عبارتو د کتابو چې داسی راغلی دی چې حدث سماوی وي. مراد دادی چې په دغه حدث کی د بنده اختیار نه وي کذا فی البحر. نو د سبق او د سماوی ترجمه یوه ده،،

**فائده**: بناء پر د مخه لانځه په صحابه ووکی مروی. عن هؤلاء السادات رضی الله تعالٰی عنهم ۱ عائشة و۲ ابن عباس ۳ وابی بکر ۴ وعمر ۵ وعلی ۶ وابن مسعود ۷ وسلمان الفارسی ۸ وابن عمر، ومن التابعین: عن ۱ علقمة، و۲ طاؤس، و۳ سالم بن عبد الله ۴ وسعید بن جبیر ۵ والشعبی، و۶ ابراهیم النخعی و۷ عطاء و۸ مکحول وسعید بن المسیب رضی الله تعالٰی عنهم اجمعین وکفٰی بهم قدوة، کذا فی الفتح. ط **پوهسه** چې امام شافعیؒ د بناء قائل نه دی په هیڅ شی کښی د تیرو سوو مسئلو.

**فائده** مولوی محمد اعزاز علیؒ په ص۸۳ حاشیه ۱۲ کی داسی وائی چی په ټولو نسخو کی د نور الایضاح پسله دغه قوله: وَاِن لم یخرج آه داسی عبارت راغلی دی چی افضل استیناف دی یعنی چی لمونځ دی دسره څخه راوګرځوی. خروجًا من الخلاف تا چی دخلافه ووزی. دی وائی چی دا عبارت هیڅ حاصل او معنا نه لري. ولی چی مصنفؒ خو په ټولو مذکوره مسئلو کی حکم دفساد د لمانځه وکړي. نو چی لمونځ فاسد سي. را ګرځول یه فرض دی نو دا فضیلت څه معنا ده. دمخه یاته کړېده چی شاید دغه عبارت به د شارحؒ څخه واقع سوی وي نو ناسخینو سهوًا په نور الایضاح کی نوشته کړي دی انتهی.

زه وایم وائی چه دغه عبارت به د شارح لخوا څخه په مقتضی دکلام دمولانا المذکور صحیح نه دی. ولی چی د افضل معنا خو دا ده چی بناء پر تیر سوی لمانځه خو هم روا ده لکن سنه کار استیناف دی نو شارح خو هم حکم دفساد د لمانځه په دغو مسئلو کی منلی دی. نو استیناف خو فرض دی بناء روا نه ده، و لعل المولوی اعزاز علیؒ لم یرجع الی عبارة الطحطاویؒ، حیث قال تحت قوله والافضل الاستیناف آه. ای مطلقًا دمطلقًا معنا دا ده چی که لمونځ فاسد سوی وی اوکه نه وي. لکه په بعض مسائلو کی دسبق الحدث چی لمونځ نه په فاسدیدی. نو معنا دا ده چی افضل دسره د لمانځه را ګرځول دی که څه هم په لعض عوارضو کی فاسد نه وي. قال تحرزًا عن شبهة الخلاف ای د پاره دساتنی د لمانځه د شبهة څخه د اختلاف د لعض اماما نو ولی چی حضرت امام شافعیؒ بناء مطلقًا روا نه بولي.

لکن دا فضیلت د استیناف په منفرد لمونځ کوونکی دی اوکه په جماعت کی دا عوارض بعض پیښ سو چی لمونځ یه نه فاسده وه نو استیناف افضل نه دی بلکه بناء افضل ده تا چی دجماعت ثواب د لاسه ونه وزي. اوکه په صورت کی داستیناف یه بل جماعت پیدا کولای سوای نو هم استیناف افضل دی. قال فی السراج قال المصنفؒ فی المراقی وعملاً بالاجماع. یعنی چی عمل وکړه سی په امر مجمع علیه سره د ټولو ائمهؒ ولی چی لمونځ د سره را ګرځوی هغه لمونځ خو په اتفاق روا دی. اوکه بناء پر د مخه لمانځه وکړي هغه خو عمل یوازی په قول د حنفیانو دی اذ قد عرفت ان الشافعیؒ لایجوز البناء، ولاریب ان العمل بالامر المجمع علیه اولی من العمل





بالامر المختلف فیه»

زه وایم وائی چی مذکوره عبارت چی پردغه ډول لکه ط چی توضیح وکړه صحیح کیدای سوای نو ده ولی پر ټولو نسخو د نور الایضاح د غلط حکم کاوه. او دا دونه جرئت یه ولی کاوه اوسره د دی چی د دغه عبارت خو ښه توضیح د ط خو په شرح کی هم نه وو صحیح: وَاللّٰهُ اَعْلَم بِالصَّوَاب» قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَفَتْحُهٗ عَلٰى غَيْرِ اِمَامِهٖ** اودغه رنګه د لمونځ کوونکی لمونځ فاسده وي فتح د ده وغیر ته دامام د ده، زیلعیؒ وائی که دغه فتح وهغه چا ته ورکړي چی په لمانځه کی نه وي دغه سی قرآن شریف تلاوت کوی، او یا لمونځ یوازی کوی خطا وزی او لمونځ کوونکی فتحه ورکوی. او فتحه دامام یا منفرد وهر چا ته چی وي دا ټوله مفسد د لمانځه دي. مګر هغه وخت کی تلاوت د قرآن غرض وو. فتح یه نه وه غرض، انتهی کذا قال مولنا مسکینؒ:

**مسئله:** فتح د مراهق لکه د بالغ ده کی غیر ته دامام ورکړه لمونځ یه فاسد دی.

**مسئله:** دامام لمونځ فاسده وی سره د مقتدی یا نو که امام اخسته فتح د هغه چا چی ده سره په لمانځه کی نه وو.

**مسئله:** که امام په قرائت کی بند سو او مقتدی د خارج الصلوٰة سړي څخه هغه اٰیت واوریدی او امام ته یه فتحه ورکړه (امام) هم اخسته یه وکړه ټولو لمونځ فاسد سو: لانه تلقین من خارج وهو مفسد البتہ» ط، ب، در.

**فائده:** فتحه وامام ته اګرچه دمقتدی دخوا تعلیم دی لکن دغه روا ده استحسانًا ولی په حدیث شریف کی راغلی دی چی آنحضرت صلی اللّٰهُ علیه وسلم په یوه لمانځه کی د سورة المؤمنین تلاوت کاوه. یوه کلمه ځندی پا ته سوه. چون نبی علیه الصلوٰة والسلام دلمانځه څخه فارغه سو نو داسی وویله اَلَمْ یَکُنْ فِیکُمْ اُبَیٌ عنه» آیا په تاسو کی ابیؓ چی یو صحابی وو دانه وو! قَالُوا بَلٰی» خلګو وویل چی ابیؓ خو حاضر وو» فَقَالَ لَه هَلَّا فَتَحْتَ عَلَیَّ: نو علیه الصلوٰة والسلام وابیؓ ته وویل چی ولی دی ما ته فتحه نه کړه. قَالَ ظَنَنْتُ اَنَّهَا نُسِخَتْ» ابیؓ ورته وویل چی زما ګمان دا وو چی هغه کلمه چی تا پریښوله دا به منسوخ

عه وهو سید القراء والحفاظ ۱۲ منه

سوی وي. فَقَالَ لَوْ نُسِخَتْ لَأَعْلَمْتُكُمْ»، کہ دا کلمہ منسُوخہ سوی وای ما تاسی خبرولئ
او دحضرت عَلِیؓ نہ روایت دی چې معنا یہ دادہ چې ستا نہ طلب دفتحې وکړی امام
نوفتح ورکړه. **پوښتنه** چې مراد د طلب نہ طلب قولی نہ دیٔ بلکہ طلب حالی دیٔ
یعنی چې امام یہ پوځای کی ودرېږی، نو داغہ طلب دفتحې دی دمقتدیانو نہ.
**مسئله**: مقتدی چې فتحہ ورکوی نیت دفتحې بہ وي، او نیت دَتلاوة القرآن بہ
نہ کوی. ولې چې مقتدی دَتلاوت نہ ممنوع دی او پہ فتح کی ورتہ رخصت دیٔ
**مسئله** مقتدی دی تلوار پہ فتح کی نہ کوی. ولې شاید امام تہ بہ خپله ور یاد سی
نو فتحہ ددہ لپ فائدې دہ. او د اتلوار کول مکروہ دی ط» **مسئله** امام دی هم
مقتدیان و فتح تہ نہ مجبوروی چې پتہ خولہ ودرېږی. او یاد مخنی ایت مکرروی
دا د مکروهاتو نہ دامام دہ. بلکہ کی فرضی قدر قرئت وئیلی وُو نو دی یا د رکوع تہ
ولاړ سی. او یا دِ بل ایت تہ نقل سی. **پوښتنه**: پوښتنہ! کہ امام قدر مفروض
قرئت وئیلی وو خو تر قرائت مستحب کم وُو. نو رکوع تہ تګ یہ بنہ دی او کہ بل ایت تہ
تہ نقل بنہ دی چې قدر مستحب پوره سی. **جواب** بعض فقهاء وائی چې رکوع
تہ تګ یہ بنہ دی لکن ظاهر الروایت دادی چې قدر مُستحب دی پوره کړی پہ انتقال سره
و بل ایت تہ» قَالَ الْمُصَنِّفُ فِی الْمَرَاقِی لِاِصْلَاحِ صَلَاتِهِمَا، یعنی کہ امام ساکت سی او یا
هغہ د مخہ ایت مکرر وي او خولہ فتحہ ورنہ کړی نبایدچې د ملا پہ خولہ داسی کلمہ
ورنسی چې لمونځ یہ پہ فاسد سی. نو د مقتدی لمونځ بہ هم فاسد سی. نو یا رکوع
کول او یا بل ایت تہ نقل ددواړو فائده دہ: قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَالتَّكْبِيرُ بِنِيَّةِ لِصَلٰوةٍ غَيْرِ صَلٰوتِهِ

او غر رنګہ لمونځ فاسده وی چې لمونځ کوونکی.
اَللّٰهُ اَكْبَرُ ووائی پہ دے نیت چې دموجوده لمانځہ نہ بل مغایر لمانځہ کی داخلیږم»
ددی وجہ د افساد دادہ چې ددہ نیت خو داغہ چې دا موجوده لمونځ دی پاتروی بل
لمونځ کوم، نو ددہ د نیت پر مُوافق هغہ موجوده لمونځ فاسد سُو، هغہ مانوی یہ حاصل سُو





دمثال پہ ډول یو سړی یواځی لمونځ کاوه بیا یہ اَللّٰهُ اَكْبَرُ ووایہ اقتداء پہ امام پسی
نیت وکړی. نو هغہ انفرادی لمونځ یہ فاسد سُو. او یا پہ امام پسی اقتداء کړی وه. نو بیا
یہ الله اکبر ووایہ د انفرادی لمونځ نیت یہ وکړی نو هغہ د امام سره لمونځ یہ فاسد سُو.
او یا د ماپښین لمونځ یہ کاوه چې وخت یہ پہ خیال تیر وَ غلی نو د ماز دیګر د لمانځہ نیت
یہ وکړی او اَللّٰهُ اَكْبَرُ یہ ووایہ، او یا پہ فرض لمانځہ ولاړ وو الله اکبر یہ ووایہ دَ نفلی
لمانځہ نیت یہ وکړی او یا عکس دَدغہ»
**پوښتنه**: چې قید دتکبیر یہ ددی دپاره ووایہ کی پہ زړه کښې نیت وکړی. او تلفظ
یہ پہ نیت نہ وکړی لمونځ یہ نہ دی فاسد کذا فی المنح وغایة البیان ط» او دصلوٰة پہ
قید سړی هغہ یہ خارج کړی چې پہ لمانځہ کی تکبیر ووائی او نیت د روژې وکړي.
نو لمونځ یہ نہ دی فاسد. او غیر صلوٰة فائده دادہ. چې سړی پہ لمانځہ کی الله اکبر
او نیت دعین اول لمانځہ وکړی. او دغہ رنګہ لمونځ دامام فاسدیږی کی الله اکبر ووایہ
او نیت دامامت د ښځو یہ وکړی. وباقی التفصیل فی الطحطاوی»
**مسئله** کہ یو سړی دقضائی روژې نیت کړی وو، او بیا پس لہ شروع نہ یہ نیت دبل
کړي د نفلی روژې نیت یہ وکړی. ضرر نہ لري. قَالَ الْمُصَنِّفُ فِی مَتْنِ نُورِ الْاِیضَاحِ

## اِذَا حَصَلَتْ هٰذِهِ الْمَذْكُوْرَاتُ قَبْلَ الْجُلُوْسِ الْاَخِيْرِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ

لمونځونہ یہ مذکوره صورتونو کښې هلتہ فاسدیږی چې دَغہ مذکوره مفسدات دمخہ تر اخیری ناستی پہ
پہ قدر د التحیات اه، پیښ سی نو پہ داسی صُورت کی لمونځ باطل بالاتفاق دیٔ. دا قید او شرط
دهغو ځای نہ شروع کیږی و رُؤیة المتیمم ماءً اه او د مذکوراتو نہ ټولہ دَهغہ
ځای تر اخیر پوری مراددی» مصنف پہ مراقی کی وائی کہ چیری دغہ مفسدات پسلہ قعود
پہ قدر د تشهد د مخہ تر سلام پیښ سوله نو مختاره دادہ چې لمونځ یہ صحیح سُو. ولې خروج
د لمانځہ نہ پہ صنع د مُصلی پہ صحیح مذهب واجب دی. او پہ ترک د واجب لمونځ نہ
فاسدیږی. او بعض فقهاء وائی چې لمونځ یہ فاسد دیٔ. ولې چې خروج پہ صنع د مصلی فرض دہ پہ

نیز د امام اعظمؒ او هغه په مذکوره صُورتو کی نسته. ځکه امام اعظمؒ په دی باره کی تصریح نه ده کړې. بلکه دا تخریج د امام بَردعیؒ دی،» **پُوښتـنه**: چی داخیری ناستی معنا داده چی په اخیر د لمانځه وی که څه هم د ځنځه بله ناسته نه لري. لکه په دوه رکعت لمانځه کی

**پـوښـتـنه**: چی خروج په صنع د لمونځ کوونکی په نیز د یا رانو فرض نه دی. ولی که فرض وای نو بائید چی په ثوابی کار د افرض پر ځای کیدای او سَره د دی چی فقهاءؒ وائی چی په حدث عمدا سره هم د او ظیفه پر ځای کیږی. قَـالَ الـمُصَنِّفُ

## وَيُفْسِدُهَا اَيْضًا مَدُّ الْهَمْزَةِ فِي التَّكْبِيْرِ

او دغه رنګه لمونځ فاسده وی مد ورکول همزه

ته د الله یا او همزه تر د اکبر» ط د ن ځکه نقل کړی دی که چیری مصلی همزه د الله په مد سره ووائی او یا د اکبر همزه په مدسره ووائی نو که په مابین کی د لمانځه وه لمونځ به فاسد شو. او که په وخت کی د تحریمی په لمانځه کی نه دا خلیږی، او بیره د کفر سته کی استفهام یعنی پوښتنه وَه. په معراج کی وَائی چی خوف د کفر من حیث الظاهر ده. ولی چی اصلی وضع د همزه د پاره د انکار ده. او کی استفهام تقریری غرض وُو لمونځ به نه فاسدیږی،» و تبعه صاحب العنایه، ط» او کی باء د اکبر ته مد ورکړی لمونځ به نه فاسدیږی. وقیل تفسد وقال الحلبیؒ والظاهر ترجیح عدم الفساد»

**مسئله**: مد د هاء د لفظ د « الله» خطاء د عربیت ده او لمونځ نه په فاسدیږی»

**مسئله** مد اللام من لفظ الله سنه کار دی چی تر اندازه بالا نه وی. و حَدُّهُ» دا دی چی دو نه مبالغه دی په مد کی نه کوی چی په مابین کی د لام او هاء الف پیدا شی. او کی دغسی وکړه مکروه خو دی لکن لمونځ نه په فاسدیږی» س، ط، د، **مسئله**: که چیرته د لمونځ کوونکی په وخت کی د اداء ور ته دیدل. نو د را تکرار څخه دی پیدا سو نو کی دوه واره مکرره کړه یعنی دری را یه وَوَیلی لمونځ به فاسد سُو. ولی چی ر یا تول دوه حرفو په قرآن کی مفسد د لمانځه دی.

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما آمین — الناشر مکتبة القراءة والتجوید کوئټه





قَالَ المُصَنِّفُ

## وَقِرَاءَتُهُ مَا لَا يَحْفَظُهُ مِنْ مُصْحَفٍ

او دغه رنګه لمونځ فاسدوی قرائت دهغه آیتو چی دده بیاد نه وی د قرآن شریف ځخه، یعنی د قرآن شریف تورو ته ګوری او په خوله یه وائی **پوښتنه**: چی ظاهر الروایت څو دادی که لنډشی ووائی او که ډیر او بعض فقهاء وائی کی مقدار د الحمد لله ووایه نو بیه لمونځ فاسد دی او که تر مقدار د فاتحی کم وُو لمونځ به نه دی فـاسد»

او بعض علماء وائی چی په قدر د آیت ووائی لمونځ به فاسد دی. وهو الاظهر ح، ط، س، او په نیز د یارانو لمونځ به صحیح دی. ولی چی و یل د قرآن هم عبادت او کتل د قرآن شریف و تورو ته هم عبادت دی نو دوه عبادت سره جوت شوه. نو د فساد څه سبب دی. دلیل د عبادت والی د نظر القرآن دادی. چی په فقه شریفه کښی مسئله ده که د ځا یو سورت د قرآن مثلا بیادوی. نو چی قـرآن شریف ته ګوری وی وائی افضل دی تر بیا دویلو. قیل چی د قرآن شریف ځخه تلاوت کول په لمانځه کی مکروه دی. ولی چی په دی کی تشبیه د اهل کتابو سره نه چی هغه هم داغسی کوی. لکن قاضی خانؒ په شرح کی د جامع کبیر او بحر ائق وائی چی مطلق تشبه د اهل کتابو سره خو مکروه نه ده» ولی چی مونږ او دوی په نفس خوراك او څښنګ او کالی اغوستلو وغیره مشابهت سره لرو. بلکه حرام تشبه د دوی سره ده په هغه فعل کی چی زمونږ په دین کی بَد کار وی. لکه د دوی څریل وغیره او یا قصد د ده صرف تشبه وی د دوی سره.»

د ظاهر الروایت چی مذهب دَی د امام اعظمؒ دوه دلیله دی. یو دا چی په لمانځه کی قرآن پلاس کی نیولی او ورقی اړول، عمل کثیر دی. مفسد دی، نو دلیل پر بناء که قرآن شریف پر ځنګل خلاص پروت وی او ورقی به نه اړوی. مفسد د لمانځه نه دی» او دوهم دلیل یه دادی چی داسی کول د قرآن شریف ځخه تلقین دی. نو مثال یه داسی دی لکه بل سړی چی لمونځ کوونکی ته تلقین کوی وهذا مناف الصلوة ومفسد لها نو بناء پر دغه دلیل کی قرآن شریف پلاس کی وی او که پروت وی دی تلاوت ځنی کوی به دواړو حالو

لمونځ فاسد دی. وهو الصحيح من مذهبه وعليه الفتوى، ط، در

**مسئله:** که یو سړي بیله قرآن شریف ته کتلو قرائت نه سوای ویلای. ایا دی دد پے سړي لمونځ هم په قرائت ځنې دقرآن فاسدیږي! **جواب** هو لمونځ یې فاسدیږي نو دئ دے لمونځ بې قرائت کوي. ولې خودی امي دی ط» وفيه نظرٌ، در» او په فساد کې د امام لمانځه او د مقتدی منفرد او امام سره برابر دي. په هدایه کې د امام قید اتفاقي دی ط.

**مسئله:** که د سړي قرآن شریف یاد وو خو بیا هم ئې قرآن شریف و مخته غوړولی ایښی وو او په لمانځه کې قرائت ځني وایه لمونځ یې نه فاسدیږي. ولې چې نه حمل د قرآن سته، او نه تلقی او تعلم د قرآن ځنې بل قرائة القرآن په دی صورت منسوب دده و حفظ ته دی،» نه و تلقي من القرآن ته وهذا ظاهر وبه يفتى» در، قال المصنف:

## وَاَدَاءُ رُكْنٍ اَوْ اِمْكَانُهٗ مَعَ كَشْفِ الْعَوْرَةِ اَوْمَعَ نَجَاسَةٍ مَانِعَةٍ

او دغه رنګه لمونځ فاسده وي اداء د رکن د لمانځه لکه رکوع په مراعات د سنتو چې درې تسبیحاتی دئ. او دغه رنګه یې فاسده وي امکان د اداء د رکن یعنی که څه هم په ضمن کې د رکن طویل وي لکه ولاړه چې په ولاړه کې د درو تسبیحاتو د رکوع په قدر وي سره د کشف او لڅوالی د عورت او یا سره د نجاسته چې مانع د لمانځه وي. لکه قدر د درهم په نجاست غلیظه کې او یا ربع د ثوب په نجاست خفیفه کې که څه هم سهواً وي.

**پوهه سه:** چې مصنف اداء د رکن شرط کړه ولې که مصلي په مجرد وقوع د نجاست هغه دفع کړي لکه چې د مصلي پر لنګوټه مثلاً نجاست ولویدی ده دستي هغه ایسته کړي لمونځ یې نه دی فاسد» او یا باد دده عورت ور لغ کړي ده دستي پټ کړي لمونځ یې نه دی فاسد» قال الامام الطحطاوي چې ډیر کشف د عورة چې د ربع د عضو عورت یا بالا په اندازه وي. په ډیره زمانه کې چې په قدر د اداء د رکن دي یا بالا مفسد دئ، د لمانځه. او که لږ کشف عورت چې تر ربع کم وي. په لږ زمانه کې چې په اندازه د رکن نه وي. مفسد د لمانځه نه دئ. او دغه رنګ ډیر کشف عورت لکن په لږ زمانه لکه چې





باد را والوزي سرې لنګ وهلی وي باد یې کونه ور لغړ کړي منګر مصلي یې سمدستي پټه کړي. لمونځ یې نه دی فاسد» او دغه رنګه لمونځ نه فاسده وي کشف قلیل که څه هم په ډیره زمانه کښې قال والمراد بكشف العورة ما يعم كشف ربع العضو منها. **پوهه سه** چې په نجاست کې هم هغه فوق الذکر خلور صورتونه متصور دي فتفكر فيها. قال المصنف

## وَمُسَابَقَةُ الْمُقْتَدِيْ بِرُكْنٍ لَمْ يُشَارِكْهُ فِيْهِ اِمَامُهٗ

او دغه رنګ لمونځ فاسده وي چې وړاندې والی وکړي مقتدي تر امام په یوه رکن کې چې دده سره شریك نه سي امام په هغه رکن کې مثلاً مقتدي تر امام د مخه رکوع ته ولاړی او د امام تر راوړتلو د مخه یې سر راپورته کړي لمونځ یې فاسد سو. او که مقتدي خو وړاندې والی وکړي لکن چې دی په رکوع وو امام هم رکوع ته ورسیدی نو دغسې مسابقت خو مکروه دی لکن لمونځ یې نه دی فاسد. وعلى هذا فقس حال السجود،

**مسئله** مقتدي خو مسابقت وکړي او سر یې هم راپورته کړي. لکن چې امام رکوع ته ولاړی دی هم رکوع ته بیرته ولاړی. او یا تر امام وروسته یې بیا رکوع وکړه لمونځ خو یې نه دی فاسد لکن دا کار کول مکروه دی کما لا يخفى» **مسئله** که دغه سړي چې مسابقت تر امام یې کړي وو په رکوع یا په سجده کې لکن هغه رکوع یا سجده یې په لمانځه کې د ننه راوه ګرځوله بلکه د امام سره سلام وګرځاوه لمونځ یې فاسد سو. ولې چې ده قصداً سلام وګرځاوه په ګمان د دی چې زما لمونځ پوره سو. سره د دی چې پر ده یو رکن د لمانځه یعنی رکوع یا سجده پاتې ده.

**مسئله:** یو مقتدي چې په اول کې د لمانځه د امام سره شریك وو په ټولو رکعتو کې تر امام مسابقت وکړي یعنی د مخه تر امام به رکوع یا سجدی ته تلی او بیرته بې تر ورتلو امام سر را پورته کاوه. نو دی به د امام سره سلام نه ګرځوي او ده په ذمه کې اول رکعت پاتې دئ. ولې چې ده متابعت د امام ونه کړی او د دوهم رکعت رکوع او سجده قضاء د اول رکعت د رکوع او سجدی ده او ده د دریم رکعت رکوع او سجده قضاء د دوهم

رکعت د رکوع او سجدې ده. او د څلورم رکعت رکوع او سجده قضاء د دریم رکعت. نو دی لاحق دی. او دی به یو رکعت قضاء به بیل قرائت راوړی پسله سلام څخه دامام کذا نقل المصؒ فی المراقی عن المبسوط وقال وتمام تفریعه فی الاصل وقد بینه الطحطاوی ص۲۴۷ فانظر هنالک،

قال المصنفؒ **وَمُتَابَعَةُ الْاِمَامِ فِيْ سُجُوْدِ السَّهْوِ لِلْمَسْبُوْقِ** او د غه رنګه لمونځ فاسده وي چې متابعت وکړي دامام په سجده سهوه کې هغه مقتدي چې د هغه څخه اول د لمانځه تیر شوي چې دی سړي ته مسبوق وائي.

**پوښتنه**: که امام سجده سهوه متصل په سلام پسې کوله خو بیا مسبوق به متابعت لازم دی. د متن د مسئلې صورت دا دی چې پر امام خو سجده سهوه لازمه وه لکن دامام هیره وه نو په اخیره ناسته کې چې امام په قدر د تشهد کښېناستی مسبوق د مخه تر سلام دامام او یا وروسته تر سلام دامام خپل قضائي لمانځه ته ولاړ شو، او بیاد امام سجده سهوه ور پیاد شوه او سجده به کوله نو که مسبوق د خپل رکعت د قضائي د پاره به سجده نه وکړي خو متابعت دامام په سجده سهوه کښې پر لازم دی. او پسله سلامه دامام بیرته خپل قضائي لمانځه ته ولاړ شي.

او که مسبوق د خپل قضائي رکعت د پاره سجده وکړه وروسته امام ته سجده ور پیاد شوه او سجده سهوه به کوله نو مسبوق دی متابعت نه کوي کې متابعت دامام په سجده سهوه کښې وکړي لمونځ د مسبوق فاسد شو. ولې چې دا متابعت به داسې حال کې وکړي چې د ده یوازې والی په سبب د سجده سهوه یعنې چې رکعت به پوره کړي. او پر ده باندې د خپل انفراد تعقیب واجب شو. نو په داسې حال متابعت کول مفسد د لمانځه دی. **مسئله**: که مسبوق په هغه صورت کې چې متابعت دامام پر ده واجب وُو په سجده سهوه کې مګر د متابعت ونه کړي بلکه خپل قضائي لمونځ ته ادامه ورکړه لمونځ یې نه دی فاسد، ولې سجده سهوه خو واجب وه. او ده په واجب متابعت دامام پریښو او په ترک د واجب خو لمونځ نه فاسدېږي. لکن استحساناً پر ده لازمه ده چې پس له فراغه څخه د خپل لمانځه څخه دې سجده سهوه وکړي.





**مسئله**: په سوق کې د صورت د مسئلې مونږ داسې ووئیله چې امام په قدر د تشهد ولې که مسبوق د څخه تر هغه ځنډی ولاړ پاتې قضائي ته داسې کول و مسبوق کښېنلی وو، ولې چې پر امام د ده فرض عمل پاته دی. چې قعود په قدر د تشهد ده، نو دی ته روانه دی. او که مسبوق و داسې عمل ته ادامه ورکړه لمونځ یې په داسې حال کې ځان نسې منفرد کولای. فاسد شو. **مسئله**: که مسبوق متابعت دامام وکړي په سجده سهوه کې او ده خپل لمونځ پوره کې وروسته د معلوم شوه چې پر امام سجده سهوه نه وه نا حقه یې سجده سهوه وکړه. نو د مسبوق لمونځ روا دی په نیزد متاخرینو وعلیه الفتوی. ط،

**سوال**: د اخر نګ صورت به وي چې امام په ځان سجده سهوه لازمه بولي او هغه هم وروسته بیا ور معلومیږي چې سجده سهوه نه وه **جواب**: د بعض امامانو د اخیال دی چې که امام ته چا صرف فتحه ورکړه که څه هم د ه قرار نه وي نیولی پر ده سجده کول واجب دی نو یو امام کړد اعنسی وکړه وروسته یو عالم ورته ووئیل چې په دغه قدر سهوه خو پرتا سجده سهوه نه وه، قال المصنفؒ:

**وَعَدَمُ اِعَادَةِ الْجُلُوْسِ الْاَخِيْرِ بَعْدَ اَدَاءِ سَجْدَةٍ صُلْبِيَّةٍ تَذَكَّرَهَا بَعْدَ الْجُلُوْسِ** او د غه رنګه لمونځ فاسده وي نه اګر څوک د اخیرې ناستې پسله کولو څخه د سجدې اصلي د لمانځه چې ده پرې ایښې وه. او ور پیاد شوه پسله اخیرې ناستې صورت د مسئلې دا دی چې د یوه لمونځ کوونکي څخه یوه سجده د یوه رکعت د رکعتو څخه سهوًا پاته شوې وه. نو دی چې په اخیره ناسته کې په قدر د تشهد کښېناستی هغه سجده اصلي ور پیاد شوه نو هغه سجده یې وکړه. او بیا یې اخیره ناسته نه راوګرځول لمونځ یې فاسد شو. ولې هغه د څخه ناسته چې ده وکړه هغه اخیره ناسته نه ده. ولې چې اخیره ناسته خو هغه بولي چې تر تمام د ټولو ارکانو د لمانځه وروسته یې وکړي دلته خو د دې سړي ارکان د لمانځه نه دي خلاص شوي، ولې چې پر ده سجده اصلیه پاته ده نو لمونځ د ده هغه وخت صحیح کیږي چې پسله سجده اصلي څخه اخیره ناسته بیرته راوګرځوي لکن سجده به کوي.

قَالَ المصنفؒ **وَعَدَمُ إِعَادَةِ رُكْنٍ أَدَّاهُ نَائِمًا** اود غږ نکه لمونځ فاسده وي نه اګرڅول دهغه رکن چې لمونځ کوونکی په حال کی دخوب اداء کړی وی. دلیل یې دادی چې د صحت دا داء دارکانو د پاره ویښوالی شرط دی

## وَقَهْقَهَةُ إِمَامِ الْمَسْبُوقِ وَحَدَثُهُ الْعَمَدُ بَعْدَ الْجُلُوسِ الْأَخِيرِ

اود غږ نکه لمونځ فاسده وي په زوره خندل دامام دمسبوق سړی یعنی چې اول د لمانځه څندی تیرسوی وي. اویادغه امام پُسکی، یا ګوز، واچوی په قصد سره پسله اخیری ناستی نوپه دی صورت کی دامام لمونځ خو صحیح دی. ولی چې دَدَه خوارکان د لمانځه پوره سوه او منافی دَلمانځه چې قهقهه ده یاحدث عمد دی په اخیرکی پیداسو. او پرامام بیله سلام چې هغه سنت یاواجب دی پاته دی او دهغه په ترک خو لمونځ نه فاسدیږي لکن د مسبوق لمونځ فاسدسُو چې مُفسد دده د لمانځه په مابین کی پیداسُو.

**فَائِدَه**: مصنفؒ وویل بَعد الجلوس الاخیر. ولی که حدث عمد ده مخه تر اخیری ناستی پیښ سی دَامام او ټولو مقتدیانو لمونځ فاسِدسُو. قَالَ المُصنفؒ:

## وَالسَّلَامُ عَلَى رَأْسِ رَكْعَتَيْنِ ظَانًّا أَنَّهُ مُسَافِرٌ أَوْ أَنَّهَا الْجُمُعَةُ

اوسلام ګرځول پر سرد دوو رکعتو (یعنی دما پښام لمونځ یا څلور رکعتیز لمونځ دمقیم) لمونځ فاسده وي. دده داخیال وو چې زه مسافر یم اوسره ددی چې دی مقیم وو، او یا ګمان ددی وی چې دا دجمعې لمونځ دی او هغه دما پښین لمونځ وو، قَال المُصنفؒ:

## أَوْ أَنَّهَا التَّرَاوِيحُ وَهِيَ الْعِشَاءُ أَوْ كَانَ قَرِيبُ الْعَهْدِ بِالْإِسْلَامِ

او یا یې ګمان ددې وی چې امام تراویح کوی او یا زه چې لمونځ کوم دا تراویح دي. او هغه دَماختن لمونځ کاوه او یا دې سړی تازه ایمان راوړی وُو نو دده **فَظَنَّ الْفَرْضَ رَكْعَتَيْنِ** ګمان داوو چې ټوله لمونځونه دوه دوه رکعته دي.





بیدی ټولو صُورتو کی دمُصلی لمونځ فاسِد سُو. ولی چې ده عمدًا دپاره دقطع د لمانځه سلام وګرځاوه تروخت هم دَمخه،

**مَسْئَلَه** که سړي پر دوه رکعت سلام وګرځاوه دده خیال داوو چې څلور رکعته ما پوره کړه لمونځ یې نه دی فاسِد» س، ط، امام طحطاویؒ زیاته کړیده چې دمفسداتو څخه د لمانځه دی چې مصلی په لمانځه کی په زړه کی مُرتد سی. وَالعیاذ بالله من ذالك» اودَغه نکه لمونځ فاسده وي هغه عمَل په لمانځه کی چې یا اودس یا غُسل واجبوي په قصد سره او نغه نکه لمونځ فاسده وي. پرېښوول دیوه رکن د لمانځه بیله قضاء راوړو څخه نقلاعن النهر»

**یُوه سَئَله**: الحمد لله والصلوٰة علیٰ عباده الذین اصطفیٰ: چې حضرت امام طحطاویؒ ددی فصل په لمن کی مَسْئله دزلة القاري هم راوړی ده چې هغه یو ډیر مهمه مَسْئله خصوصًا دملا امامانو دپاره. ولی چې دوی ذمه واره دَصحت د لمانځه دمقتدیانو دی. نوکه دی لمونځ فاسِد کړي نو دَ ټولو مقتدیانو د لمانځه ګناه دده پر غاړه ده. او په جامعه کی دپښتنو داسی امامان ډیر دی، چې لوی جامع مسجد یې په غاړه کی وی. او قرآن مبارك په پښتو حروفو وائي. یعنی مثلاً ده ف عربي عربي اود، پ، فارسي په تلفظ کی فرق نه کوي. او یا د سین او صاد او ث په تلفظ کی فرق نه کوی. او یا د شین عربي اود ښین پښتو په فرق نه پوهیږي. او یا د عین او همزه فرق نه سی کولای. اود ظ، او ز، او ض، په تلفظ کی فرق نه سی کولای، اود، ذ» او ز، خو بیخي فرق نه کوي. او یوه کلمه په بله کلمه بدله وي او په تغییر د معنا یې هم نه پوهیږي حاصل دا چې مفسد د لمانځه په قرائت کی نه ور معلومیږي. ولی چې دوی په ترجمه د قرآن نه پوهیږي نو دی کبله ددی مَسْئلې راوړه په دی فصل کی دمفسداتو د لمانځه ډیره ښه او فائده مندې ده.

نو ځکه به دخدای جل جلاله په توفیق دد ې مسئلې ښه تحقیق به پښتو وکړم

ان شاء الله العزیز زه فضل الحق حقاني

به دړته په ښکلی خط دړته ولیکم

خوستاسو دعا محتاج یم

# مسئله دزلة القاري

قال الطحطاويؒ چې بعض خلکو دا ګمان کړی دی چې مسئله د زلة القاري یواسی قانون نلري چې پر هغه قانون دی دا مسئله بناء سي. لکن دا توهم او ګمان غلط دی بلکه کی دا مسئله په حقیقت کی بناء پر داسی قواعدو دی چې هغه ناشی او پیدا سوی دی دا اختلاف دامامانو مذهبؒ. نو غوږ ونیسه (وفکر کوه)، چې اصل په دی مسئله کی په نیزد امام اعظمؒ او امام محمدؒ رحمهما الله تعالیٰ، تغیر د معنا د قرآن داسی تغیر چې ډیر وي. او هغه خبره چې صاحب المضمرات کړیده. که یو سړی په لمانځه کی یوه کلمه یا ایة په خطاء فاحش سره ووایه. لکن بیرته یې صحیح را وګرځوله. لمونځ یې روادی آه. دا خبره ابوالسعود رد کړیده. او په زلت سره د قاري تغیر فاحش د معنیٰ نه راځي. نو لمونځ یې صحیح دی عندهما خواه دغه لفظ چې قاري په کښی خطاوتی په قرآن شریف کی بل ځای موجود وي او که نه! او په نیزد امام ابویوسفؒ اصل د دی مسئلی دا دی.

که دغه لفظ چې قاري خطاونلی ووایه مثل یې په قرآن شریف کی بل ځای موجود وو. نو لمونځ یې د دغه خطا سره نه فاسدیږی، خواه تغیر د معنا په تغیر فاحش سره راځي او که نه راځي او که دغه لفظ په قرآن شریف کی موجود نه وو لمونځ یې فاسد دی مطلقًا. او امام ابویوسفؒ و تغیر ته د اعراب اعتبار نه ورکوی اصلًا. لکن پوهسه چې دا اختلاف زمونږ دامامانوؒ په هغه خطاء کی دی چې په سهوه او نسیان خطاوزی. او کی په قصد سره غلط ووایه نو لمونځ یې فاسد دی مطلقا په اتفاق دائمه ثلاثه وو.

**پوهسه**: چې مسئله د زلة القاري پر څلور وجهی ده. ولی دغه کلمه چې قاري په خطا کی بیل قصده ووییله. یا به موجوده په قرآن کی وي او یا به نه وي او پر هر تقدیر یا به معنا ته تغیر فاحش رسوي یا نه. ۲ چې په ۲ کی ضرب کی څلور حاصل راځي. فالاول: داسی یې مثال دی چې قاري ووائی و ابلیس وذا الکفل. مکان قوله تعالیٰ: وَاِدْرِیْسَ وَذَا الْکِفْلِ، والثانی. د دوهم مثال دا دی چې قاري ووائی: قُلْ هُوَ اللّٰهُ وَاحِدٌ، په ځای کی د قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ





والثالث او دریم مثال یې دا دی چې قاري ووائی: هٰذَا الْغُبَارُ، پر ځای د، هٰذَا الْغُرَابُ او یا ووائی: یَوْمَ تُبْلَی السَّرَائِلُ» په لام سره په ځای کی د دی لفظ قرآنی، یَوْمَ تُبْلَی السَّرَائِرُ. والرابع، او د څلرم مثال دا دی چې قاري ووائی، قِیَامِیْنَ، په ځای کی د قَوَّامِیْنَ، چې لفظ قرآنی دی. نو په اول مثال تغیر فاحش خو سته. لکن لفظ د اِبْلِیس، په قرآن شریف کی سته. او په دوهم مثال تغیر فاحش خو نسته، لفظ د واحد په قرآن کی هم سته، او په دریم مثال کی هم تغیر فاحش سته. او لفظ د غبار په قرآن کی هم نسته، او په څلرم مثال کی لفظ د قِیَامِیْن، خو په قرآن کی نسته. لکن تغیر فاحش د معنا نه لازمیږی.

پس په مثال اول کی په نیزد امام اعظمؒ او امام محمدؒ لمونځ فاسید دی. ولی که څه هم لفظ د ابلیس په قرآن کی موجود دی. لکن په مثال مذکور کی خطاء فاحش لازم راځي کما لا یخفیٰ. او په نیزد امام ابویوسفؒ لمونځ نه دی فاسید. او په مثال دوهم کی لمونځ په نیزد طرفینوؒ نه فاسدیږي. ولی چې خطاء فاحش نه لازمیږی. او په نیزد امام ابویوسفؒ لمونځ فاسد نه دی. ولی چې لفظ د واحد په قرآن کی راغلی دی. او په دریم مثال کی هم تغیر فاحش لازمیږی او هم لفظ د سرائل په قرآن کی نسته نو لمونځ په اتفاق فاسد دی. او په څلرم مثال کی که څه هم لفظ قیامین په قرآن کی دی نه راغلی. لکن تغیر فاحش نسته. نو په نیزد طرفینوؒ لمونځ فاسد نه دی او په نیزد امام ابویوسفؒ لمونځ فاسد دی. ولی چې په قرآن دا لفظ نه دی راغلی»

والحاصل: ان المثال الاول وامثاله مختلف فیها فسادًا عند الطرفین لفحش الخطاء وجوازًا عند ابی یوسفؒ لورود ابلیس فی القرآن. والمثال الثانی وامثاله متفق علیها جوازًا لعدم فحش الخطاء عند ابی حنیفةؒ ومحمدؒ. ولورود لفظ واحد فی القرآن، والمثال الثالث وامثاله متفق علیها فسادًا. اما عند الطرفینؒ فلفحش الخطاء. واما عند ابی یوسفؒ فلعدم ورود البناء فی القرآن» او دغه رنګه په لفظ کی د سرائل په ځای کی د سرائر هم فحش خطاء سته او لفظ د سرائل په قرآن کی هم نسته. والمثال الرابع وامثاله مختلف فیها عند

الطرفین جوازًا لعدم فحش الخطاء وفسادًا عند ابی یوسف لعدم ورود لفظ قیامین والقرآن

**درویش وائی.** چې د مذکوره شپانود مثالونو نورمثالونه د اتفاق اواختلاف بین الطرفین وابی یوسف په قرآن عظیم الشان کې ولټوی، مشت نمونۀ خروار،

**فائده:** د ځینو وئیله چې امام ابویوسف و تغیرته اعراب اعتبار نه ورکوی. امام طحطاوی وائې چې دغه رنگه امام ابویوسف و تخفیف ته د مشدد لفظ اویا و تشدید د مخفف توری هم اعتبار نه ورکوي. درویش وائي چې علامه شامی د فتاوی بزازیه ځخه داسی نقل کړی چې که په تخفیف کی د مشدد که و معنا ته تغیر نه رسیدی. نحو قُتِّلُوا تَقتِیلًا، په تخفیف د تاء په اتفاق لمونځ نه په فاسدیږي اوکی معنا ته تغیر سیدی. نحو بِرَبِّ النّاسِ په تخفیف د باء. اویا ان النفس لامارة بالسوء په تخفیف د میم اختلفوا فیه فالعامة علی انه یُفسد،،

او په فتح القدیر کی وائی چې پریښول د مد یاد تشدید لکه خطاء فی الاعراب ده. کرخه هم فقهاء پردې دي چې که معنا ته تغیر سیدی لمونځ په فاسدیږی لکه اِیَّاكَ نَعبُدُ، په تخفیف دیاء "اِیَاكَ"، چې اِیَا لمرته وائي. لکن اصح داده چې چې نه په فاسدیږی. ولې چې اِیَا مخفف لغت قلیل دی په اِیَّا مشدد کی. او دغه رنگه کی لفظ مخفف په تشدید ووایه لمونځ نه په فاسدیږی نحو اَغْنِینَا په تشدید سره. او دا غه رنگه امام ابویوسف اعتبار نه ورکوی په قصر وویل د مد والا توری. اویا په مد وویل د مقصور لفظ. طحطاوی زیا تو ی دا غه رنگ اعتبار نه ورکوی وفک ته د مدغم لفظ نحو اِهْدِ نَا الصراط با ظهار اللام. اویا ادغام د مفکوك لفظ زیا تو ی چې که تغیر د معنا په دغو مذکوره امورو کی نه راشی خو لمونځ نه فاسده وی بالاجماع کما فی المضمرات،، اوکی تغیر د معنی پیدا کاوه. لکه چې سړی داسی ووائي: وَاِذِ ابْتَلٰی اِبْرٰهِیْمَ رَبُّهٗ په رفع د ابراهیم اوپه نصب د رَبَّهٗ، اویا دا ایت داسی ووائي: اِنَّمَا یَخْشَی اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ، یعنی په رفع د اللّٰهُ د لفظ اوپه نصب د الْعُلَمَاءَ، نو په نزد د طرفینو لمونځ فاسده وي. او په مقتضی د قول د امام ابویوسف لمونځ په فاسدیږی، لانه لایعتبر الاعراب. وبه یفتی، ط، ص۲۷۶. او هم په دغه صفحه کی وائي چې اتفاق کړی دی متاخرین





لکه محمد بن مقاتل. او محمد بن سلام. او اسمٰعیل الزاهد او ابوبکر سعید البلخی، او امام هندوانی او ابن الفضل. او امام حلوانی چې خطا په اعراب کی لمونځ نه فاسده وی مطلقا کی څه هم اعتقاد کفر وی لکه په پوره ذکر سوو دوو ایتو کی. ولې چې اکثر د خلکو چې عوام دي. د اعراب د بدلید و ده معنی په فرق نه پوهیږی. او بل دا چې که تول خلک امر کړه شي په تصحیح د اعراب په دی کی حرج کلی دی. او حرج په دین کی مرفوع شرعًا دی. او هم دغه ومذهب ته صاحب خلاصه تللی دی، وفی النوازل لا تفسد فی الکل وبه یفتیٰ.

**پوهسله:** چې قاضیخان وائی چې مذهب د متأخرینو چې دا ذکر سو فراخه دی او مذهب د متقدمینو احوط دی، امام طحطاوی وائې چې دا اختلاف د متقدمینو و متأخرینو په هغه ځای کی دی چې دا غلط اعراب په خطا کی څندی وویل سی او یا دی په غلطیا نه پوهیږی اویا یه په قصد ووائی لکن معنیٰ دي نه تغیر نه په خوری نحو الرَّحْمٰنُ عَلَی الْعَرْشِ اسْتَوٰی په نصب د رحمٰن د لفظ. اوکی په قصد ووایه چې په پوهیدی هم او تغیر د معنی هم دي وو، اویا په اعتقاد کفر وو نو فساد د لمانځه یه کمه درجه ده. قال والمفتی به قول ابی یوسف

**مسئله:** هغه لفظ چې شد لري هغه لفظ بې شده ویل. چې تخفیف یه بولی لکه چې یو سړی په لمانځه کی اِیاك نَعْبُدُ اویا، رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ په تخفیف ووائی. نو حضرات متأخرین فقهاوو د احنافو وائی چې لمونځ نه په فاسدیږی مطلقًا یعنی په هیڅ ځای کی علی المختار، لان ترك التشدید لکه خطاء فی الاعراب ده" کما فی قاضیخان وهو الاصح"، وکما فی المضمرات، ونص به فی الذخیرة علی انه الاصح، وکذا قال ابن امیر حاج. او حکم د شد ورکولو و مخفف لفظ ته هم حکم یه هغه وړاندی حکم دی،، قال الطحطاوی وکذا اظهار المدغم وعکسه دا تول یو حکم لری یعنی چې لمونځ نه په فاسدیږی، قاله الحلبی،،

**دوهمه مسئله:** د زلة القاری، وقف کول دی بیځایه، یا ابتداء کول دی بیځایه نو که په دغه تغیر و معنا ته نه رسیدی لمونځ نه په فاسدیږی. په اتفاق د قدماؤ د مذهب او د متأخرینو. او که معنا ته تغیر سیدی نو په دې صورت کی متقدمین یه لمونځ فاسد بولی. لکن فتوی پر قول د متاخرینو ده. چې لمونځ یه په هیڅ حال کی نه فاسدیږی. په دلیل د دې

چې مراعات د وقف او وصل او ابتداء خلک یعنې مُسلمانان په حرج کې اچول دي بالخصوص عوام طبقه په الحرج مرفوع، کما في الزخيرة، والسراجيه والنصاب، فتاوي شامي د فتاوي بزازيه نه دا سې نقل کړي دي، که وقف او ابتداء ومعنا ته د قران تغیر فاحش نه راساوه لمونځ نه پـه فاسدیږي. لکه په جمله د شرط چې وقف وکړي: لَوْ كَانَ فِيهِمَا اٰلِهَةٌ إِلَّا اللّٰهُ، بیا ابتداء په جزاء وکړي یعنې لَفَسَدَتَا، وكذا الوقف على الموصوف والابتداء بالوصف، نحو الحَمْدُ لله بالوقف ثم يبتدئ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ، که څه هم معنا تغیر خوري. لکه چې وقف وکړي شَهِدَ اللّٰهُ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ. ثم يبتدئ إِلَّا هُوَ، لا يفسد الصلوٰة عند عامة المشائخ ولې چې عوام د وقف او ابتداء او وصل ځایونه نه پیژني ففي الفساد حرج عظيم، او کې وقف وکړي پر، وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ، او وروسته یې شروع وکړه، لَيْسَتِ النَّصَارٰى عَلٰى شَيْءٍ آه. لمونځ یې په اتفاق فاسد نه دی. ش، ع، در، او په نصاب کې خود اهم راغلی ده که یو سړي وقف په ټوله قران کې وینه کې لا تفسد صلوته عندنا،

**مسئله**: که یو سړي دیوې کلمې په ما بین کې وقف وکړي یا ئې ساه ورسیده. او یا سا مړ پر یوځی. او بیا یې باقي کلمه یې هیره سوه مثلاً یوه سړي داغوښته چې اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ووائي نو یې پر اَلْ وقف وکړی وروسته یې حَمْدُ لِلّٰهِ وواید. او یا یوه سړي داغوښته چې وَالْعَادِيَاتِ ووائې بار ئې وویل" وَالْعَا، او وقف یې وکړی. او وروسته یې کلمه پوره کړه په سبب د اعذارو سابقه وو، قَالَ الطحطاويؒ هغه مذهب چې پر هغه عام مشائخ دی لمونځ یې نه دی فاسد که څه هم مَعنا تغیر وخوري دَجهته د ضرورت وعموم البلوٰی، کما في الذخيرة وهو الاصح كما ذكره الفقيه ابو الليث السمرقنديؒ.

**دریمه مسئله د زِلة القاري**: چې مصلي یو حَرف په ځای کې د بل حرف ووائي نو په دی مسئلې کې حکم دا دی که کلمه د لفظ څخه د قران نه وتله. او معنای مرادی ئې تغیر هم نه رسیدی لمونځ نه فاسده وي. لکه چې ووائي: إِنَّ الظَّالِمُوْنَ، په ځای کې د، إِنَّ الظَّالِمِيْنَ، چې لفظ قراني دی یعنې واو یې په ځای کې د یاء ووائي. نو لفظ د ظَالِمُوْنَ په واو سره په قران شریف کې بل ځای سته. او مرادی معنا ته هم تغیر نه رسیږي. نو ځکه لمونځ نه دی فاسد،





او یا ووائي: وَالْاَرْضِ وَمَا دَحَاهَا، په ځای کې د، وَمَا طَحٰهَا، چې لفظ د دَحَاهَا په قران شریف سته او معنا یې هم تغیر نه خوري نو ځکه لمونځ نه دی په فاسد، او که کلمه د لفظ د قران وتله او معنٰی مرادی ته هم تغیر نه راتی نو لمونځ په نیزد طرفینو نه فاسدیږي او امام ابو یوسفؒ یې لمونځ فاسد بولي. بناءً على ما تقدم في صدر الكلام" لکه قِيَامِيْنَ بِالْقِسْطِ، چې په ځای کې د، قَوَّامِيْنَ بِالْقِسْطِ، او یا دَوَّارَاه په ځای کې د دَيَّارًا، ووائي او کلمه خود لفظ د قران نه وتله لکن معناتې تغیر رسیدی. نو په نیزد طرفینو یې لمونځ فاسد دی لتغير المعنٰى، کما عرفت من مذهبهما، او په نیزد امام ابو یوسفؒ یې لمونځ نه دی فاسده ولې چې لفظ قراني خو موجود دی کما هو مذهبه وقد مر من قبل. لکه چې یو سړي... خَامِدُوْنَ" ووائي په ځای کې د" سَامِدُوْنَ،

**پوهسه**: امام طحطاويؒ وائي چې دغه قواعدې چې مونږ ذکر کړې دپاره د مذهب د متاخرینو دا په ټولو فروعو کې جاري دي. ورنه متأخرين نورې قاعدې هم لري چې هغه مطولې دي امام مذکور زیاته کړیده چې مسائلې د زِلة القاري یوه پر بله نه قیا سولای. مګر هغه څوک چې هغه کامل علم په لغت عربي لري. او معاني د قران هم ښه خبروي او نور ما يحتاج اليه به هم ښه زده وي. او د ابو سعيد خدريؓ څخه روایت دی. چې په قرائت کې د بعضو اهل القرى او د ترکانو او د سوداګرانو نو په ځای کې د، اِيَّاكَ نَعْبُدُ، وِيَّاكَ نَعْبُدُ، یعنې واو په ځای کې د همزه. او بعض په ځای کې د صِرَاطَ الَّذِيْنَ وائې اَلصِّرَاطَ الَّذِيْنَ، بزيادة الالف واللام متأخرینو تصحیح کړیده چې په دواړو صورتو کې لمونځ نه فاسدیږي وان غَيَّر المعنٰى،

**درویش وائي**: چې د متأخرینو په مذهب کې ډیره فراخي سته. او د پښتنو د اکثرو عوامو بلکه د بعض ملایا نو لمونځونه بیله مذهب د متأخرینو هدای خبر چې صحیح کیږي به، چې دوی د قرائة القرآن په وخت کې عجیبه ناولده الفاظ وائي. مدرس مولوی صاحب وي لکن قران شریف به غلط وائي. په اوسني وخت کې یو څه بهتري راغلی ده. ولې د خلګو توجه وعلم قراءت ته راوښتی ده. او خلک د خپلو زامنو د پاره په مدارسو دینیه وو کې ډیر پا لنه د قران مبارک د صحیح زده کړې کوي. او علامه شاميؒ په رد محتار کې وائي چې چونکه قاعدې د متاخرینو په ضبط کې

نه دی نواولئ بناءده پرقواعدو دمتقدمینوؒ ولی چی دهغوقواعدی په انضباط کی دی اوقول دمتقدمینوؒ احتیاط په امرد قرآن شریف وټیلو ډیری په زړه پوری دی. او ډیری مسئلی چی دفتاواوو په کتابوکی ذکرسوی دی دمتقدمینوؒ پرمذهب بناء دی **پوه سه** چی قواعدی دائمه ثلاثه وو یعنی ابوحنیفه، ابویوسف، اومحمد رحمهم الله تعالیٰ قاعدی دمتقدمینوؒ دمذهب دئ.

او د دوی په قواعدوکی هم په بعض ځایوکی په یوه مذهب کی تنګی او په بل کی فراخی. او په بعض ځایونبی بالعکس وي. نو د دی تولو مشکلاتو د حل دپاره یوازی یوه لاره داده چی سړی په زده کولوکی دقرآن کریم د الفاظو او حروفو ډیر زیار وباسی. او په دی که څوک کلان سالم وی شرم دی نه کوی واللّٰه اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب، ولنرجع الی ماکنا بصدده من شرح نورالایضاح والله جل سلطانه هوالموفق والمعین وبه نستعینُ، قال المصنفؒ

**لَوْنَظَرَالْمُصَلِّی اِلٰی مَکْتُوْبٍ وَفَهِمَهٗ** که وکتل لمونځ کوونکی ولیکل سوی شئی یعنی که دقرآن ایت وي یا بل شئی وي او په وپوهیدی. یعنی په معنایی. لمونځ خو نه په فاسدیږی. ولې خو تکلم یی دی نه کړي. لکن خلاف دادب څخه د لمانځه دئ. امام طحطاویؒ وائی چی د دی فصل مسائل که مصنفؒ په فصل آتی کی مکروهاتو راوړی وای ډیر به ښه وای او عبارت به هم کوتاه وائی. **وَالْجَوَابُ** چی هغه اعمال چی په دی فصل کی ذکرسوی دئ د قسم دسوء الادب د ږ اوسوء الادب تر کراهت کمه ده درجه یی په فتاوای خانیه او په فتاوای خلاصه کی وائی که یو سړی په لمانځه کی فکروا هه. نو یو شعر یا خطبه یه وریاد سوه. او په زړه یه تکلم یه وکړی لمونځ یی نه فاسدیږی. کما فی البحر لکن ترك د خشوع دی. او کمال ته د لمانځه تاوان کوي. لکن پوه سه چی دا سوء الادب هم هلته دی چی په قصد ورته وګوري او که نا بره سترګی پرو لګیدی او وی فهم وه بیا سوء الادب هم سته. قال المصنفؒ

**اَوْاَکَلَ مَابَیْنَ اَسْنَانِهٖ وَکَانَ دُوْنَ الْحِمَّصَةِ بِلَاعَمَلٍ کَثِیْرٍ**

اویا مصلی وخوړی هغه شئ چی په مابین کی دغابنویی وو. او د نخود تر دانی کم وو بیله ډیر عمله





لمونځ به یه فاسدیږی. اګرچه سوء الادب خودی مصنفؒ مابین اسنانه وویل ځکه یو لږ شی لکه کنجد و دانه او یا یو ټاټکی دباران چی ده په خوله کی ولویدی او حلق ته یه ورسیدی لمونځ فاسد دی او که روژه وه روژه یه هم ماته سوه. ط»، که څه هم کفاره پری نسته» در» او که داشی په قدر د حمصه وو یا بالاتر هغه لمونځ فاسد دی او روژه یه هم ماته ده وکه د غه تر حمصی کم شئ مصلی ډیر وژوو وی او بیا یه تیر کړي لمونځ اتفاقا فاسد دی. او لږ شی په لږ عمل خوړل پروا نه لری ولی چی هغه تابع د ښا ړو دی او د نا ړو د تیرولو څخه چاره نسته»

قال المصنفؒ **اَوْمَرَّمَارٌّفِیْ مَوْضِعِ سُجُوْدِهٖ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ اَثِمَ الْمَارُّ**

او یا تیر سو یو تیریدونکی که نر وی او که ښځه او که سپی وی او که خروی په ځای کی د سجدی دده لمونځ نه په فاسدیږی یعنی په دروسره مسئلوکی که څه هم په مسئله د ما رتیریدونکی ګناه کار دی. وجه د عدم فساد په مسئله کی د ما ر: قوله علیه الصلوٰة والسلام: لا یقطع الصلوٰة شئ. **پوه سه**: که تیریدونکی د مصلی د سجده ګاه څخه لیری تیرسو بیا ګناه کاره هم نه دئ» دا خو د مصنفؒ مذهب وو لکن صحیح او مفتی به داده چی په کشنی مسجد کی د مصلی د مخه تیریده مطلقًا مکروه دی. او په مسجد کبیر کی موضع ته د سجود اعتبار دی. او خو کرا تر د مرور هم تحریمي دی. او بحر الرائق په دی مسئله کی ډیر بحث او تحقیق کړی دئ قال

**وَلَاتَفْسُدُ بِنَظَرِهٖ اِلٰی فَرْجِ الْمُطَلَّقَةِ بِشَهْوَةٍ فِی الْمُخْتَارِ**

او لمونځ نه فاسدیږی په کتوسره د لمونځ کوونکی وکس ته د خپلی ماینی چی ده په طلاق رجعی طلاقه کړی وه او کتل هم په شهوت سره بر مختار **وَاِنْ ثَبَتَ بِهِ الرَّجْعَةُ** مذهب، که څه هم په دغو کتوسره رجوع د میره ثابتیږی **پوه سه**: چی د مطلقی قید اتفاقی دی که د بیګانه ښځی وکس ته وګوری په شهوت سره هم یه لمونځ نه فاسدیږی. او پوه سه: چی مراد د فرج څخه فرج داخل دی چی ښځی تکیه کړی وی او پښی ازادی سره نیولی وي. نو د دی فرج داخل لیدل کیږی. او کی و تول

فرج ته وکتل په هغه کی په اتفاق لمونځ نه فاسدیږی. لکن خلاف الادب کار دئ. مراقی دعدم فساد وجه داوائی چی داکتل عمل قلیل دی. لهذا کی ښځه ځنډی واخسته او یائی مسه کړه لمونځ یه فاسد دی. ولی چی داکار په معنیٰ کی دجماع دی. او جماع عمل کثیر دی. لکن داقبلیا لمس چی په معنا کی دجماع دی هلته دی چې په شهوت سره وي او حدد شهوت په ځوان سړي کی دا دی چې بلاگی یه ورته پورته سی. او که دمخه پوؑ ته وی چی ډیر کلك ودریږی. او په ښځه کی او یا په سپین ږیري کی حدد شهوت دادی چی دزړه میل اوشوق یه ورته وسی. مصنف مختاره وویل ولی چی بعض فقهاءؒ وائی چی لمونځ یه فاسد دی.

**مسئله** که مصلی دښځی ځنډ ښچه واخسته او یائی مسه کړه بیله شهوته لمونځ یه په اتفاق نه فاسدیږی. ولی چی دا په معنیٰ کی دجماع نه دی. **مسئله**: که ښځی لمونځ کاوه او بل سړي چی په لمانځه کی نه وُو بلاگی یه ددی دوږنو یه مابین کی ورکړې که څه هم انزال نه سی. او یا یه ښچه ځنډی واخستل که څه هم بیله شهوت ځخه وي او یا یه مسه کړه په شهوت سره دښځی لمونځ فاسد سو. که څه هم دسړی خپله ماینه وي **مسئله**: که ښځی دمُصلی ځنډ ښچه واخسته او یا یه مسه کړه. او دمُصلی په زړه کی اشتهاء نه سوه پیدا دده لمونځ نه دی فاسد

**پوښتنه** څه فرق دئ. چی ښځه لمونځ کونکی ښچه کړي او یا یه مسه کړي بیله شهوت دنر په زړه کی چی لمونځ دنر لمونځ لمونځ کونکی نه فاسدیږي. او یا ښځه لمونځ کوونکی مچ کړي او یا یه مسه کړي بیله شهوته دنر دَخوا او دښځی لمونځ فاسدیږی **جواب** فرق یه دادی چی شهوت په ښځه کی شرعًا او عقلاً ډیر دئ. نو چی نردا ښچ کړي خواه څخواه ددی اشتهاء کیږي او بل خبره دا ده چی ښحَوَل دنر په مطلق توگه اومس دده په شهوت سره مونږ مفسد په دی بولو چی په معنا کی دجماع دی. او جماع خو فعل او کار دزوج دئ.

نو ده په حق کی دواعی دجماعو چی ښچه ده یا لمس بالشهوت په ځای کی دریږی. بخلاف دښځی چی جماع ددی کار نه دی. نو دواعی دجماع ددی دخوا چی ښچه اخستل دی دنر ځخه او یالمس بالشهوت دی ددی دخوا په معنا کی دجماع نه گڼل کیږی. تر هغو چی دنر په زړه کی شهوت نه سی پیدا. ط،ح واللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوابِ.





# فصل

## یعنی فی مکروهات الصلٰوة

**یَکْرَهُ لِلْمُصَلِّی سَبْعَةٌ وَسَبْعُوْنَ شَیْئًا** مکروه دی لمونځ کوونکی ته اوه اویا شیان، لکن یوه سه چی مقصود حصر په دغو شیانو کی نه دی بلکه دغه شیان مشهور دي. م، در،،

**فَائِدَةٌ سَنِیَّةٌ تَعَلُّمًا ضَرُوْرِیَّةٌ** نو پوه سه چی مکروهات ضد د محبوب دي په لغت عربي کی. لکن دلته دري لفظ سته چی فرق کول د هغو مهمّا تو ځخه د فقه دی ۱ حرام، ۲ مکروه تحریمي، ۳ مکروه تنزیهی، ددی درو په فرق کی یو مذهب دی، د حضرت الامام محمدؒ، او بل مذهب د حضرت الامام الاعظمؒ او امام ابویوسفؒ چی شیخین یه بولی په اصطلاح د فقه شریفی کی. او که امام اعظمؒ او امام محمدؒ په یوه رائیه کښی شریك وی طرفین یه بولي. او که امام ابویوسفؒ او امام محمدؒ سره شریکان وَه صاحبین یه بولي. او که دری سره متفق وه ائمه ثلاثه ور ته وائي:

علامه تفتازانیؒ په شرح کی چی په نامه د تلویح یادیږی. د امام محمدؒ مذهب یه داسی بیان کړي دی چی یو کار او فعل چی پرېښول یه اولیٰ تر فعل وي. نو که دکولو ځخه ئی سړي منع وُو په یوه دلیل یقیني سره لکه قرآن عظیم الشان او یا حدیث مشهور او متواتر هغه فعل ته حرام وائی. لکه: وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰی، وامثاله. او کی دکولو ځخه منع وو په دلیل ظنی لکه عام مخصوص البعض، په قرآن کی. او یا خبر واحد په حدیثو کی. او یا قیاس د مجتهد هغه فعل ته مکروه په کراهة التحریم وائی. او کی ترك اولیٰ وُو لکن دکولو ځخه یه منع نه وَه راغلی هغه مکروه په کراهة التنزیه دی۔ او دا مذهب د حضرت الامام محمد بن حسن الشیبانیؒ تلمیذ امام الاعظمؒ وابي یوسفؒ،،

او بل رائیه د شیخینؒ تقسیم داسی دئ،، چی سنه عمل چی ترك یه اولیٰ وي تر کولو کی دکولو ځخه صریح نهی راغلی وی هغه عمل حرام دی. او کی د فعل ځخه صریح منع نه وه راغلی نو مکروه تنزیهی دی. که روا والی ته نږدی وو، په معنیٰ ددی چی کوونکی ته د هغه عمل خو عقاب نه وو،

او په نه کولو کی به لږ ثواب وو. او که حرام ته نږدې وو. په دې معنا چې کوونکی ته د هغه عمل عِتاب او سرزنش په ورځ کی د قیامت خوو مګر عقوبت بالنار نه وُو. ده عتاب مثال په حرمان د شفاعت وییل سوی دی نو دا غسی عمل ته مکروه تحریمي وائي.»

**پوښتنه:** په صحیح حدیث کی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وئیلی دی «شفاعتي لِأَهْلِ الكَبَائِرِ مِنْ اُمَّتِي» نو مرتکب د مکروه تحریمي خو مرتکب د ګناه کبیرې نه دی نو څرنګه د شفاعت نبويؐ څخه محروم دی. **جواب:** شفاعت نبويؐ دوه قِسمه دی یو د پاره د بخښنې د ګناه دی چې هغه شفاعت عام دی. مرتکب د کبیرې ګناه او مرتکب د مکروه تحریمي ټولو ته شامل دی. او بل شفاعت د پاره د لوړ والی د درجې دی په جنت کی مرتکب د مکروه تحریمي د دغه قسمه شفاعت څخه محروم دی. دا جواب مشهور دی او فاضل عماد الدینؒ په حاشیه کی د تلویح راوړی دی. او فاضل شمس الدین خیالیؒ نور جوابونه هم راوړی دی چې تر فهم د متعلمینو د کتاب لوړ دی ولذالك ترکنا،

**فـائِدَه:** اصل په اطلاق د تحریم مکروه تحریمي دی او پر مکروه تنزیهي به په قرینه د اطلاق حکم کیږي. **پوښتنه:** چې صاحب النهرؒ او صاحب البحر فرق د مکروه تحریمي او تنزیهي داسی بیان کړی دی که د یوه عمل ترك لره د واجب مستلزم وه هغه مکروه تحریمي دی. او که متضمن ترك لره د سنت وه هغه مکروه تنزیهي دی.

او د مکروه تنزیهي درجې او فرق سره لری په دې سبب چې هغه سنت چې په دې عمل پاتیږي سنت مؤکد دی او که د سُنن زوائدو څخه دی. او که نه واجب په پاتیدې او نه سُنت نو که ده لمانځه څخه بیګانه کار وو هغه هم مکروه دی لکه په بدن یا جامه سره په لمانځه کی ځان اخته کول یا بل داسی کار چې زړه پر مشغوله کیدې. حتی په خلاصه کی وائی که د مُصلی لنګوټه پر تندی وه چې سره د هغی پر تندی سجده نه سوای کولای نو ده په یوه لاس لنګوټه د تندی څخه پورته کړه مکروه نه دی. ولی دا کار د متمماتو څخه د لمانځه دی. او یا په لمانځه کی د پاره د دفع د ضرر یو عمل وکی کقتل الحیة والعقرب دا مکروه نه دی. که څه هم په کثیر سره وي.

**مسئله:** په لمانځه کی که د سړی څخه واجب پاتې سو نو کی څه هم لمونځ خو یې صحیح دی.





تلل د آل حول یې واجب دی. او که سنت وغیره پاتې سول د آل حول یې مستحب دی.» مر او صاحب الهدایه په تجنیس کی وائي چې هر لمونځ چې اداء سی سره د کراهت نو هغه لمونځ دی را وګرځوی بیله هغه مکروه عمله»

**سـوال:** په حدیث شریف کی راغلی دی «لَا يُصَلِّي بَعْدَ صَلٰوةٍ مِثْلَهَا» نو څرنګه بیرته را ګرځول د کړی لمانځه غواړی **جـواب:** صدر الاسلام علی البزدویؒ په شرح کی د جامع صغیر وائي چې مراد په حدیث مذکور کی دا دی چې صرف د وسوسې د سببه لمونځ بیرته را ګرځوی. نو دا حدیث و د غوته د کراهت شامل نه دی.

امیان خلك باید په لمانځه کی فکر وکړي په رکوع او په ولاړه کښی د رکوع څخه او **نَصِیحَت** په سجده کی او په کښیناستو کی د سجدی څخه چې د دغه افعال په سه وجه ادا کړي ولی د مه کار رونه چې رکوع او سجده او د رکوع سم ولاړیدل او په مابین کی د دوو سجدو کښیناستل که از کم سنت خودی نو کی دی پر وجه کامل یې ونه کړي نو د آل حول د لمانځه بیرته غواړی په حدیث شریف کی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په ترك د دغو کار و په یوه اعرابي لمونځ درې واره را وګرځاوه. **پوښتـه:** چې مراد د مکروه څخه په دې فصل کی عام دی که مکروه تحریمي وي او که تنزیهي وي لکه چې د هغو بیان په شرح کښی وکړم اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰی» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## تَرْكُ وَاجِبٍ اَوْسُنَّةٍ عَمَدًا

پریښول دی د واجب یا د سُنت په لمانځه کی په قصد سره. قید د عمد یې د دی د پاره وو ایه ولی که چیری واجب سَهوًا او نسیا نًا پاتې سی. لمونځ مکروه نه دی بلکه سجده سهوه به کوی. او که سنت په سهوه پاتې سی نه لمونځ مکروه دی او نه سُجده سهوه ستهٔ قال مر و ط چې شروع و مکروهاتو مصنفؒ په د غو دوو سره وکړه. ولی دا دوه دوره وسته د پاره لکه قانون کلی دی. او د پر جزئیات ترلاندی مثلاً آرام په ارکانو کی د لمانځه لکه رکوع او سجده او قومه او جلسه چې ترك د هغه یا ترك د واجب دی پر تحقیق بناءً. او یا ترك د سنت مؤکد دی. او یا تر امام د مخه رکوع او یا سُجدې ته تلل. او یا په رفع کی تر امام وړاندی والی کوی چې مکروه تحریمي دی

ولی په هغه کی سخت وعید راغلی دی کما روی البخاری ومسلم: قَالَ علیه الصلوٰة والسلام اَمَا یخشیٰ اَحَدُکُمْ اِذَا رَفَعَ رَأسَهٗ قَبْلَ الاِمام اَنْ یَّجْعَلَ اللّٰهُ رَأسَهٗ رَأسَ حِمَارٍ، وفی روایۃ اویجعل الله صُورۃ حمار. ترجمه: ایا نه بیریږی یو ستاسی چی سر اپوته کوی یعنی یا د رکوع نه او یا د سجدی نه د مخه تر امام چی ودی ګرځوی خدائ سر د ده سر د خره او یا صورت د ده صورت د خره.

## دَرویش وائی

چی شیخ عبد الحقؒ د دی حدیث په صدق کی دیو عالِم قصه ذکر کړیده فلیرجع» او دی ته هم شامِل دی چی لاسونه په وخت کی د شروع د لمانځه تر غوږو لوړ یوسی چی دا مکروه تنزیهی دی لانه لم یثبت ذالک منه صلی الله علیه وسلم ولا من احد من الصحابۃ. او یا لاسونه بیله عذره تر اوږو لا کښته پورته کړی. او یا پښی په قصد سره په سجده کی په پا یخو پوټ کړی: قالَ المُصنفُ:

## کَعَبَثِهٖ بِثَوْبِهٖ وَبَدَنِهٖ وَقَلْبُ الحَصٰی اِلَّا لِلسُّجُودِ مَرَّةً

لکه سات تیرول په جامه سره یا په بدن سره او یا پُری وَهَل د شګو مګر د یاره د سجدی یو وار. بعض علماء وائی چی عَبث هغه فعل ته وائی چی غرض شرعی نه وي پکښی او سفه هغه کار ته وائی چی هیڅ غرض نه وی په کښی. او په جوهره کی وائی چی عَبث هغه فعل دی چی خوند نه وی پکښی. او لعب هغه کار دی چی څه نا خوند په کښی وي. او جوهري په صحاح اللغۃ کی وائی چی سفه او عَبث سره مرادِف دی" ط.

دلیل د کراهت دا دی چی عَبث کار منافی دَ خشوع سره دی چی هغه د لمانځه لکه روح داسی دی قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی: قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ صَلَاتِهِمْ خَاشِعُوْنَ، والخشوع حضور د زړه دی او آرامول د اندامو دی. او ساتنه د دی کار نو د لمانځه ده. نو عبث په لمانځه کی مکروه تحریمی دی» ق، س، ط، وفی المَرَاقی والمراد بالحبث ههنا فعل مَا لیس مِنْ افعال الصلوٰۃ. **مسئلهٔ**: که عبث بالبدن ته ضرورت پیدا سو بیا کراهت نسته مثلاً که د مصلی مخ یا تندی خوله کړی وَه نو ده هغه پاکه کړه.





اوبایه سجده پر خاورو وکړي خاوري یه په مخ مبتی وي. اودی ځندی په تکلیف وونو یه یا کی کړی کراهت نسته، کذا فی فتح القدیر والعنایه والنهایه».

## پوښتنه

چی حِصیٰ جمع د حصاۃ ده کښتی شګوته وائي. قوله للسجود ای للسجود الکامل. اولی اصلی سجده نه سوای کولای بیا پری وَهَل د شګو واجب دی» ن، ط، وجاء فی حدیث جابرؓ وکذا فی حدیث ابی ذرؓ التقیید بمرۃ واحدۃ. قَالَ جابرؓ سَئَلتُ النبی صلی الله علیه وسلم عن مسح الحِصَا فقال واحدۃ ولان تمسک عنها خیر لک عن مائۃ ناقۃ سود الحدق. ما پوښتنه وکړه د نبی علیه السلام نه د پری وَهلو سنګریزو یعنی د سجده په وخت کی نو علیه السَّلام ووئیله یو وار یعنی یو وار یه فعل روا دی. او که ته ځان وساتی د دغه کار نه یعنی قلب الحصیٰ» خیر دی تا لره تر سلو ښځینه اوښو چی توری سترګی وی یعنی ګران قیمت وي.

## درویش وائی

چی تر ټولو ښه کار دا دی چی لمونځ کونکی د کِه مخه تر لمانځه د لمانځه ځایه نه شګی اواری کی. حتیٰ د ننګنو د اینبولو ځایه نه او د ناستی د ځایه نه تا چی په لمانځه کی زړه مشغول په هیڅ شی نه وي.

## درویش وائی

چی حدیث د ابوذرؓ په دی باره کی پر داسی سجع مشتمل دی چی تر ټولو مثالو د سجع فوقیت لری وهو هذا: اَسْئَلَ اَبُوْذر: خَیْرَ البَشَر: عن تَسْوِیَةِ الحَجَر. فقال یا ابا ذر: مَرّةً والافَذَرْ.

## مَسَائِلِ ضَرُوْرِیَّة

پاکول د تندی د خاورو نه یا د خاشو نه او یا د خولي نه په مابین کی د لمانځه مکروه دی. مګر که ضرورت وو چی دغه شګی په په تندی جګیدلی. یا په خوله پرسترګو راتوئیدله او یا خاوری راتوئیدلي. او یا دغه شیا نو د لمونځ کوونکی خشوع ورخرابوله. نو بیا هیڅ کراهت نسته. لکه چی غماشه سري پر مخ وخوري او هغه کاکوي او زړه د لمونځ کوونکی په مشغوله وی نو ګرو ول یه کراهت نه لري. یاد سري په لمانځه کی ګرنګ د پزي نه راوئیږی د خولي پر خوا نو پا کول یه مکروه نه دي. وامثال ذالک. او وروسته تر سلام خو بیا که ضرورت او که نه وي کراهت نسته، ولی ابن السنیؒ په خپل کتاب کی دانسؓ نه روایت کړی دی» چی رسول کریم صلی الله علیه و

سلام څخه وروسته چې د لمانځه څخه فارغ شو مسح به یې کړې تندي مبارک په راسته لاس او وبه یې ویل
اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الرَّحْمٰنُ الرَّحِیْمُ: اَللّٰهُمَّ اَذْهِبْ عَنِّی الْهَمَّ وَ الْحُزْنَ» مراط، در
ابن امیر الحاجؒ وائی چې دا مسئله پر څلور قسمه ده ۱ مسح کول د خولې یا خاورو وغیره کولو دی
پسله سلامه هغه خو مستحب دی: لانه ازالة الاذی عن وجهه ودفع المثلة، ۲ چې د لمانځه
د افعالو څخه فارغ سی تر سلام د مخه. په بدائع او صنائع کی وائی. لَا بَأْسَ بِهٖ بالاجماع. ولی کړی
فصل الصلوٰة په دغه حال کی بیخی قطع کړی هم باك نه لري. نو بیو فعل قلیل چې مسح ده څه
باك به ولري. ۳ چې د اخیري سجدې څخه سر اپورته کړي د مخه تر ناستی په قدر د تشهد ی
امام سرخسیؒ وائی لَا بَأْسَ بِهٖ» او امام حلوانیؒ چې په دی کی په کتابو کی د فقهاو اختلاف دئ.
بعض وائی مکروه. بعض وائی وائی نه دی مکروه ۴ چې مسح په مابین کی د لمانځه واقع سی.
په دی صورت کی ظاهر الروایة دا دی چې بیله ضرورته مکروه دی وَهُوَ الصحیح» قال

**وَفَرْقَعَةُ الْاَصَابِعِ** او مکروه دی په لمانځه کی تکان په ګوتو کول یا په
کشیدو او یا په کښیکښنو. لقوله علیه الصلوٰة والسلام
لَا تَفَرْقَعْ اَصَابِعَكَ وَاَنْتَ فِی الصَّلوٰةِ» په ګوتو تکان مکروه په داسی حال کی چې ته په لمانځه کی
یه» چونکه دا صریح نهی دی نو کراهت تحریمي دی ط، او په مجتبیٰ کی وائی که څوك و لمانځه
ته انتظار کوي یا لمانځه ته راروان وي هغه هم په حکم کی د لمونځ کوونکی یعنی د ګوتو تکان
ورته مکروه دي. **درویش وائی** چې چونکه نهی صریح په لمانځه مقیدی دي نو د دې
سرې د ګوتو تکان مکروه تنزیهی دی. او بیله د غو صورتو یعنی خارج الصلوٰة نو د ګوتو تکان
مکروه دی په نیز د اکثرو فقها وو. بحر الرائق او مجتبیٰ والایه دا علت وائی چې دا فعل د شیطان
د خوا څخه دی» لکن کراهت یه تنزیهی دئ. لما مر. او په برهان کی علت د کراهت دا ویلی دی
چې دا یو عبث کار دئ. لکن پوه سه چې د بعض کسانو د ګوتو بندونه درد کوي چې تکان پروه نه کی
نو دغه سړي ته خارج الصلوٰة تکان د ګوتو مکروه نه دئ. او بعض وائی چې وجه د کراهت یه
دا ده چې دا عمل د قوم لوط وو» وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ» وَالیه المرجع والمآب»

کتبه بیده اَحقر الخلق محمد فضل الحق حقانی غفرله.





**وَتَشْبِیْكُ الْاَصَابِعِ** او مکروه دی په لمانځه کی سره داخلول د ګوتو.
قال م لقول ابن عمرؓ فیه تلك صلوٰة المغضوب
علیهم قال ط» چې دغه رنګه مکروه دی تشبیک په وخت کی تګ و لمانځه ته» ولی چې احمد
او ابوداؤدؒ او نورو په روایت کړی دی مرفوعًا چې علیه الصلوٰة والسلام ویلی دی: چې یو
ستاسی چې اودس تازه کړي او بیا اودس وي. او بیا د مسجد په خوا روان سي. نو تشبیک د
ګوتو د لاسو دی نه کوي. ولی چې دی په لمانځه کی دی یعنی حکمًا. د دی حدیث څخه دا معلومه سول
چې په وخت کی د انتظار د لمانځه په طریق اولیٰ تشبیک مکروه دئ. بحر الرائق وائی چې د نهی څخه
دا معلومیږي چې دا کراهت هم تحریمي دئ. او چې د لمانځه څخه فارغ سي نو تشبیک روا دئ.

**حِکْمَتِ الٰهی** د عن التشبیک چې دا فعل د شیطان د خوا دی کما فی الحدیث. او بل دا دی چې
تشبیک سړي ته خوب وروَلی او خوب ګمان د حدث دئ. او بل تشبیک
اشاره د اختلاف او شقاق تر ده لکه چې د حدیث د ابن عمرؓ څخه اشارةً دا معلومیږي. قال

**وَالتَّخَصُّرُ** او مکروه دی په لمانځه کی لاسونه پر د وړی نیول. دلیل یه دا دی چې
اول خو دا خوی د جبارو او متکبرینو دئ. بل دلیل دا دی چې په لمانځه کی
اخذ الید بالید سنت دئ. په تخصر کی هغه پاتیږي م» او بل دلیل دا دی چې تخصر په
معنا لکه تکیه پر لکړي کول دی ځکه نو لکړي ته مخصره وائي.
او شك نسته چې په فرض لمانځه کی بیله ضرورته تکیه پر لکړه مکروه ده کما صرح به الفقهاء
طرا نعم په نفل لمانځه کی که ضرورت وي او که نه وي تکیه پر لکړه روا دی علی الاصح» مجـ طـ
او بعض علماءُ د تخصر تفسیر داسی کوي: هو ان لا یتم حدود الصلوٰة» نو که واجب پاتیدی
نو مکروه تحریمي او سنت پاتیږي نو مکروه تنزیهی دئ. او بعض علماء د تخصر ترجمه په
اختصار فی القرأت سره کوي نو که قدر واجب پاتیدی مکروه تحریمي دی. او که قدر مسنون
پاتیدی مکروه تنزیهی دئ. **درویش وائی** که څه هم په لفظ کی تخصر مانع د دغو
تفسیرو نسته. لکن اول تفسیر ډیر صحیح دی او د جمهورو څخه د اهل اللغة والفقه والحدیث
منقول دی نو ځکه مراقی پر هغه تفسیر اکتفاء کړې ده. وقال هو اشهر واصح تاویلا تها»

قَالَ المُصَنِّفُ **وَالِالتِفَاتُ بِعُنُقِهِ** اود غړ نګه مکروه ده کتل په لمانځه کښې غاړې په کږه ولو سره. **پوهه**: چې التفات په لمانځه کښې درې قسمه دی، یو قسم مبطل د لمانځه دی چې څګر د قبلې نه واوړی او شاه قبلې ته کړی مګر بیله عذره. د عذر صورت په دا دی چې دسړی په لمانځه کښې خیال داسې وی چې بېره دی وینې سوه نو د او دا سړی د پاره شاه وقبلې ته کړه لکن وروسته چې وګوری بېره نه وی وینې نو لمونځ یې نه دی باطل، او دوهم قسم مکروه تحریمي دی چې بېړا استرخوا یا برچپه خوا فاړه کږه کړي. دد غه التفات په باره کښې هغه حدیث دی چې بخاري په روایت کړی دی دسیدتنا عائشه رضه قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وسلم عَن الالتفات الرجل فی الصلوٰة وکذا المرأة، فَقَال هُوَ اختلاسٌ یختلسه الشیطٰن من صلوٰة العَبد، داالتفات یوه حمله دشیطان په لمانځه دعبده او په بل حدیث کښې راغلی دي. لایزال الله مقبلاً عَلیٰ العبد وهو فی صلوٰته مَا لَمْ یلتفت فان التَفَتَ انصرف عَنْهُ: دادواړه حدیثه په کراهت تحریمي دلالت کوی» م ،ط، در»

او دریم قسم التفات دی په کنجیا نو دسترګو. په صحیح حدیث مبارک کښې راغلی دی: کَانَ رَسُولُ اللّٰه صَلّی اللّٰه عَلیه وَسَلم یلحظ اصحابهٗ یَمُوق عینیه» یعنی عَلیه الصلوٰة والسلام وحالاته داصحابو رض به کتل په کنجیا نو دسترګو. نو د دی حدیث نه علماء حضرات دا نتیجه ګیری کوی چې دا قسم التفات مکروه نه دی. لکن ملاعلی قاریؒ وائي چې دا قسم التفات دادب نه د لمانځه خلاف دی. بیله ضرورته د علیه السّلام دغه التفات خُود احوال معلومولو د مِن خَلفِهٖ وو نو او سړی هم که امام د لمانځه دَده غرض دپاره التفات په کنجا نو دسترګو وکړی پروا نه لري» قَالَ

**وَالِاقْعَاءُ** اود غړ نګه مکروه ده اقعَاء. د اقعاء معنیٰ دا ده چې سړی کونه په محله کښېږدی او ځنګونه جګ ودروی. او نس تې جوت کړي اولاسونه هم په محَله وَ نګوی. لکه سپی چې کښېني، م ،ط عز- در»، چې ابوهریره رض روایت کړی چې نهی کړیده علیه الصلوٰةَ والسلام دا قعاء نه لکه اقعاء دسپی» انتهی باختصاره نو په سبب دَ نهی کراهت یې تحریمي دَی.

کتبهٗ احقر العباد حقانی غفرلهٗ





قَالَ المُصَنِّفُ **وَافْتِرَاشُ ذِرَاعَيْهِ** اود غړ نګه مکروه دی په محَله پرې ایستل دبازوګانو، په یوه حمه کښې دهغه حَدیث چې روایت یې بخاري، دعائشه رضی الله تعالیٰ عنها کوی دَ راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسّلام نهی کولی دافتراش نه دنرد ذراعینو دځیل لاافتراش د درنده ګانو. **پوهه** چې قید دَرجل احترازی دی دښځې نه هغه دا غسی کوی ولې مبنیٰ دحال دد ی په ستره ده ونر دپاره حرمت هم تحریمي دی لوجود صریح النهی عَنه. قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَتَشْمِيرُ كُمَّيْهِ عَنْهُمَا** اود غړ نګه مکروه دی پورته کول دلوستونړو د ذراعینو نه. یعنی که تر څنګلو پورې وی اوکه یا پورته وی تر هغه» بحر» **مسئله**: که سړی دمخه تر لمانځه لستوڼي راپورته کړی وه. او بیا دا غسی په لمانځه کښې داخِل سُو. اختلف العلماء فی الکراهة نهر والصحیح الکراهة التنزیهیة» در» په لمانځه کښې دکراهت د دغه فعل سبب دادی چې دا د تکبر علامه ده چې دخشوع سره د لمانځه سره منا فِي ده» ط،، قَالَ المُصَنِّفُ

**وَصَلَوتُهُ فِي السَّرَاوِيلِ مَعَ قُدْرَتِهٖ عَلَى القَمِيصِ**

اود غړ نګه مکروه دی لمونځ په یوائې پرتاګه کښې یا په لنګ کښې سره د قدرته په قمیص باندې. مَراقی وَائې چې په دی کښې تهاون او سپکاوی دَ لمانځه دی، او قلة الادب دی او ځیل ستر والی نښکاره کول دی»، وقَالَ ط هذا یفید کراهة التحریم **مسئله**: مستحب ده نرلره درې جامې په لمانځه کښې، پرتوګ یا لنګ، بل قمیص، او بله لنګوټه» نو بناءً علیٰ هذا دپاکستانی اوسیدونکو لمونځونه خِلاف المستحب دی. ولې چې دوی یوازې دجیب نه دسمال راوکاږی او سر په لمانځه کښې په پټوی. اویا رخچینه یې په سر وي. مګر نا دړ څلګ چې لنګوټه تړی. او دښځې د پاره مستحب پرتوګ، قمیص، کښتنی پوړنی، او بل غټ پړونی **مسئله** دښځې لمونځ په هغه پوړنی کښې چې دوی په اصطلاح جفون ورته وائي

یعنې چې وېښتان یې تر لاندې معلومېږي مکروه دي اشد کراهةً » در« قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَرَدُّ السَّلَامِ بِالْإِشَارَةِ** اود غه رنګ مکروه دي رَدَوَل دسَلام دچا یعنې جواب ورکول په اشاره سره. لانه سَلام معنًی م« وفي الذخيرة لابَأْسَ للمصلي ان يجيب المتكلم برأسه قال. ورد الاثر بذالك عن عائشةؓ« مثلاً سړي په لمانځه وَلاړ وو بل سړي پوښتنه وکړه څنګه دې وکړه چې نړوې دې دسفره راغلی. ده ورته سر وښوراوه. چې هُو. ثمّ قَالَ ولابأس بان يكلّم الرجل المصلي پروا نه لري چې خارج الصلوٰة سړي ولمونځ کوونکي ته خبرې کوي. او هغه یې اورې لِقوله تعالٰی. وَنَادَتْهُ الْمَلٰئِكَةُ وَهُوَ قَائِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ«

**درویش هیچ مدان:** وَائي چې د ذخیرې دا غه دواړه حکمه د غور ور دي. اَمَّا الْاَوَّلُ: وهو قوله لابَأْسَ للمصلي آه په دې خبره کې باید مونږ غور وکړو چې په دې کې شک نشته چې سلام خُود عاده او جواب یې هَم د عاده او په دې کې هم شک نشته چې نفس دعا په هر لمانځه کې سته « اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ الاٰية اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا آه نو چې دسَلام جواب صرف په اشاره د لاس یا د سَر مکروه دی. نود نورو پوښتنو جواب به څرنګه په اشاره مکروه نه وي او ذخیره وَالاد اثر مروي د عائشةؓ بیان هَم نه دی کړی چې هغه کوم تاریخ وُو. په لمانځه کې خو دېر شیان روا وه او بیا منسوخ سوي دي کما سيأتي« او امام حلوانيؒ چې د ذخیره سره په مذکوره مسئله کې څیال دی ورو سته وَائي. کرچیرې یو چا سَلام واچاوه. ولمونځ کوونکي ته فی الحال خُودې په زړه کښې جواب ورکړي. او پسله لمانځه دې بیا جواب په خوله وَرکړي. په نیزد محمدؒ. او امام ابویوسفؒ وَائي چې مطلقًا دې جواب نه ورکوي او خطابيؒ او امام طحاويؒ یعنې فقیه ابوجعفرؒ روایت کړی دی چې یو وخت آنحضرت صلی الله علیه وَسلم په لمانځه کې وو چې عبد الله بن مسعودؓ سَلام وَرته وَوَایه، آنحضرت صَلَی الله علیه وَسلم پسله فراغه د لمانځه څخه جواب وَرکړی، وهذا يُؤيد قول محمدؒ«

وَاَمَّا الثَّانِيْ: ولا بأس ان يكلم آه چې پر د غه خبره چې په اٰیت شریف سره استدلال نه دی روا. ولې چې په لمانځه کې خبرې په شریعت کښې د زکریا علیه السلام خوروا وې.





بلکه په اوائلو کې د اسلام زمونږ په دین کې هم خبرې په لمانځه کې روا وې حتٰی تر نزول د « وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِيْنَ« فامروا بالسكوت عن التكلم في الصلوٰة علٰى ما روي في البخاري نو چې خبرې روا وې نو بنداء خو په طریق اولٰی روا ده. حاصل د مسئلې دا دی چې چا لره نه ښائي چې د لمونځ کوونکي سره چې په دې هم پوهېږي چې په لمانځه ولاړ دی خبرې وکړي او مصلي لره نه ښائي چې قصدًا غوږ ورته ونیسي او ځان په پوه کړي. قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَالتَّرَبُّعُ بِلَا عُذْرٍ** او دا غه رنګ مکروه ده چارزانو ناسته په لمانځه کې که بیله عذره وَه. لِترك سنة القعود م اوکه عذر وو چې بل ډول ناسته ورته تکلیف وه بیا خو کراهت نشته. ولې چې په عذر سره د واجب پرېښولو لا روا دی. نو د سنت دا خو په طریق اولٰی روا دی. نو چونکه په تربع کې ترك د سنت راځي نو ځکه مکروه تنزیهي ده«

**مَسْئَلَه:** چارزانو ناسته د باندې تر لمانځه هیڅ کراهت نه لري. لما روي في الاحاديث المباركة چې اکثره ناسته د علیه السلام تربُّع وه وکذا عمرؓ م، ط« او د ډوډۍ خوړلو په وخت کې تربع مکروه تنزیهي ده لانّه من زي المتكبرين« در قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَعَقْصُ شَعْرِهِ** او د غه رنګ مکروه دي عَقص د وېښتانو په لمانځه کې، مراقي وائي چې عقص د وېښتانو د سر دا دی چې یا یې په څټ کې وتړي او یا یې په سر باندې

**فَائِدَه:** کوڅې د وېښتا نو د سر و د نرو ته بیله عقص روا دي« قال ابن العزؒ، ط.

**مَسْئَلَه:** محل او ځای د کراهت د عقص دا دی چې خارج الصلوٰة یې عقص کړی وي خواه د پاره د لمانځه وي اوکه دا غسې غوټه کړې وي: او کې فعل د عقص په لمانځه کې وکړي لمونځ یې بالاجماع فاسد دی لانه عمل كثير« حلبي ط« په حدیث شریف کې راغلي چې آنحضرت صَلی الله علیه وَسلم د یوه سړي سره چې تیریدې هغه معقوص الشعر لمونځ کاوه. نو یې ورته وویل: دَعْ شَعْرَكَ يَسْجُدْ مَعَكَ « پرېږده وېښتان دې چې سجده وکړي ستا سره«

**مَسْئَلَه:** هغه بعض پېښني ځوانان چې د مخه تر لمانځه د مخ د خوا وېښتان تر خپېنه لاندې کوي. چې په خاورو نه سي د کراهت به

خالی نه وی،،در . قَالَ المُصَنِّفُ :

## وَالْاِعْتِجَارُ وَهُوَشَدُّ الرَّأْسِ بِالْمِنْدِيْلِ اوالعمامة وَتَرْكُ وَسَطِهَا

**مَكْشُوْفًا** اودغه رنگه مکروه دی اعتجار. او اعتجار دادی چی سر په دسمال کی تړی یا په لنګوټه کی لکن مابین د سر به لڅ وي. لنهی النبی صلی الله علیه وسلم عن الاعتجار فی الصلوٰة. وهذا یفید کراهة التحریم» ط» او بعض علماء وائی چی اعتجار دادی چی لنگوټه وتړی مګر ږنه پټه کړی. په دی کی سنت د سجدی پاتیږی» در» او هغه خبره چی امام طحطاویؒ کړیده. تر مکشوف لاندی. ای مکشوف عن العمامة لا مکشوفًا اصلا لانه فعل مالا یفعل»

**درویش وائی:** چی شاید په زمانه کی دامام مذکور به دا کار خلګو نه کاوه. لکن په اوسنی زمانه کی خو دا کار په لوچه ګانو ځوانانو کی دوخت بیخی ډیرد ی. چی لنګوټه خو تړلی وی مګر مابین دسر یه دهره شئ څخه لڅ وي. کماهوالظاهر: قَالَ المُصَنِّفُ

**وَكَفُّ ثَوْبِهِ** اودغه رنګه مکروه دی راپورته کول او جمع کول دکالو دمخ دخوا یا د شا دخوا څخه هغه وخت چی سجدی ته ځی او بعض علماء وائی چی کف جمع کول دی دثوب کالو. او پرملا یه تړل. مراقی وائی چی په کف کی په دواړو معنا وو اظهار دتکبر او تجبر دی چی منافی دخشوع سره د لمانځه دی.

وورد فی الحدیث النبویؐ اُمِرتُ ان اَسْجُدَ عَلٰی سَبعة اعظم ولا ان اکفّ شعرًا ولاثوبًا متفق علیه»مر»، وفی الخلاصة: چی کف الثوب په دوهم تفسیر مکروه نه دی. قال الحلبیؒ وهوالمختار، وقال فی منیة المصلی: ویکره فی الصلوٰة کلماکان من اخلاق الجبابرة، وقیل لا بأس برفعه عن التراب» ورده الطحطاویؒ حیث قال والاصح الاطلاق» یعنی کف الثوب مکروه دی مطلقًا که څه هم ځای دخاورو څخه ساتی. ولی چی پر خاورو وا ینول دمخ په سجده کی چی مندوب دی نود ځای څخه شرف دی ترمخ» ط، در» قَالَ المُصَنِّفُ

**وَسَدْلُهُ** او مکروه دی سدل دجامی. سدل دادی چی لوی پټو چی طیلسان یه بولی





کذافی شرح الوقایة په سر واچوی او جوانب یه ایله وی یعنی پر اوږو یه نه واړوي او یا یه پر اوږو واچوی او لاسونه یه تر لستوڼو ونه کاږی. لکن کراهت هلته دی چی د تکبر دلاری وی. او که دعذر دلاری وو لکه یخ بیا مکروه نه دی.

**پوښتنه:** چی پر اوږو اچول په پوستین، چپنه، کوسی. جلکه، کوټ، بالاپوښ کی راځی. د دغو مذکوره ملبوساتو په باب کی خلاصه والا وائی: المختار عدم الکراهة»، لکن برهان الحلبی دا خبره نه منی. او وائی چی دخلاصی خبری سره یوازی بزازیه موافقه کړیده او صحیح خبره هغه ده چی قاضیخانؒ او جمهور یه کوی چی سدل مطلقًا مکروه دی. لانه اذالم یدخل یدیه فی کمیه صدق علیه اسم السدل لانه ارخاء الثوب بدون لبس معتاد وقد تصدی بعض الفقهاء الی المحاکمة بینهما. او وائی که چیری معنا داغو ستل د هغی جای دلاسو پر لستوڼو داخله ولو کی وه نودي لاسونه داخلول په لوستوڼو کی سدل دی. لکه کوټ، بالاپوښ جلك، عربی چپنه چی عبا یه بولی. هراتی چپنه. او کی عادة لاسونه نه تر کیښل. هغه ته سدل نه وائی لکه کوسئی. دغزنی پوستین، هراتی پوستین، دګیدړو پوستین، چی په شمال کی دافغانستان جوړیږی. یا د پړانګانو پوستین»

**درویش وائی.** چی احتیاط په دی کی دی ترڅو لود لاسونه کاږي. وَاللهُ اَعْلَمُ بعض خلګ دسمال پر اوږو واچوی. او کښته ځړیږی. لکه بعض عرب او بعض قاریان چی دغه فعل کوی. په دی باره کی بحرالرائق دفتح القدیر څخه نقل کړی دی چی داسی دسمال باید په وخت کی د لمانځه ایسته کی که څه هم دا دسمال نه لویږی» ط

**پوښتنه:** چی د مکروها تو څخه د لمانځه دی تلثم چی هغه پوټکول دی دخولی او پزی په لمانځه. ولی چی دا عادت د آتش پرستا نودی چی مجوس یه بولی په وخت کی دعبادت داور»

**پوښتنه:** په ژمی چی یخ ډیر وي خلګ دیخ دسببه خپل ګرم پټوان پرخوله او پزه هم اچوی نودا هم مکروه او که څرنګه، **جواب:** دا خو د جهت دیخ دعذر کوی. وَالضَّرُورَاتُ تُبِيْحُ المَحْظُوْرَاتِ،، مقوله شرعیه مسلمه ده **مسئله** سدل خارج الصلوٰة مکروه نه دی علی الصحیح» مر»

قال المصنف: وَالْاِنْدِرَاجُ فِيْهِ بِحَيْثُ لَا يُخْرِجُ يَدَيْهِ

اودغه رنګه مکروه دي په لمانځه کي پيچل د بدن خپل په يو جامه کي په داسي ډول چي لاسونه هم منځ يعني ځاي د ايستلو نه پريږدي. چې دي كار ته اشتمال الصماء پر يوه نه بلکه په احاديث شريفه او په فقه کي وائي. صَمَّا نبوي ډبري ته وائي يعني د ګان نخز نبوي ډبره جوړول په لمانځه کي مکروه دي: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اِذَا كَانَ لاحدكم ثوبان فليصلي فيهما فان لم يكن له الا ثوب فليتذر به وَلَا يَشْتَمِلْ اشْتِمَالَ اليهود، يعني كروي يوه لره ستاسي دوې جامي نو دي په دواړو کي لمونځ وکړي. که قميص او پرتوګ، يا قميص او پټو دي لنګ کړي. او يا دوه پټوان نو پټو دي لنګ کړي او بل د پرڅان واچوي. او که نه وه سړي لره مګر يوه جامه يعني پټو نو هغه دي لنګ کي. او په ټوله بدن دي نه راپيچي که هم ډير غټ پټو وي لکه راپيچل د يهودو، يعني دا اشتمال د يهودو سره مشابهت دي چونکه په دې باب کي صحيح نهي راغلي نو کراهت په تحريمي دي کما مر ذکره مرارًا. قال المصنف:

وَجَعْلُ الثَّوْبِ تَحْتَ اِبْطِهِ الْاَيْمَنِ وَطَرْحُ جَانِبَيْهِ عَلٰى عَاتِقِهِ الْاَيْسَرِ

اودغه رنګه مکروه دي ګرځول يعني اچول د ثوب لکه پټو لاندي تر راسته تغل او دواړه طرفه يې پر چپه اوږه اچول يعني په لمانځه کي مسئله: بيله لمانځه دا فعل مکروه نه دئ. وجه د كراهت په لمانځه کي مراقي دا وائي چي پټول دواړو اوږو پر لمانځه کي مستحب دي. نو ترك يې مکروه تنزيهي ده آه لانه ترك امر مستحب لا واجب او صحيح، نهي هم نسته په كښي.

درويش وائي: چي د عبارت نخز د مراقي داسي معلوميږي که سړي قميص اغوستي وو او اوږي دواړه په قميص کي پټي وي لکن دده پټو وو هغه يې پر طرز مذکور پر اوږه واچاوه. بيا كراهت نسته:

كتبه احقر العباد حقاني غفرله الباري





قال المصنف: وَالْقِرَاءَةُ فِيْ غَيْرِ حَالَةِ الْقِيَامِ

اودغه رنګه مکروه دي قرائت د قرآن په غير کي د حال د ولاړي لکه سړي چي رکوع ته ورسيږي او قرائت په پوره وي. اودغه رنګه مکروه دي اذكار مشروعه په انتقالاتو کي لکه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، پسله تمامه نخز د انتقال. لکه بعض امامان چي سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ. په سجده کي په خوله کي وي. مراقي وائي چي په دې کي دوه تاوان دي. يو ذکر مشروع يې په خپل ځاي کي پرينږو وبل يې بې ځايه ووايه. او امام طحطاوي وائي چي سُنت طريقه داده چي ابتداء د ذكر مشروع دي د ابتداء سره د انتقال يوځاي وي. او پائي د ذكر مشروع دي د پايه سره د انتقال يوځاي وي کي مخالفت د دغه نخز وکړي نو د سنت نخز مخالفت يې وکړي آه.

درويش وائي: چي بعض امامان په دې مسئله کي ډېره غفلت نخز کار اخلي. اول زده کړه خپل لمونځونه ؛ بيا کوه امامتونه ؛ د زکوة احکام دي نه زده؛ په لمانځه کي غافله؛ د لمانځه مقتديانو ته ضامن يه ؛ دا جواب به ستا نخز غواړي په قيامت ؛ په منطقو کي کراره کراره روان وې: چي نوبت د فقهي راغلي سوي ځاي يک. قال المصنف

وَاِطَالَةُ الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى فِي التَّطَوُّعِ وَتَطْوِيْلُ الثَّانِيَةِ فِيْ جَمِيْعِ الصَّلَوٰاتِ

اودغه رنګه مکروه دي اوږدول د رکعت يعني تر دوهم رکعت په نفلو کي اودغه رنګه مکروه دي اوږدول د دوهم رکعت يعني پر اول رکعت په ټولو لمونځو کي که فرض وي او که نفل پوره سره: چي د دريم رکعت د نفلو هم لکه اول رکعت دي لان كل شفع من النوافل كصلوٰة علىحدة، فائده مکروه والی د اطاعت د رکعت اولی په نفلو کي مذهب دي د شيخينو او امام محمد وائي چي اوږده وي دې. وعليه الفتوى. او مشائخ د طريقت په بيان کي د ثابت د لمانځه وائي چي د لمونځ سبب دي د ډيروالي د رزق او د برکت د مال، لکن پر دي طريقه، چي په اول رکعت کي به پسله الحمد لله سورة وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا، وائي او د دوهم رکعت کي به سورة . . . .

وَ اللَّیْلِ إِذَا یَغْشیٰ آه ووائی اوسره ددی چی وَ اللَّیْلِ إِذَا یَغْشیٰ آه تر وَ الشَّمْسِ وَضُحٰهَا آه اوږده
ده. او دا د حکم د مصنفؒ منافي ده هُوَ په فرض لمانځه کی کراهت د تطویل الثاني مسلم
دی. او په دریم رکعت کی به سورة وَالضُّحٰی وائی. او په څلورم رکعت کی به سُورَةِ اَلَمْ نَشْرَحْ وائی
او د اخبره منافی ده. د اول حکم سره د مصنفؒ چی تطویل د رکعت اول په نفلو کی مکروه بولي
نَعَمْ، تطویل د رکعت اولیٰ په فرض لمونځو کی لکه د سحار لمونځ مسنون اجماعاً دیٰ.
او په غیر کی د فجر هم مسنون دی په نیز د امام محمدؒ قاله الملا مسکینؒ. وفی النهر عن المعراج
وعلیه الفتوی.

د روایت وائی چی حکم اول د مصنفؒ په باره کی امام محبوبیؒ او امام ابوالیسرؒ او ملا علی القاریؒ
او در مختار وائی چی نه دی مکروه لان النوافل امرها اسهل من الفرض، وهـذا عند محمدؒ.
او باته حکم ثانی سو په فرضی لمونځو کی متفق علیه دی» او بعض علماء وائی چی په نفلو کی داهم
نه دی مکروه، کما نقلنا عن مشائخ الطریقة **د زیات والی اندازه** » مصنفؒ خو په
مَرَاقی کی د دری ایت تطویل مکروه بولي. او کم تر درو ایتو تطویل د ثانی رکعت مکروه نه دیٰ
په حدیث شریف کی راغلی دی چی په یوه سفر کی آنحضرت صلی الله علیه وسلم د سحار په لمانځه
کی معوذتین وویله او سره ددې چی قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ آه تر قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ آه
یو ایت اوږد دیٰ. او امام زاهدیؒ وائي چی امام حلبیؒ په هم تحسین کړی او وائی چی اندازه
د تطویل د مکروه په اعتبار د سورتو مختلف کیږی. په قصار مفصل سورتو کی د دری ایت
تطویل کثیر او مکروه دی. او په طوال مفصل کی پس اوه ایته لا زیاده لیږه دی او
مکروه نه دیٰ. نو بناءً علی ما قال الزاهدیؒ دا سوال نه وارد یږی چی په صحیح حدیث کی
راغلی دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم د اختر و په لمونځو کی او د جمعې په لمانځه کی
په اول رکعت کی سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰی آه او په دوهم رکعت کی لوستل» هَلْ أَتَاكَ حَدِیْثُ
الْغَاشِیَةِ آه وایه او سره ددی چی دوهم سورت تر اول ۷ ایته اوږد دیٔ.
**پوښته**: چی مصنفؒ په مراقی کی په بیان کی د حکم ثانی چی تطویل د دوهم رکعت
په نفلو کی صحیح دی او دا سی وائی: الفرض بالاتفاق والتطویل فی النفل علی الاصح آه





دا صح مقابل صحیح دیٔ نو دې ته اشاره ده چی تطویل د دوهم رکعت په نفلو کی صحیح
دیٔ. نو دی ته اشاره ده چی تطویل د دوهم په نفلو کی صحیح دیٔ. وهـذا معمول لاکثر
العلماء فی النوافل وعلیٰ هذا اعتقاد الفقیر وان لم یکن اهلاً للفتوی ولکن سهولة
امر النفل حملنی علیٰ هذا »
کړمنېز د نفلی لمونځو په نورو احکامو نظر وکړو. نو به په نفلو ډیر سهولتونه او
او اساني تر فرض ووینو. فلیکن تطویل الرکعة الثانیة علی الاولیٰ فی النوافل ایضاً من
قبیل تلک السهولات » وَقد اشار محمدؒ الی بعض تلک السهولات فی عدم کثرة تطویل
الرکعة الاولیٰ علی الثانیة فی النوافل کما مَرَّ وَ اللّٰهُ تعالیٰ اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب

## قال المصنفؒ وَتَكْرَارُ سُوْرَةٍ وَّاحِدَةٍ فِيْ رَكْعَةٍ وَّاحِدَةٍ مِنَ الْفَرْضِ

**مسئله**: تکرار او دغه نګه مکروه دی مکرر ویل د یوه سورة په یوه رکعت کی د فرضی لمانځه
د سورة په دوو رکعتو کی هم مکروه دی لکن کی بل سورة ییاد وو، او کی بل سورة نه یاد وو لکه بعض
عوام چی بیله » قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ » به بل سورة نه وی یاد واجب ده چی هغه سورة به مکرر وی
ولی چی ضم د سورة د فاتحی سره واجب دی کما مَرَّ، وجه د کراهت به په دوه رکعته کی داده چی
داسی د عصر نبویؐ څخه نه ده راغلی. **سوال**: په حدیث نبویؐ کی داسی راغلی دی چی
آنحضرت صلی الله علیه وسلم په اول رکعت کی د ماښام د لمانځه سورة الزلزال ووایه. او په دوهم
رکعت کی هم هغه سورة ووایه **جواب** علیه الصلوٰة والسلام قصداً د پاره د بیان د جواز
بیرته هغه سورة ووایه په دوهم رکعت کی مکرر کړی.
**مسئله**: که سړی په اول رکعت کی یو سورة ووایه او بیا یه هیر شوه چی ما کوم سورة ووایه
نو به په دوهم رکعت چی سورة شروع کړی و، بیا د سوه چی دا سورت خو ما په د مخه رکعت کی
ووایه. نو پس پوره دی کړی او دا سورت دی نه پریږدی: لقوله علیه الصلوٰة وَالسلام اِنْ
اِفْتَتَحْتَ سُوْرَةً فَاقْرَئْهَا عَلٰی نَحْوِهَا **پوښته**: چی مصنفؒ قید د فرضی لمانځه
ووایه ولی چی تکرار د سورة په یوه رکعت یا په دوارو رکعتو کی په نفلو کی مکروه نه دی لان شانه
اوسع:

ولې چې حال د نفلو فراخه دی. او په صحیح حدیث کې راغلي دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم یوه شپه د تهجد په لمانځه کې ترسحاره یو آیت وواییه، «اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ» الاٰیة او د ډېرو سلفو صالحینو څخه نقل سوي دي چې دوی به ټوله شپه په یوه آیت د خوف یا آیة الرجاء، یا آیة العذاب، یا آیة الرحمة، سره رڼا کړه وله» قال المصنف

## وَقِرَاءَةُ سُوْرَةٍ فَوْقَ الَّتِیْ قَرَأَهَا

او دغه رنګه مکروه دي ویل د یوه سورة یعنی په دوهم رکعت کې چې فوق یعنی د مخه وي تر هغه سُورة چې ده ویلي وي یعنی په اول رکعت کې. مثلاً یو سړي په اول رکعت کې قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ آه وواییه نو په دوهم رکعت کې قرائت د تَبَّتْ یَدَآ آه مکروه دی. چې ورته منکوس قرائته وائي.» چې ابن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه په دې باره کې وائي: مَنْ قَرَأَ الْقُرْاٰنَ مَنْكُوْسًا فَهُوَ مَنْكُوْسٌ، که چا وواییه قرآن شریف چپه یعنې د اخیر د خوا نو هغه سړی سرچپه سړی دی

**پوښتنه**: په پاره عَمَّ یَتَسَآءَلُوْنَ کې ټوله سورتونه منکوس ویلې کیږي **جواب** هغه د پاره د آسانی پرکوشنیانو دي چې ده قصارو سُورتو حفظ او وبنا آسانده تر لویو سُورتو. او په لمانځه کې هغه ترتیب ویل مکروه دي. حَتیٰ چې د قرآن ویل منکوس په کراهت کې بالادي تر تکرار د سُورة په دوه رکعتو کې. علماء او فقهاءٌ وائي که د چا فهم نه وو په اول رکعت کې قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ وواییه په دوهم رکعت کې دی هم دغه سورة ووائي، قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ دی نه وائي. او که چا قصداً په اول رکعت کې قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ وواییه په دوهم رکعت کې به هم دغه سورة وائي که څه هم تکرار مکروه لازمیږي. ولې چې کراهت د منکوس ویلو بالادي تر کراهت د تکرار السُّورة فی الرکعتین،

**فَائِدَه**: په اشباه والنظائر کې وائي چې په نفلو کې قرآن مبارک منکوس ویل مکروه نه دی. ولې چې دائره د نفلو فراخه ده. او امام غزیٌ او حموی هم دا خبره تائید کړېده او د امام ابوالیسرٌ څخه هم منقوله ده» او هم پر دغه خبره یقین کړی دئ. بحر الرائق او در مختار وغیرها. لکن نقل الامام الطحطاویٌ عن بعض الفضلاء ولم یسمیه» هغه فاضل وائي.





چې د هغه خبري څخه د مراقي چې نکس د پاره د تعلیم الاطفال دی دا معلومیږي چې د قرآن مبارك منکوس ویل خارج الصلوٰة هم مکروه دی. لکون الترتیب من واجبات القراءة نو په نفلو کې چې لمونځ خودی په طریق اَولیٰ باید نکس مکروه وي، او دائره د نفلو که فراخه ده خو مطلقانه ده بلکه په بعض احکامو کې آه: قال المصنف

## وَفَصْلُهُ بِسُوْرَةٍ بَیْنَ سُوْرَتَیْنِ قَرَأَهُمَا فِیْ رَکْعَتَیْنِ

او دغه رنګه مکروه دی جلا کول د مصلی په یوه سورة سره په مابین کې د دوو سُورتو چې ده ویلي وي هغه دوه سورته په دوو رکعتو کې. حاصل یې دا دی چې لمونځ کوونکی په اول رکعت کې یو سورة وواییه. او په دوهم رکعت کې هغه متصل سورة پرېښوو، بل سورت یې وواییه داسې فعل مکروه دی. او بعض فقهاءٌ وائي چې دا د ما بین سُورة چې ده پرېښو که اوږد وو یعنی لس آیت تر هغه وو بیا مکروه نه دئ. ولې چې په فتح شریف کې وائي چې دوه سورته لنډ که په مابین کې پرېږدي مکروه نه دی نو دا یو سورة طویله چې ده پرېښوو په ځای کې د دوو لنډو سورتو دریږي قاله البحر الرائق وینبغی ان یفتیٰ به» ط، بحر، در. قال المصنف

## وَشَمُّ طِیْبٍ قَصْدًا وَتَرْوِیْحُهُ بِثَوْبِهٖ اَوْ مِرْوَحَةٍ مَرَّةً اَوْ مَرَّتَیْنِ

او دغه رنګه مکروه دی بُوی ول د خوشبوئي په قصد سره او باد کول په لمن یا لنګوټه وغیره سره ځان باندې. او یا پیک وهل پر ځان یو وار یا دوه وارہ **پوښته**: د شم طیب مطلب دا دی چې د خوشبوئي عطر وبنیبنه وپه تر و نسې او بوي ئې کړي. او کې عطر د مخه تر لمانځه په ځان پوری مښلی وه او هغه خوشبوئي په لمانځه کې دده تر پېزې پورې رسیدله هغه کراهت نه لري **مسئله**: که سړي د سجدې ځای په عطرو وهلی وو او یا د عطرو د بنیښي سرخلاصي د سجدې ځای ته نږدې ایښی وه چې په سجده کې خوشبوئي پرې چې دا کار هم مکروه دی. او کې د عطرو بنیښه پلاس کې نیولې وه او په لمانځه کې بې ګړې ګړې بوی ول لمونځ یې فاسد دی. ولې هر څوك چې دی په دغه فعل کې ووینی یقین یې راځي چې

داسرې پرلمانځه نه دی. اوبعض شراح دمنیة المصلی وائي که دا کار په عمل کثیر نه وو لمونځ
یې نه دی فاسد ط ،، اویا دکول پرځان باندی په لمن وغیره سره یو واریا دوه واره که غرم
عمل قلیل دی مکروه دی. اوکه دری واره لمن ووهله چې اندازه دعمل کثیرده لمونځ یې فاسد
دئ. اوپه ذخیره کی وائي که پیلک یې یو وارپرځان ووهی لمونځ یې فاسد دئ، بخلاف
الثوب چې هغه مکروه دی چې دری واره تـه ورسیږی. ونقله رضی الدینؒ فی المحیط عن
المنتقی، **مسئله**: په لمانځه کی مچان یا غوماشی دځانه څخه شړل مکروه دی مگرکه مصلی
په عذاب کی نو په عمل قلیل دی وشړی. **پوښـتـنه**: چې په کور یا مسجد کی بادپکه، وه
یا هوائی یا زمینی چې بادیې پرمصلی مبنی کراهت نلری که څه هم دده کالی ورښوروی.
قـال المصنفؒ:

## وتحویل اصابع یدیه اورجلیه عن القبلة فی السجود وغیره

اودغه رنگه مکروه دی اړول یعنی چپول دگوتو دلاسو اویا دپښو دجهت څخه دقبلی په سجده کی یا په غیرکی دسجدی. ولی چې په دې ترلک د موضع مسنون دئ. لقوله علیه الصلوٰة والسّلام: فلیوجّه من اعضائه الی القبلة ما استطاع. د ما استطاع قید په ددی دپاره دی چې دبعضی اندامو مخامخ والی وقبلې ته ممکن نه دی لکه شاه، اولوړه خواد سرې اوکښته خواد سرې. قـالَ المصنفؒ:

## وترك وضع الیدین علی الرکبتین فی الرکوع

اودغه رنگه مکروه دی نه ایښوول دلاسو پر زنګنو په رکوع کی. وزاد علیه فی المراقی. اودغه رنگه مکروه دی نه ایښوول دلاسو پر ورنو په مابین کی ده دوو سجدو، اوپه وخت کی دالتحیات، اودغه رنگه مکروه دی پریښول دایښوولو د استه لاس پرچپه لاس په وخت کی دولاړې: ددی ټولو دلیل دادی چې په دی کی ترلک دسنت لازمیږی نوکراهت دټولو تـنزیهی دی، مرط،
درویش وائي چې ددی مکروهاتو زیاتوالی څخه دمراقی دامعلومیږی چې مصنفؒ چې په سرکی دفصل ووئیله چې مکروهات د لمانځه ۷۷ هغه تقریب وو حصر نه وو، کما نبّه علیه





فی المراقی هناك بقوله تقریبًا لاتحدیدًا ،، قَالَ المُصنفؒ:

## والتثاؤب

اودغه رنگه مکروه دی ارږمی په لمانځه کی. ولی چې دا علامه دتکاسل اودیرخوړلک ده غالبًا، **مسئله**: که پیښه شي ارږمی غالبه سوه نودی دې خوله ټینګه کړي که څه شونډان په غاښونو ټینګوی. اوکه ارږمی په غاښونو دفع کیدله نودی دې استه لاس شادی پرخوله ونسی. اویادی لستونړې پرونسی که په حال کی دولاړې وو. اوپه ناستی وغیره کی دی چپه لاس پرخوله ونسی. په حدیث شریف کی راغلی دی: چې خدای مکروه گڼلی ارږمی، پس چاته چې ارږمی ورسی هغه دی ردکړی اولاس دی پرخوله ونسی **مسئله** که دفعه د ارږمی دشونډو په ټنگیدو سره کیدله پرخوله لاس ایښوول مکروه دی، ط، ن، ولی چې خوله پټول په لمانځه کی مکروه ده مگر ضرورت له سببه ،، س، قـالَ المُصنفؒ:

## وتغمیض عینیه

اومکروه دی پټول دسترگو په لمانځه کی. لقوله علیه الصلوٰة والسلام اذا قام احدکم فی الصلوٰة فلا یغمض عینیه، ولی چې په پټولو کی کتل ومحل مندوب ته چې ځای دسجدې دی یا ځیگردی په ولاړې اوناسته کی فوتیږی نو چونکه صریح نهی راغلی دی نوکراهت تحریمی دئ. لکن په بحرالرائق کی وائي چې بنائی داکراهت به تنزیهی وی چې بیله ضرورت اومصلحته وی.
درویش وائي چې داخبره منافی ده دهغه قانون سره چې صریح نهی دلالت پرکراهت تحریمی کوی کما مرّمرارًا عن ط وغیره بل عن البحر ایضًا: والجواب چې دغه حدیث په سند کی ضعف دی کما فی البحر، **فائده دسترگو پټولو**: ۱ داچې سترگی ددې دپاره پټی کړی له دی سببه چې نظر یې پربوداسی شئ واقع کیدی چې مانع دخشوع وو، نهر، ۲ چې کمال خشوع یې بیله پټوسترگو نـه سوای کولای، در، ط، ۳ غرض دپټولو دسترگو ده داوو چې نظر یې داغیارو څخه قطع سی اوتوجه یې یوازی وملك غفار ته سی مجمع الانهر، ط، قَالَ:

## ورفعهما للسّماء

اودغه رنگه مکروه دی پورته کول دسترگو وطرفته داسمان په لمانځه کی لقوله علیه الصلوٰة والسّلام: مابال اقوام یرفعون

ابصارهم الی السماء: غه حال دی د بعض اقوامو چې پورته کوی سترګی و طرفته د اسمان لَيَنْتَهِيَنَّ. یا به دوی نهی کیږی د دغه عمل نه اَوْ لَتُخْتَطَفَنَّ او یا به حمله کیږی ی اَبْصَارُهُمْ د دوی سترګی. درویش وائی چې د دغه وعید شدید نه تحریم معلومیږی. او اجماع دامن بردی ده چې دا فعل په لمانځه کی مکروه دی.

**مسئله**: د باندی تر لمانځه د دعاء په وخت کی سترګی و اسمان نه پورته کول نیز د جمهورو رَوادی. ولې چې اسمان قبله د دعاء ده لکه چې کعبه شریفه قبلة الصلوٰة ده. افاد العلامة نوح، کذا قال الامام الطحطاوی. قال **وَ التَّمَطِّی** او دغه رنګه مکروه دی کشش کول په لمانځه کی. مراقی په علت داوائی چې تمطی د تکاسل او سستی په عبادت کی علامه ده نو مکروه تنزیهی ده، ط، قال **وَ الْعَمَلُ الْقَلِيْلُ** او دغه رنګه مکروه دی عمل قلیل په لمانځه کی. لکن هغه عمل قلیل چې منافی د لمانځه سره وی لکه کښل د ولښتو د نږیری یا سر وغیره. او یا ویشتل د غشی په صلوٰة الخوف کی. یا د مصلی په ضرورته تنګ، علامه طحطاوی وَاَمَّا المطلوب فیها فهو منها کتحریک الاصابع لعدّ التسبیح فی الصلوٰة یعنی که چیری د عمل قلیل مطلوب وو په لمانځه کی نو هغه د لمانځه قسمه نه دی لکه ګوتی ښورول د پاره د شمیر لو د تسبیحاتو لکه په صلوٰة التسبیح کی.

**پوښتنه**: چې په ډیرو کتابو کی د فقه حنفی داسی وائی چې شمیرل د تسبیحاتو په ګوتو سره په صلوٰة التسبیح کی مکروه دی فما وجه الجمع بین ما قالوا و قال. **جواب** چې عبارت د فقهاوو محمول پر دے دی چې ګوتی خلاصوی او مټوی یه د پاره د حساب د تسبیحاتو د صلوٰة التسبیح. او دا بی له شکه مکروه دی. او مراد د طحطاوی چې ګوتی صرف ښوره وی یعنی ګوتی خپل پر ځای نینګه او سسته وی په نیز د تسبیح ویلو دا مکروه نه دی. وهو وجه التطبیق هدیت الیه بالتوفیق فلیکن منك علی ذکر. قال المصنف

**وَاَخْذُ قَمْلَةٍ وَقَتْلُهَا** او دغه رنګه مکروه دی را اخستل د سپږی او بیا په وژله. لکن دا هله مکروه دی چې مصلی ته ازار نه رسوی. او کی ازار ور رسوی یعنی مصلی ئی خوږی او د لمانځه د خشوع څخه ئی ایستلی وی او هغه ځای





دردهم کاوه نو بیه نیول او وژل روادی. لکن دوینو څخه دی ځان ساتی ولی چې امام شافعی د وینه مردار بولی. **پوښتنه**: د امام ابویوسف څخه روایت دی چې اخستل د سپږی او وژل د هغی په لمانځه کی مکروه دی **جواب** چې هغه روایت محمول بردی دی چې قصدًا دی بیله عذره، قاله الحلبی.

**پوښتنه**: چې د کیکی، غماشی، میږی، مچ، هم دا غسی حکم دی په عذر او ایذاء کی او بیله عذره فافهم. **مسئله**: چې سپږی که سری زهیر کړی او ده ونیوله نو بیا د قتل کی او یا دی بنخه کړی والدفن اولی. لکن دا په غیر کی د مسجد او په مسجد کی په لمانځه کی که په عمل قلیل وژل کیدا له مړه دی کړی او ورو ندی ځی نه ایله کوی لان الموذیات لا تطرح فی المسجد، او کی مړه کړه پوستکی ئی په مسجد کی نه غورځوی، ط

**وَتَغْطِيَةُ اَنْفِهٖ وَفَمِهٖ وَوَضْعُ شَيْءٍ فِیْ فَمِهٖ يَمْنَعُ الْقِرَاءَةَ الْمَسْنُوْنَةَ** او دغه رنګه مکروه دی په لمانځه کی پټول د پزی او د خولې یعنی په ټکره وغیره سره چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم د دغه پټولو څخه منع کړیده کما مر. او دغه رنګه مکروه ده ایښودل د شئ په خوله کی چې لمونځ کوونکی منع کوی د قرائت څخه په وجه مسنونه باندی. **پوښتنه**: چې د دی مسئلی تفصیل داسی دئ چې په خوله کی نیولئ شئ یا به داشئ وی چې نه ویلیږی لکه سره زر وغیره نو دغه شئ منع کاوه لمونځ کوونکی د اصل قرائت څخه، او یا په قرائت کی داسی تغییر راتی چې لمونځ په فاسدیدی نو لمونځ د ده فاسد دی. او که دغه شئ منع کاوه قرائت واجبه نو د دغه شئ څخه لمونځ مکروه تحریمی دئ. او کی قرائت مسنونه منع کاوه نو د دغه شئ وضع مکروه تنزیهی ده. او که دغه شئ داسی وو چې په خوله کی ویلیدئ لکه ګوړه، بوره، پلمیټ، وغیره نو کی د هغه شئ او به تیری کړے لمونځ په فاسد دی که څه هم بیله زوره لو تیری کړی، س، ط، قال المصنف

**وَالسُّجُوْدُ عَلٰی كَوْرِ عِمَامَتِهٖ** او دغه رنګه مکروه دی سجده پر وله د لنګوټی باندی. او د اکراهت تنزیهی دی. ولی چې په

حدیث شریف کی راغلی دی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم دپاره دبیان دجواز په لانځه کی پروله دلنګ نی سجده وکړه. **پوښتنه**: چی که ضرورت وو لکه ډیره ګرمی اویا ډیره یخنی وه اویا ځکه ډیره زیږه وه نو بیا کراهت نشته، او تکبرًا مکروه ده، مر، ط عز.

قال المصنفؒ **وعلى صورةٍ** اود اغز، نګه سجده مکروه ده پربت باندی، لکن چی ذی روح شئ وی کما فی المراقی. ولی چی په دی کار کی مشابهت د عبادت ~~سره~~ دبت ذی. نود درختی وغیره پر صورت باندی سجده نه ده مکروه **پوښتنه** چی د صورت چی د ذی روح وی په مسئله کی تحقیق او تفصیل ته ضرورت ستنه. نوعوبن و نلیسه زده یه کړه او عمل هم په کوه. **افسوس** په اوسنی زمانه کی بعض کوڅې والا خلک اویا پیشینی کسان څپلو کورو کی په الماری کی. اویا پر سرتاخو دقیمتی ډېرو څخه مجسمی بتان، د مرغیانو، دنو، وحیوانانو یه ایښی وی. او په عمومی کورو کی د مسالی مجسمې دپیلانو، زمریانو، او دنورو اقسامو د حیواناتو پر سرتاخو او الماریو کی معلومیږی. او دکورد ګڼیانو دپاره دغه مجسمی دبازار څخه، ایسی. نو اشد دغو بتانو هغه دی چی دلوبځ کووںکی و مختوی. اوبیا هغه بت چی پر سریه برابروی. اوبیا هغه بت چی ترشاوی. فقهاء حضراتؒ بت دوه قسمه بولی.

**بت دوه قسم دی**: یو مجسمی، او بل ظل شمسی، چی عکس اویا فوتو یه بولی د دواړو حکم یو دی په حرمت کی چی پوره وی. اوکه سریه پری وو بیا یو لاحرمت نه لری او هغه خبره چی طحطاوی مصری په خپل مجسم تفسیر القرآن کی کړیده چی د ظل شمسی بت او عکس حرمت نه لری. نو ځکه دده تفسیر په دغو بتانو ډک دی پر هغه مذهبی کسانو او علماوو د تولی نری، دکړی دی خصوصًا علماوو د قندهار افغانستان چی هغود دی خبری په رد کی مکمله، رساله جوړه کړیده. اود دغه تصویرونه او عکسونه یه دقرآن شریف اهانت ګڼلی دی.

**پوښتنه**: چی په مجسمو کی خو اعتبار سر لره دی. چی سر یه باقی وی نو کی پینی او لاسونه پری وی هم حرام دی. اود ظل شمسی په عکسو کی بعض فقهاؤ دا فتوی ورکوی





که دا عکس تر داسی ځایه پوری وو چی انسان چی پر هغه ځای پری کړی بقا نسی کولای نی څه هم سر باقی وی. لکه پر مرو څولو تهو، اویا پر پاسپوتهو، او نور مثالونه، نود داسی عکسو د رلوډل د ځانه سره حرام نه دی، "لان الضرورات تبیح المحظورات."

او هغه عکسونه د ښځو یا نرو چی په مکمله توګه د بیته فروشیو په د وکانو کی د فاحشاتو ښځو څرګېږی د هغو په حرمت کی هیڅ شک نشته" اویا په اوسنۍ زمانه کی په ویسی آرو کی چی بیځی د لخوسرتر پایه ښځو او نرو عکسونه ښکاره کوی ستی چی د جماع عکس یاد ښځی د لنګید و عکس هم په کښی وی. د دی په حرمت کی هیڅ شک نشته او ورته کتلو کی په ګناه کار دئ. وعلی هذا فقس الآلة المسمات بتلویزون فی بعض الامورؒ فتدبر.

**فائده** فقهاوو تصریح کړیده که چیری تمثال یعنی بت تر پښو لاندی وو اویا په ځای کی د ناستی وُو. پر هغه کی کراهت نشته. ولی چی دا اهانت د تمثال دی تعظیم نه دئ. **سوال** چی په حدیث کی د جبرئیل علیه السلام راغلی دی "إنّا لا ندخل بیتًا فیه کلب ولا صورةٌ" نو دغه حدیث په عموم کی خو ما تحت الرجلین یا محل الجلوس" بت هم داخل دی نو بایدهغه مکروه سی. **جواب** د دغه حدیث مخصص موجود دی چی یو وخت حضرت جبرئیل علیه السلام اجازه وغوښتل د علیه السلام څخه د حجری دور تلو. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل اُدخُل" جبرئیل علیه السلام منع وکړه او وی ویله: کیف ادخل وفی بیتک ستر فیه تصاویر فان کنت لا بد فاعلًا فاقطع رؤسها او اقطعها وسائد او اجعلها بساطًا.

**سوال** د دی جواب څخه خو دا معلومیږی چی که بت په بساط کی وی که څه هم په ځای کی د سجدی وی بايد کراهت ونه لری. **والجواب** ان فی هذه الصورة فیه تشبیه بعباد نها حالة الرکوع والقیام وغایة تعظیم لها ان سجد علیها" ط در

**فائده**، امام طحطاویؒ وائی چی په دی موضوع کی چی صوت د حیوان پر دراهم او دنانیرو وی یعنی کافی نقش وی. آیا د امانع د دخول څخه د ملکو ګرځی او که څه نګه! قاضی عیاضؒ په شفاء کی وائی چی مانع نه ګرځی. او امام نوویؒ په شرح کی د مسلم وائی

چې مانع ګرځي. دَرَوُلتي وائۍ چې فتوٰی پرقول دَ قاضي عیاض ده لضرورة الناس فی حفظ الدراهم والدنانیر فی الدور والبیوت: او مُلاعلی قاریؒ په شرح کی دمشکوٰة دامام خطابیؒ نه نقل کړي او دابن الملک نه هم چې ملائکه چې نه داخلیږی و کورته چې په هغه کی سپی یا صورتونه دی چې په کور کی ساتنه حرامه وي لکه دجنګ سپی یا خندرکی په اوس زمانه کی. یا مجسمه دزمریانو وغیره کما مرذکره یا دظل شمسومکمل دلیمرانو یا پلار، وغیره. او کی ساتنه په کور کی رواوه لکه دښکار ښازی اویا دکښت او پالیز او باغود ساتنی سپی او یا کور دساتنی دپاره دغلو نه، او یا هغه صورتونه چې تر پښو لاندی کیږی او یا دتکیه په بالښتا نو کی وی هغه دخول دملکونه منع کوی وهغه کورته

# دَپَادُوړُخَبَرَهُ

مراد دغو ملکونه چې کورته نه ورځی په سبب دوجود دسپی یا په سبب دصورت ملکی درحمت دي. ولي کِرَامًا کَاتِبِین، چې حفظ یه بولی دسړي نه نه جلاکیږی مګر نه هغه وخت که سړي چکروځی. او یاد ماینی سره جماع کوی. باید دمذهب نه د قاضي عیاضؒ سړي دانه فهموی چې عکسونه اخستل نو رَوادي بلکه بیله ضرورته لکه دپاسپورټ دپاره یا جواز تجارت دَ پاره وغیره عکسونه اخستل نا روادی، لکونه نوعًا من التعظیم»

**غَلَطِیَا**: لعض عوام مریدان دخپل پیر عکس مکمل واخلی او په بنداره کی وَنسی او په کور کی سنه په احترام و ځړوی داسخته ګناه دَه. او تشبه ده دَ قوم نوح علیه الصلوٰة والسلام سره چې هغو اولادّ صالحانو خلګو عکسونه بی دپاره دعبرت په کور کی ایښوول رفته رفته اخیر یه عبادت دَ هغو شروع کړه. قَالَ المُصنفُ

## وَالْاِقْتِصَارُ عَلَى الْجُبْهَةِ بِلَا عُذْرٍ بِالْاَنْفِ

اودغه رنګه مکروه دی یوازی پر تندی سجده کول چې په پزه کی عذر هم نه وي. او کی پزه





زخمی یا خوږ یه دل بیا نو اقتصار پر تندی روا دی بلا کراهته، مراقی وائۍ لترک واجب ضم الانف الی الجبهة فی السجود فیکون الاقتصار المذکور مکروه تحریمًا» اودغه رنګه مکروه دی یوازی پر پزه سجده بیله تندی په نیز دامام اعظمؒ که څه هم عذر نه وی یعنی سجده یه روا ده سره دکراهته» او یارانؒ وائۍ چې بیله عذره په تندی کی سجده یه روانه ده قَالَ المصنفُ

## وَالصَّلٰوةُ فِی الطَّرِیْقِ وَالْحَمَّامِ

اودغه رنګه مکروه دی په لارکی او په حمام کی لمونځ کول.

په لارکی خود دی سببه چې لار دعامو خلګو حق ده او ده ور نه مشغوله کره. او بل خلګ په دتیریدو نه منع کوی، او بل دمصلی زړه په خلګو سره مشغوله کیږی نو خشوع تر دَ لاسه ځی تاوان دی، قال شارح المشکوٰة چې دا کراهت چې دی په کلوا و قریو کی دی چې دخلګو عبور و مرور په لاروکی دیر وي. او په صحرا او دښتو کی نا نلری لعدم العلة للکراهة هنا کَ.

**پوښته**: چې دحمام دلمانځه دکراهت وجه لعض فقهاءؒ دا وائۍ چې دا محل دی دازالة د نجاساتو. او ځای دی داو بوتو یو لود غسلونو. که دا علت وی نو که یو سړي په حمام کی یو ځای په پاکو اوبو پریمنځی نو لمونځ بیا مکروه نه دی. وهذا مذهب قاضیخانؒ و بهذا جزم الکمال فی زاد الفقیر. او لعض فقهاءؒ یه علت دا بولی چې حمام متراو مأوی د شیطانانو دی» کما روی ان ابلیس لما لبسط الی الارض یعنی شیطان چې رانده سو او دسمان نه و ځکی ته راشوه سُو. نو خدایؒ تعالی ته ئې خواست وکی چې ماته یوه خونه راکړي خدایؒ ورته وویل چې ستا خونه په حمام. شیطان ورته وویل چې ماته دناستی ځای راکړی خدایؒ ورته وویل ستا دناستی ځایونه بازارونه دي. ابلیس ورته وویل ماته ملګری راکړي. خدایؒ ورته وویل چې ستا ملګري شاعران دي یعنی هغه شاعران چې دفسق او فجور غزلې جوړوی یا په ښځو پوری یا په هلکانو پوري. لکه شاعران دزمانی د جاهلیت. نو پردی تقدیر که څوک په حمام کی یو ځای پاک پریولی هم لمونځ په کښی مکروه دے

**پوښته** چې سړي باید په حمام کی لمونځ و نه کړي مګر دجهته د ضرورته دفوت دوخت دلمانځه:

**مسئله**: په هغه ځای کې چې حمامي کېښينې او خلک کالي کېږي لمونځ مکروه نه دئ. ولې چې نه دا ځای محل د نجاست دی او نه مقر د شيطانانو دئ: قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَفِي الْمَخْرَجِ** او دا غرنګه مکروه دی لمونځ په مکان کې يا په اصطلاح تشناب کرځه هم محل يه سميت وي او يا په کاشي خښتو فرش وي. او پوښ درونکي کود هم هم په کښې پروت وي. ولې چې اصل وضع د دې ځای د غولو بولو کولو دپاره دی. نو عبادت خصوصًا لمونځ په کښې مکروه دی» قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَفِي الْمَقْبَرَةِ** او د غرنګه لمونځ مکروه دی په اديره کې. ولې چې په دې کې تشبه د يهودو او نصارا او ورته ده قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لعنة الله على اليهود والنصارى اتخذوا قبور انبيائهم مساجد،

طحطاوي وائي چې که قبرونه لوړوي او يا ترشاوي او يا د سړي تر پښو لاندې په برخا نوکښې وي. قال ويستثنى قبور الانبياء عليهم السلام. نو د دوې په مقبره کې لمونځ مکروه نه دی تر هغو چې د قبلې وخواته نه وي» لانهم احياء في قبورهم؛ قال شارح المشكوة چې قبر د اسمٰعيل عليه الصلوٰة والسلام په حطيم شريف کې تر ميزاب الرحمة لاندې دئ. او په مابين کې د حجر اسود او د زمزم د شا قبرونه د اويا نبيا نو دئ. او سره د دې چې دغه دوه ځايه ښه ځايونه د لمونځ دي. او قهستاني د کتاب الجنائز نه د مضمرات نقل کوي چې وجهت ته د قبر لمونځ مکروه نه دئ مګر هغه وخت چې ډېر نژدې ورته ولاړ دی حتی چې که مُصلي هر څو د خشوع لمونځ کوي خو بيا هم په سترګې په قبر واقع کيږي. دَرَوِيش وائي چې د قهستاني د روايت نه دا معلومه شوله که قبر ترشا د مُصلي وي نو لمونځ مکروه نه دی، وهذا خلاف ما قال الطحطاوي کما مرّ. وعلى هذا، ومخته د قبر د ميت صالح خلک د لمونځ کوونکي ځای پريښ دی چې ميت په ترشا راځي. نو په ځای کې نفل مکروه نه دئ. کما في مقابر اولياء هرات ومقابر صالحي غزنين» وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ:

**پوښته**: چې په يوه حديث صحيح کې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم نهی کړې دی د لمانځه نه په اوه ځايه کې على المزبلة يعني خا ک انداز د کوړو





۲ المجزرة او د اوښانو او يا غويو د قصابي ځايونو کې. د دې دوو ځايو علت د کراهت خو معلوم دی چې دا دوه ځايه محل د نجاساتو او د وينو او خوشيو دی ۳ و المقبرة او په اديره کې د دې د کراهت وجه ذکر کړه شوه ۴ وقارعة الطريق او په مابين کې د لارې د دې تفصيل هم د مخه تير شو. ۵ ومعاطن الابل يعني ځای د څوکيدو د اوښانو وقال يحيى بن ادم چې د لمانځه د اوښانو ځای د اده چې اوښان په اکثر کې يو پر بل حملې کوي. نو د دوی د جنګ نه بيره ده دې سته چې لمونځ کوونکي به تر پښو لاندې کړي. دَرَوِيش وائي وَلَا اقل تر دې چې لمونځ کوونکي به په تشويش کې واچوي. او حضور د لمانځه به د لاسه ورکړي. ومعنى کونها من الشياطين کما في الحديث النبوي انها على خصلة الشياطين في النفار وتشويش خاطر المصلي»

**پوښته**: چې نهی د لمانځه نه د اوښانو ځای تنزيهي دی ط» دَرَوِيش وائي چې نجاست د ځای د لمانځه په بولو د دوې سبب د کراهت نه دئ. ولې که دا علت وائي نو په مرابض الغنم يعني د پسو د سکونت ځای ( ګاشونه ) کې بايد هم لمونځ مکروه وای ولې چې بيره د نجاست د ځای په بولو بره هلته هم موجود دي. او سره د دې چې په حديث شريف کښې راغلي دي چې د آنحضرت صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه شوه د لمانځه په ګاشو کې د پسونو. ده مبارک ورته وويل" صَلُّوا فِيهَا فَاِنَّهَا خلقت بركة»، او دا امر صرف د پاره د اباحت دی. او د معاطن الابل د لمانځه نه ئې نهی وکړې. يعني په سبب خوف د فتنې کما انّا

**سوال**: ځای د غويو او غواوو د کومه قسمه نه دی ط **جواب** وائي چې هغه په مرابض الغنم پورې ملحق دی نو لمونځ په هغه ځای کې مکروه نه دئ» شارح المشکوة وائي چې په مرابض الغنم کې دې پر مصلی لمونځ کوي» يا په هغه ځای کې يوه دو کا نچه وه چې آراسته د لمانځه د پاره وه او يا ده شپانه د پسو دا عادت دی چې د پسو ځای بې پاک ساتي نو بيا لمونځ مباح دی په هغه کې. دَرَوِيش وائي که مرابض الغنم نه بد بوئی ولاړيده. نو په سبب د بد بوئي لمونځ په کښې مکروه دی که څه هم پاک ځای وي. قال مثل ذالک ابن الملک في محل الابل»

**فـائـدَه:** قال العینیؒ فی شرح البخاری فی بحث المساجد من کتاب الصلوٰة، چې مکروه دی لمونځ په .... ت ځایو کښې د یهودو او نصارٰی وُو. ولې چې په هغې کې دوې عکسُونه اېښې دی نو ځای د شیطانانو دې.

نو د هندوانو په مندرو کې په طریقِ اولیٰ لمونځ مکروه دی. ولې چې هلته خو مجسمې د بُتانو پراتې وی که څه هم سَرې و مجسمه ته لمونځ نه کوی بلکه پر بَل ځای یې کوی، قَالَ المُصنِّفُ:

**وَاَرْضُ الْغَیْرِ بِلَا رِضَاهُ** او د غیر ځمکه لمونځ مکروه دی په ځمکه کې د بل چا بیله رضا د هغه یعنی یا حقیقتً په رضا وی لکه د کښت په ځمکه کې حقیقتً رضا غواړی یا حکمًا رضا وی لکه په شاړه ځمکه کې د یو چا»

**مسَـئَـلَه:** که سړی ته د لمانځه په وخت یو ه ارض الغیر وَه چې کښت هم نه وو پکښې او بله لاره وَه. نو دی به چیری لمونځ کوی په لاره کې به لمونځ کوی او که په هغه ځمکه کې!

**جـوَابُ:** که ځمکه د مسلمان وه په هغه کې دی لمونځ وکړی لوجود الاجازة حکمًا او ځمکه د کافر وه نو په لاره کې دی لمونځ اداء کړی» قَالَ المُصنِّفُ:

**وَقَرِيْبًا مِّنْ نَّجَاسَةٍ** او د غیره نګه مکروه دی لمونځ نږدې وځای ته د نجاست لان قریب الشئ له حکمه» قاله المراقی» درویش وائی چې اندازه د قرب دا ده چې یا د هغه نجاست بَد بُوئی پرده و لاړه ی. او یا دا چې که چیری دی په سبب خشوع سره لمونځ کوی هغه مرداری وینې، در» قَالَ المُصنِّفُ:

**وَمُدَافِعًا لِّاَحَدِ الْاَخْبَثَيْنِ اَوِ الرِّيْحِ** او په داسې حال کې لمونځ مکروه دی چې لمونځ کوونکی د ځان د فع کوی یو د اخبثینو یعنی غُل یا بَولې او یا د فع کوی گوز یا پسکی یعنې چې لمونځ کوونکی ډیر غولونیولی وې. او یا بولو. چې کُنه تینګه کړی. او چونکې د بَولو د سبب په وَرنو کې تینګ نیولی وی. او یا د نَس باد یې کښته راشوه ی. دی کُنه ورته تینګه کړی. وجه د کراهت یه دا ده چې د مُصَلی ټوله فکر په دغو شیانو کې وی. د لمانځه خشوع چیری دَه:





**مسَـئَـلَه:** که جماعت تیریږی هم دی جماعت پریږدی خپل ځان دی تش کی باد دے و باسی بیا دی او د س تازه کړی په فارغه زړه دی لمونځ وکړی. او ظواهر الحدیث والاوائی چې لمونځ یه په د غه حال کې صحیح هم نه دی. او دوی په ظاهر د حدیث عمل کوی. وهو قوله علیه الصلوٰة والسّلام لا یحل لاحد یؤمن بـ الله والیوم الاخر ان یصلی وهو حاقن حتیٰ یتخفف» حاقِن» هغه سړی ته وائی چې غولو یا بولو نیولی وی، او د با ټکلم هم دا غه دی. مونږ وایو چې دا وعید تغلیظًا دی» ولې چې علت د کراهت یه شغل القلب دی نو که د سړی فکر په لمانځه کې په دنیائی امورو کې وی لمانځه ته یه هیڅ فکر نه وی نو د هغه لمونځ دی هم باید صحیح نه وی. در»

**فوَائِدُ شتّیٰ** ۱ ځمکه که د کافر وه مطلقًا لمونځ په کښې مکروه دی. او که د مسلمان وه او کرلی یه وَه او یا ئی یوې کړی وه لمونځ په کښې مکروه دی. که په مابین کی د لمونځ کوونکی او د صاحب الارض محبت او دوستی نه وَه. او که د مسلمان وَه نه کرلی او نه یوې سوې وه بیا لمونځ په کښې مکروه نه دی. ولې چې د مسلمان د حال څخه دا ښکاره کیږي چې دی په د ې لمانځه کې راضی دی» ولې چې ده ته ثواب خدای پاک ورکوی بیله د دَه د عمله مګر که صاحب الارض بَد اخلاق وو نو بیله اجازې لمونځ مکروه دی» په مختار الفتاوٰی او فتاوٰی هندیه کې وائی چې په مغصُوبه ځمکه کې خو لمونځ مکروه دی» ولکن د حق العبد عقاب ورکول کیږي»

**مسَـئَـلَه:** په مغصوبه جامه کې لمونځ مکروه دی که څه هم بَله جامه نه وی» لعدم جواز الانتفاع بملك الغیر قبل الاذن او اداء الضمان ط» **مسَـئَـلَه** په ورېښمینه جامه کی هم لمونځ مکروه دی. او که بل جامه نه وه نو په دغه ورېښمینه جامه کی دی لمونځ وکړی ولې چې دا د واړه حق الله دی. لکن لمونځ په ثوب الحریر کی کول سپک دی تر لمانځه په لڅه بدن سره لمونځ کولو سره. **مسَـئَـلَه:** پر ورېښمینه جامه لمونځ کول مکروه نه دیٰ ط

قَالَ المُصنِّفُ: **وَمَعَ نَجَاسَةٍ غَيْرِ مَانِعَةٍ اِلَّا اِذَا خَافَ الْوَقْتَ اَوْ** او د غیره نګه لمونځ مکروه دی سره د نجاست خواه په جامه کی وی. او یا په بَدن کی.

**الْجَمَاعَةِ وَالْاَنْدُبَ قَطْعُهَا** چې مانع د لمانځه هم نه وي يعنې په قدر د ربع الثوب په خفيف نجاست کې. او په قدر د درهم په مغلظ نجاست کې کما مر تفصيله» مګر هغه وخت بيا مکروه نه دی لمونځ سره د نجاست. که سري ويريدی چې نه که نجاست پرې منځم وخت د لمانځه وزي. او يا جماعت راځغ تيرېږي نو کې دا غسې ويره وه نو د هغه نجاست سره دی لمونځ وکړي. ولې لمونځ دوخته ځخه ايستلو حرام دی. او جماعت خو سنت مؤکده يا واجب دی على اختلاف الروايتين» او که نه ويره د وخت د وتو وه او نه د جماعت د تيريدو وه. بيا مندوب ده چې نجاست دی قطع کړي بيا دی لمونځ وکړي:

**پوښتنه**: چې د مصنفؒ د عبارت ځنه داسې فهميږي چې په وخت کې د ويرې د فوت الوقت يا فوت الجماعة نو هيڅ کراهت نشته، او امام طحطاويؒ وائي چې کراهت خو باقي دی. لکن د نجاست سره لمونځ کول اخف الضررين يعنې سپك ضرر دی مختاره کړي. مطلب دا چې لمونځ د نجاست غيرمانع سره سپك دی. د لمانځه تر قضاء کولو او يا د جماعت تر پريښولو. **فائده**: که لمونځ قضاء کيدی په هغه صورت کې چې مصلي مدافع داحد الاخبثين وو» يعنې چې دی ځان خالي کوي او بيا او دس تازه کوي وخت د لمانځه تيريدی. او يا په اوسني صورت کې چې نجاست ليري کوي وخت وتی» په دواړو صورتو کې دی لمونځ نه قضاء کوي. ولې چې اداء د لمانځه سره د کراهته اولی دی تر قضا کولو د لمانځه»

او په صورت کې د مدافعة الاخبثين که په جماعت ويريدی چې تيريږي جماعت دی پريږدی ځان دی خالي کړي او بيا دی او دس تازه کړي او لمونځ دی انفرادًا ادا کړي. او په صورت کې د نجاست د قطع کولو که په جماعت ويريدی لمونځ دی د نجاست سره وکړي او جماعت دی نه پريږدي. فتامل في الفرق بين العذرين. وجه د فرق يه داده چې لمونځ کول سره د مدافعة الاخبثين بالادی په ګناه کې تر ترك د جماعت بخلاف ترك الجماعة لاجل قطع النجاسة





القليلة ولې ترك د جماعت اعظم وزرًا دی. **مسئله**: که د غسي امید د رلودی چې دا جماعت که تيرسي بل ځای جماعت ته رسيږم نو لمونځ دی قطع کړي او نجاست د ليري کړي. او بل جماعت ته دی ولاړسي. کذا في الخلاصة» قال المصنفؒ

**وَالصَّلٰوةُ فِي ثِيَابِ الْبِذْلَةِ** او د غه رنګه لمونځ مکروه دی په کالو کې د خوارۍ **پوښتنه** چې بذلة په زېر د باء دی او په سکون د ذال دی. او پښتانه امامان يې په زور د باء وائي هغه غلط دی» چې د خوارۍ مزدورۍ په وخت کې، د ګل کارۍ وغيره په وخت يې خلك اغوندی. او يا يې رنګمالان په وخت کې د رنګ مالۍ اغونديږي. او يا اشپزان په وخت کې د اشپزۍ اغوندی، او يا يې ستريان په وخت کې د کار اغوندی وغير ذالك »

ددې د کراهت وجه داده چې لمونځ په حضور د رب جل شانه د ريدل دی نو په د غسې خيرنو چټلو په ختو ککړو کالو کې بايد نه وي. لکن کراهت يې تنزيهي دی صرح به في المراقي

**حکايت** اميرالمؤمنينؓ حضرت عمرؓ يو وخت يو سړی وليدی چې مذکوره د ول کالو کې لمونځ کاوه، نو اميرالمؤمنين ورته وويل چې که تا يو چا ته استوم آيا ته به د غو کالو کې هغه سړي ته ورځې. سړي ورته وويل يا. نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل الله احق ان تتزين له، وقد فسر بعض المفسرين قوله تعالى خُذُوا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ» بهذا المذكور، قال المصنفؒ

**وَمَكْشُوْفُ الرَّأْسِ لَا لِلتَّذَلُّلِ وَالتَّضَرُّعِ** او د غه رنګه لمونځ مکروه دی په لڅ سر لکن نه د عاجزۍ او خوارۍ د پاره» بلکه د سستۍ او يا د تکبر د لارې په تجنيس کې وائي چې د اظهار التذلل والتضرع د پاره لمونځ لڅ سر مستحب دی» مر» **فائده**: جلال الدين سيوطيؒ وائي چې په دی کې اختلاف دی چې خشوع د زړه عمل دی لکه خوف او که د اندامو شی دی لکه سکون او که د دواړو فعل دی» قال الرازيؒ والثالث هو الاولیٰ، وعن علي رضي الله تعالى عنه: الخشوع في القلب»

بڼ بڼ بڼ بڼ

**نظم**

که سرلڅی لمونځ کوی د کهالی یه ؛ دغه لمونځ به دی مکروه تنزیهی وی ؛
اوکه په لڅ سر لمونځ کوی د تکبره ؛ دغه لمونځ به دی مکروه تحریمی وي ؛
اوکه په لڅ سر لمونځ کوی د عاجزیه ؛ دغه لمونځ به دی ثواب اخروي وي ؛
اوکه په لڅ سر لمونځ کوی د استخفافه ؛ فقهاء وائی کافرسوبې اشتباه ؛ طدرس» درویش باګناه ایوبی»

قال المصنف رح

## وَبِحَضْرَةِ طَعَامٍ يَمِيلُ اِلَيْهِ

اودغه رنګه لمونځ مکروه دی په وخت کی د حاضروالی د خوراکی شی چی دمړی په زړه کی میل ورته کیږی. یعنی سودایه په بنده وی. ولی چی وږی وي. او یا طعام داسی طعام وی چی د لمانځه کولو تر وخت سړیږی اوبې خونده کیږی. لقوله علیه الصلوة والسلام: لَاصَلٰوةَ بِحَضْرَةِ الطعام ولا هو يُدافعه الاخبثانِ»، ای الصلوة کاملة»، کذا فی الشرح رواه مسلم:

**سوال**: په ابي داؤد کی داسی حدیث راغلی دی: لَاتؤخّر الصلوة لِطَعام وَلَالغيره

**جواب** داحدیث محمول دی پر تاخیر د لمانځه د وخت څخه. ولی چی علیه السلام په یوه حدیث کی چی روایت یه بخاری او مسلم کړی داسی فرمائی. اذا وضع عَشَاءَ احدکم یعنی چی حاضرسی دما ښام ډوډی. و اُقیمت الصَّلوٰة، او اقامت د لمانځه هم شروع سی: فَابْدُؤا بالعَشَاءِ، نو شروع په ډوډی وکړی. وَلَا يعجل حتّٰی يفرغ منه او تلوار دی په خوراک کی هم نه کوی ترڅو چی فارغه کیږی د ډوډی څخه. وجه د کراهت یه شغل د زړه دی په ډوډۍ. او عدم خشوع ده په لمانځه. ولهذا که د سړي ډوډی تیاره وو وږی او نه طعام موضوع خرابیدی. نو بیا دی لمونځ د مخه وکړی، درط قَالَ

## وَمَا يُشْغِلُ الْقَلْبَ وَالْبَالَ وَيُخِلُّ بِالْخُشُوْعِ

اودغه رنګه لمونځ مکروه دی په حضور کی د هغه شی چی زړه په مشغول کیږی لکه زوم نه چی ناوی سرخې سفیده کړي وي ناسته وي. او یا خلل و خشوع ته وي. لکه لهو و لعب ساز و صحبت د شوقیانو غزلې او د تلویزون څپې وغیرذالک» بعض خلک بی بی سی BBC راډیو یه چالانه کړي وي هم ذهنی پرخبرو یه غوږ نیولی وی او هم لمونځ کوي. **شعر**. بر زبان تسبیح ودر دل گاؤ خر ؛ ای باطن کافر ظاهر مسلمانی چه سود ؛

**پوښتنه**: چی سړی چی جماعت ته روان وي حمادی په لمانځه کی دی. نو د دی سببه آنحضرت صلی الله علیه وسلم نهی کړې دي د ورتګ څخه د لمانځه په ځغاسته او ډو بلک » ولی چی ځغاسته مخل په خشوع سره ده.

**پوښتنه**: په ایت شریف کی د جمعی د لمانځه په باره کی داسی راغلی دی: فَاسْعَوْا اِلٰی ذِکْرِ اللّٰهِ »

**جواب**: مراد د سعی څخه په هغه ایت کی تګ دی په سکینه او آرام او وقار سره کذا قَالَ المفسرون» او بعض مفسران وائی چی مراد په دغه ایت کی سعی د زړه ده یعنی په شوق او محبت د جمعی لمانځه ته څه. لا السعی بالقدم، قَالَ

## وَعَدُّ الْاٰیِ وَالتَّسْبِيْحِ بِالْيَدِ

اودغه رنګه مکروه ده شمیرل د ایتو د قران او یاد تسبیحاتو په لاس سره یعنی په ګوتو د لاسو. که لمونځ فرضی وی او که نفلی وي

**پوښتنه**: چی شمیرل د ایتو یاد تسبیحاتو په ګوتو سره د ګوتو د لاسو مکروه دی په نیز د امام اعظم او په نیز د یارانو مکروه نه دی. او د ګوتو د سرو په کښیکښیلو پر ځپل ځای په اتفاق سره مکروه نه دی. او په زړه کی حساب ورته کول هم مکروه نه دي. او په خوله یا وجود وغیره ویل منسد دي لمانځه لره:

**پوښتنه**: چی ضرورت و شمیرلو ته د تسبیحاتو په صلوة التسبیح کی سته چی هغه یو فاضل نفلی لمونځ دی. اصحاب السنن الاربعة» د عکرمه څخه او هغه د ابن عباس رضی الله تعالی عنه څخه روایت کوی: اَنَّ النبیَّ صلی اللّٰهُ علیه وسلم قال للعباس بن عبد المطلب یا عماه ای کاکا الف دیاره د مد صوت دی. اَلَا اَمْنَحُكَ عَشْرَخِصَالٍ» زه تا ته نه درو ښیمه لس خویه» اذا انتَ فَعَلْتَ ذَالِكَ غفر لَكَ ذنبُكَ» که ته دغه لس فعله وکړی تا ته به و بخښل سی ګناه ستا. اَوَّلَهُ واٰخِرَه حَدِیْثَهُ وَقَدِیْمَهُ» که اوله ګناه وی او که اخره. نوی ګناه وی او که پخوانی، خَطَائُهُ وَعَمُدُه»، که په قصد ګناه وی او که په خطاء سره، صَغِیرِهٖ وکبیره» که صغیره ګناه وی او که کبیره ګناه وي.

سِرَّهٗ وَعَلَانِيَتَهٗ کہ پټه ګناه وی او که ښکاره، اَنْ تُصَلِّیَ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ چې ته لمونځ وکړه څلور رکعته یعنی نفل. تَقْرَءُ فِی رَكْعَةٍ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً، په هر رکعت کی وایه الحمد لله او یو سورة، فَاِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقِرَائَةِ فِی اَوَّلِ رَكْعَةٍ، چې ته فارغ سوی د قرائت څخه په اول رکعت کی: وَاَنْتَ قَائِمٌ قُلْتَ، او ته ولاړ یې ووایه، سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ ۱۵- واره ثم ترکع فتقولها، ۱۰- واره- او بیا رکوع وکړه په رکوع کی لس واره ووایه یعنی د مخه تر تسبیح د رکوع یا وروسته، ثم ترفع رأسك من الركوع فتقولها عشرًا. بیا سر راپورته کړه د رکوع څخه او دغه کلمی ووایه لس واره. یعنی د مخه تر سمع الله لمن حمده. ثم تهوی ساجدًا فتقولها عشرًا. او بیا پریوزه پر سجده لس واره دغه کلمی ووایه یعنی د مخه تر تسبیح السجود یا وروسته. ثم ترفع رأسك من السجود فتقولها عشرًا. او بیا د سجدی څخه راپورته کړی او لس واره دی ووایه یعنی بین السجدتین ثم تسجد فتقولها عشرًا. او بیا دوهمه سجده وکړه په هغه کی هم لس واره ووایه. ثم ترفع رأسك من السجود فتقولها عشرًا. او بیا د دوهمی سجدی څخه سر را پورته کړه او لس واره یه ووایه یعنی د مخه تر ولاړی و دوهم رکعت ته فذالك خمس وسبعون فی كل ركعة، دا نو ۷۵ تسبیح سوی په هر رکعت کی. فضل ذالك فی اربع ركعات، دغه کار وکړه په څلورو رکعتو کی چې مجموع به ۳۰۰ تسبیح جوړیږی. قال علیه الصلوٰة والسلام: که دې په وس پوره وي چې هره ورځ یه وکړې خو هره ورځ یه کوه. او که دې هغه د طاقت و تلی وی نو په میاشت کی یو وار کوه. که دې سی هغه هم د طاقت نه وی، نو په هر کال کی یو وار کوه. فان لم تفعل، نو په ټول عمر کی یو وار وکړه.

**فَائِدَہ:** سبط ابن الجوزی حدیث د صلوٰة التسبیح په موضوعی حدیثو کی راوړی دی. او دا یې ډیر بد کار کړی دی. ولی ابن حجرؒ وائی چې د دی حدیث تصحیح ابن خزیمہؒ او حاکم کړی ده. او نورو محدثو ویلی دی هذا حدیث حسنٌ، او ترمذی یې هم روایت کړی دی من حدیث ابی رافع وان قال هذا حدیث غریبٌ؛ او عبد الله ابن المبارکؒ وائی چې صلوٰة التسبیح مرغب فیها دی باید مسلمانان عادت ورسره ولري او څُندی غافِل نه سی.





درولیش وائی دا آفت او س عام دی چې پر صحیح حدیثو د موضوعی حکم کوي: والی الله المشتکیٰ،

**مسئله:** که سړي په صلوٰة التسبیح کی سهوه سی نو دی سجدهٔ وکړي په سجدو کی به هم دغه تسبیحات وائی. عبد الله بن المبارکؒ وائی چې نه دی وائی ولی چې صلوٰة التسبیح ۳۰۰ تسبیح دی و بس»

**فَائِدَہ:** د صلوٰة التسبیح دوهم کیفیت چې په عمومی حنفیانو کی رواج دی هغه دا دی: په اول رکعت کی تر سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وروسته ۱۵ واره. او بیا چې د الحمد لله او سورة څخه خلاص سو تر رکوع د مخه دی ۱۰ واره او په رکوع ۱۰ واره او چې د رکوع څخه راپورته سی تر سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ د مخه ۱۰ واره او بیا یې مابین کی د دوو سجدو ۱۰ واره. او په دوهمه سجده کی ۱۰ واره. د دوهمی سجدی څخه چې راپورته سی نو ناسته د استراحت دی نه کوي. سیده دی ولاړ سی او تر شروع د الحمد لله د مخه ۱۵ واره وعلی هذا فقس،

**ضروری خبره:** چونکه صلوٰة التسبیح نفل دی نو نفلو د قانون سره سم د ې دمیانځ په ناسته کی خواه مخواه اَللّٰهُمَّ صَلِّ آه وائی او د ریم رکعت چې ولاړ سی سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ به وائی: قَالَ الْمُصَنِّفُؒ:

---

اودغه رنګه مکروه ده ولاړه د مُلا په محراب

**وَقِيَامُ الْاِمَامِ فِی الْمِحْرَابِ** کی یعنی چې ټوله بدن یې په محراب کی وی او کی پښی د باندی وي او سجده په محراب کی کوله بیا خو کراهت نسته، او که ځای تنګ وو یا مقتدیان ډیر وو نو بیا که امام یو لږ څه په محراب کی ودریږی هم کراهت نسته، د دی کراهت وجه دا ده چې پر قوم د امام حال مشتبه نه وي.

**فَائِدَہ:** محراب د حرب څخه اخستل سوی دی چې په معنی د جنګ دی نو دغه ځای د شیطان سره د جنګ ځای دی.

**سوال:** جنګ د شیطان سره په لمانځه کی خو مقتدیان هم کوی نو ولي د امام ځای یوا محراب بولي!

**جواب** هو لکن چونکه امام لکه قوماندان اعلیٰ د جنګ دی نو د دې سیبه د ده د دریدو ځای ته محراب وائي.

**پوښتنه:** چې ډیرو کتابو د فقهې شریفې دلیل د کراهت مذکوره دا وائی چې په دی کی تشبه د اهل کتابو سره ده او دا تشبه مکروه ده۔

لکن علامہ کمال الدین ابن الهمامؒ وائی چې تشبه داهل کتا بو سره په لعض اوضاعو کی خو مکروه نه ده ولې چې دا تشبه اتفاقی پیښېږي، او بل دی وائی چې د اهل کتا بو عادت خو دادی چې امام پر مکان مرتفع با ندی درېږی» قَالَ المُصَنِّفُ :

## اَوۡعَلَی مَکَانٍ اَوِالۡاَرۡضِ وَحۡدَه

او دا هم مکروه ده چې امام پر یو لوړځای ولاړ وي او مقتدیان کښته، اندازه د لوړوالی یو گز دی علی المفتیٰ به» او د امام ابو یوسفؒ څخه روایت دی چې اندازه دلوړوالی یو قامت د میانه سړي دئ، او دا مذهب مختار کړی دئ شمس الائمة الحلوانیؒ. لکن په دواړو مسئلو کی چې امام یوازی وی او که یو یا دوه کسه نور ور سره ولاړ وي بیا کراهت نشته» مرط در»

**پوښتنه**: چې په مسئله کی دلوړوالي ورد امام خود ابن مسعودؓ څخه روایت راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسّلام نهی کړي دی چې امام لوړ په یو شی ولاړ وي وَالنَّاسُ خَلۡفَهُ : او بل په دی کار کی تشبه داهل کتا بو سره هم ده ،، وفيه نظر كما مرّ» او په دوهم مسئله کی چې امام پر ځمکه با ندی یوازی ولاړ وی او خلک ورو سته پسی ولاړ وي خو کوم اثر نه دی موندل سوی کی څه هم مصنفؒ په مراقی کی دعوه په کړې ده. لکن په شرح کی راغلی دی چې په کار کی تخفیر د امام دی چې یوائي ولاړ وي. فَکُرِهَ عَلَی ظَاهِرِ الرِّوَایَةِ لکن اعلم الناس په مذهب حنیفی الفقيه ابو جعفر طحاویؒ وائی. چې په دوهمه مسئله کی کراهت نشته، او په فتاوی خانیه کی وائی وعليه عامة المشائخ ر. در و نیش وائی چې قدیمًا او حدیثًا په دیارو کی زمونږ عادت پرېږدی چې پر ځمکه چې جماعت کوي امام یوازی د محراب ولاړ وي او د تخفیر سوال هم په دی کی نشته» کما هو الظاهر فینبغی ان یفتیٰ به» امام طحطاویؒ او نور فقهاء هم وائی چې مکروه ده سړي ته چې په مسجد کی د ځان د پاره یو ځای د لمانځه و تاکی چې همیشه په هغه ځای کی لمونځ کوي. ولې چې د هغه ځای د پاره یاره دده طبع گرځي او عبادت چې طبعی سی ترک یه اولیٰ دی. نو ځکه صوم الابد (همیشه روژه» مکروه ده» طس م، قال

اَللّٰهُمَّ اغۡفِرۡ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِکَاتِبِهٖ وَلِوَالِدَیۡهِمَا اَجۡمَعِیۡنَ





## وَالۡقِیَامُ خَلۡفَ الصَّفِّ فِیۡهِ فُرۡجَةٌ

او دغه رنگه مکروه ده ولاړ یعنی پر لمانځه ترشا د صف چې په صف کی ځای هم وي. او که په صف کی ځای نه وو نو بیا کراهت نشته، لکن دا کراهت هلته دی چې د دغه سړي قصد داقتداء وه په امام پسی» او کی قصد دیوائي لمانځه وو بیا په صف کی درېدل مکروه دی بلکه ترشا به درېږي. او په خلاصه کی وائی که سړی د صف ترشا یوازی ودرېدی بیله ضرورت یعنی په صف کی ځای کی وو، او بخپل اختیار داسی ته وو چې چا په صف کی نه پرېښو نو لمونځ به روا ده سره د کراهته. او کی د ډېره تلواره چې رکعت ځنی تېر یدی ترشا ودرېدی او بیا ځای تېر سو لمونځ به مکروه دئ.

**مسئله** که پر ځمکه یو سړی د امام سره ودرېږی او نور صف ترشا وي مکروه دی بلکه دا سړي به هم په صف کی درېږی. فتح ط در **مسئله** که د سړي دخولی بوی تلی په یو سبب، یا چرسی وو، او یا یه وربه خوړلی وه. او پر دی بیرېدی که په صف کی ودرېږم خلکو ته به ازار ورسیږی. نو دا عذر دی. یوازی دی ترشا ودرېږی که څه هم په صف کی ځای وی» در ، قَالَ المُصَنِّفُ :

## وَلُبۡسُ ثَوۡبٍ فِیۡهِ تَصَاوِیۡرُ

او مکروه دی یعنی په لمانځه کی اغوستل د داسی جامی چې په هغی کی بتان وی لکن د ذی الروح شی او که دیوی مناری یا غره یا درختی صورت پکښې وو نو بیا کراهت نشته، دغه صورت د ذی روح که په جامه کی د نقش په توگه وی او یا په کښې وَدَل سوي وی په هر صورت کی لمونځ په کښې مکروه دی او کراهت هم تحریمی دئ» مراقی وائي چې علت یه دادی چې چې دغه مصلی لکه حَامِلُ الصَّنَم دئ. **فَائِدَه**: د دی علت څخه ط در داسی نتیجه گیري کوي چې داغسی جامه خارج الصلوٰة هم باید داغسی نه واغوندي» او نهر دا خبره د خلاصه څخه نقل کړیده ط» **فَائِدَه**: هغه شی چې په قلم نقش سی او یا په ظل شمس سره هغه ته صورت وائي. او هغه مجسمه چې پر صورت د انسان جوړه سوی وي یا د لرگی څخه او یا سپینو زرو څخه او یا د سرو زرو څخه هغه ته صنم وائی. او هغه مجسمه چې

د ډېرې ځنې جوړه وی هغه ته وَثَن وائی، وقد يطلق الصورة على الجميع» قَالَ المُصَنِّفُ

## وَاَنْ يَكُوْنَ فَوْقَ رَأْسِهِ اَوْ خَلْفَهُ اَوْ بَيْنَ يَدَيْهِ اَوْ بِحِذَائِهِ

او دغه رنګه لمونځ مکروه دی چې د مصلی پر سر برابر او یا ترشا، او یا مخامخ صورت وی مګر نه هغه

## صُوْرَةً اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ صَغِيْرَةً اَوْ مَقْطُوْعَةَ الرَّأْسِ

## اَوْ لِغَيْرِ ذِىْ رُوْحٍ

وخت که دا صورت کشنی وُو چې دی پر ځمکه پروت وی او سړی ولاړ وی تميز د اعضاوو د صورت به نه سی کولای لکه د مېږي مچ وغيره صورة»

**پـوهـنـه**: چې پر راسته بغل یه وی او که پر چپه بغل یه وی هم لمونځ مکروه دئ.

**مَسْـئَـلـه**: که سړي لمونځ کاوه او دده سره روپۍ وې چې پر هغو عکس د بادشاه وو پروا نه لري. ولې دا د کشنی عکسو په حکم کی دی. او دغه رنګه که په ګتمی کی عکس وُو چې واضح نه معلومیدی پروا نه لري» محيط» په یوه روایت کی راغلی دی چې د ابوهريرة رض پر ګتمی د دوو مچانو عکس وو. **مَسْـئَـلـه**: قطع د سر یوازې نه دی شرط بلکه چې صورت پر داسې ډول وی چې پر دغه ډول ژوند نسی کولای مطلقاً هم پروا نه لري. نو ځکه کی لاسونه او یا پښې پرې وی لمونځ ورسره مکروه دئ. ولې چې انسان سره د قطع اليد والرجل ژوند کولای سی.

**مَسْـئَـلـه**: کی مخ د صورت ورخراب کی یا په پری ولو سره قلمی وُو او یا په تراشلو سره او یا په پر مخ ړاولی ور کښېنولې. او یا یه پېلاستک پروا چاوه نو لکه سړي چې پرې لمونځ نه دی ورسره مکروه **مَسْـئَـلـه** کی سر او بدن د بت په سېن سی. پېچلو سر جلا کړي لمونځ ورسره مکروه دئ. ولې دا خو لکه طوق دار مرغه وګرځيدی يعنی کرك يا کوتره او دې ته قطع د سر نه وائی بلکه غالباً به لا خوند ور سی. **پـوهـنـه**: تر ټولو ډېر مکروه هغه صورت دی چې د مصلی ومخ ته وي. او دوهمه درجه هغه دي چې تر مصلی





لوړ وی او دریمه درجه د یمین پر خوا چې وی. او څلرمه درجه چې پر يسار یه وي او اخيره درجه هغه دی چې ترشا د مصلی وي. په حديث کی چې روایت یه بخاري هم کړې دی دا سې راغلی دی چې یو سړي و ابن عباس ته راغلی او ورته وی ویله چې دا صُوَر بتان جوړوم او بیا یه خرڅوم او نفقه د عیال په برابره وم. ابن عباس رض ورته وویل چې ته رانژدی سه هغه سړي ورته رانژدی سو، بیا یه ورته وویله چې نور رانژدی سه. هغه بیا رانژدی سو حتی چې ابن عباس رض لاس پر کښېښوه. او ورته وې ویل چې هغه شی و تاته وایم چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اورېدلی دي. چې ده صلى الله عليه وسلم چې هر صورت او بت جوړوو نکی به په اور کی وي. او ده ته به ورکول کیږي په مقابل کی د هغه صورت چې ده جوړ کړي وی یو روح چې په ټولو هغو روحانو به دی په عذاب وی په جهنم کی. وفی روايته» فَرَبَا الرجل ربوة شديدةً» هغه سړي د غمه سوړ ساه وکښل ابن عباس رض ورته وو یل وَيْحَكَ» افسوس تا لره او ورته وی ویل که چاره نه لرې د صورت جوړولو څخه یعنی نفقه د عیال د دغه کسبه څخه حاصلوې. نو د درختو صُورتونه جوړوه او یا د هغه شی چې په هغو کی روح نه وي لکه مناره یا مسجد وغیره» په مراقی کی وائی چې که سړي د بل چا په کور کی مجسمه یا صورت د ظل شمسی مکمل ولیدی ده ته روا دی محو کول د هغه او تغییر په هغه کی یعنی که صاحب البيت دده سره خوا به ولیه چې دده دوست وو، او هغه خبره چې سپید کړید ه چې پرده واجب ده چې محوه کوي بی. هغه په دا سی صورت کی چې صاحب البيت دده محکوم وی یا زوی یا ورور وغیره.

**مَسْـئَـلـه**: که سړی مصور مزدور کړي چې ما ته صورت را جوړ کړه هغه ورجوړ کړي د مزدوري حق نه لري. ولې دا فعل دده معصیت دی او پر معصیت باندې مزدوري نسته»

## اَوْ يَكُوْنَ بَيْنَ يَدَيْهِ تَنُّوْرٌ اَوْ كَانُوْنٌ فِيْهِ جَمْرٌ

او دغه رنګه لمونځ مکروه دی چې د مصلی د مخ و خوا ته تنور وی یا کانون چې په هغه کی سکروټې وي. مراقی وائی چې په دی کی مشابهت دی د مجوسو سره دی په حال کی د عبادت»

**پوښتنه:** چې کانون او تنور یو شی دی: فالاولیٰ وکانون لیکون عطف تفسیر للتنور الاان یکون کلمة او للتخییر فی العبارة. **فائده:** مجوسیان چې عبادت کوي د سکروټو عبادت کوي نه دهٔ لمبې د اور. پس که د مصلي د مخ څراغ وي او یا قندیل وي او یا د برق ګروپ وي، یا شمع لګیږي، نو د لانځ کراهت نشته په بعض مساجدو کې په ژمي چې یخ وي د برق انګیټي د مخ وخوا **بنهانه فائده** لګوي او یا د ګازو، انګیټي لګوي. لعض بې ځایه صوفیان ملایان وائي چې دا مکروه دی چې سړی لمونځ ورته کوي باوجود یکه چې هغه صرف ګرمه هواده په ذریعه د ګاز یا برق، حتیٰ چې د بوټو د اور پروزه لمبه لا نه لري سکروټې خو چیري دي چې مشابهت د مجوسو لازم شي.

په فتح القدیر کې وائي چې مجوسیان د هغه سکروټو چې لمبه نه لري عبادت کوي نو د مذکوره شیانو مخ وخواته بلیده پروا نه لري" یو صوفي بیځایه ملا وو"، ما ته وویل چې ګازو انګیټي چې د مخ وخواته وي لمونځ مکروه دی. ما ورته وویل چې د ګاسلیټو څراغ یا د زړو تیلو چراغ آه او د برق ګروپ چې د مخ وخواته وي نو لمونځ څنګه دی! ده وویله هغو ته لمونځ مکروه نه دی. ما ورته وویل نو فرق یې څه دی د غه مذکوره شیان چې ټول شي سوځي او لمبه هم لري بلکه د برق او ر خو تر ګازو بدتر دی. ولې چې برق یې په یوه قیقه کې دوژني او ګازوي هغه دی سوځي او وژني دي نه. والحاصل چې زمونږ د جامې ورته ملایان چې ناولده شي په مسجد کې ووینې وائي دا مکروه دی. او ده ته بخپله په مسجد کې د نسوارو بد بویه توک داني پرته وي. چې په هغه کښې نسوار توکي

**واقعه** زما یو وخت په ژمي کلونبې په پښو وي نو یو ملا راته وویل مولوي صاحب داور کې که. ما ورته وویل ولې ده وویل چې دا دي په پښو کیده مکروه دي او ده بخپله په پښو چار راشترینې مچنې" وي" متل" غلبیل وکوزې ته وویل څونه ډیر سوري لري:





**او قوم نیام** او دغه رنګه لمونځ مکروه دی چې د مصلي د مخ وخواته خلګ وي بیده **پوښتنه:** چې نیام جمع د نائم ده او که څه هم مصنف قوم وئیلي دی لکن د یوه بیده سړي هم دا غه حکم دی **فائده:** که علت د دی کراهت داوي چې مصلي مواجه وهغه بیده ته نسي. خود بین یدیه قید فائده مند دی، ولې که ترشا وي بیا خو مواجهت نشته، او که هغه وجه د کراهت وي چې مراقي وئیلي ده یخشي خروج شئ یضحك منه او یخجل" یعني بیره د دی سته چې یو داسي شی دده نه وزي چې مصلي پروه خاندي. لعني ګوز وانه چوي او که مصلي پرونه خاندي غالبًا د ګوز اچولو سړي او بیږی نو هغه بیده په خپله خجل شي. او یؤ ذي" او یا به مصلي ته اناروه ورسوي لکه بیده چې سړه بوي ناکه پسکې واچوي" (او روښ وائي چې دا وجهې په هغه بیده پوري خاصي نه دی چې مخ ته د مصلي بیده وي بلکه ترشا د مصلي بیده وي هم دغه وجوهی د کراهت سته"

**واقعه** یوه شپه د فقیر په کور کې میلمانه ډیر راغلي وه چې په هغو کې یو مولوي صاحب هم وو. نو چونکه ډوډۍ وخوړه بیده او د مسجد د جماعت وخت تیر سو. نو ما وهغه مولوي صاحب ته وویل چې د مخه سره چې لمونځ په جماعت وکړو. خو هغه مولوي صاحب د مخه سو. مونږ پر لانځه ودریدلو په کنج کې د کوټې یو نفر بیده سوی وو. خیر څو یو رکعت چې ادا سو هغه بیده سړي سپه غټې ګوز واچاوه. خو د جماعت خلګو ټولو په قهقهه چندا وخندل او تر کوټې د باندي ووتل زه وو هغه مولوي صاحب سره پاته سوو. چې په ډیر تکلیف مو هغه لمونځ وکړی. ولې مونږ ته هم خندا راتله خیر لسله لانځه هغه میلمانه بیرته کوټې ته راغله. نو یو دوه پسخندیان په کښې وه یوه هغه بل ته وویل چې دې سړي یعني بیده دا ګوز بیدیدو د حاله واچاوه نو معذور دی. هغه بل وي ته وویل چې ویښ وو. په قصد یې واچاوه چې زمونږ لمونځ فاسد کړي. نو دې دوهم ورته وویل که بیده وي نو خوبه بل ګوز یا پسکې هم واچوي ولې چې پر بیده یې څه فرق دئ. هغه چې ځان یې بیده اچولی وو دا خبره واوریده. ولې چې دی

په اول گوز اچولو یا دخلکو په خندا راوېښ سوی وُو. نو ددی دپاره چی نه بیده‌یم زور یه کړ بـل گـــــوز یه واچاوه. هغه یوه وهغه بَل ته وو یَل مانه درته وویل چی بیده دی. نوَهغی شَپی دخندا د اخیر دی راکښېنستی خلگ خوځا ندی دهٔ ورته وو یل. چی پرهٔ شپی خاندی زما څه خوبه شئی نه وی پلېښ سوئ. هغه یوه پسخندې ورته وویَل چی پر اول دی لادونه خندا نه راغله لکه پر دوهَم. نو داسی واقعاتی دبیده څخه پلېښېدونکی دې. اوکه دا تهوله احتمالات نه وې بـلکه بیده په حقیقت کی وېښ وې او د مصلی تر مخه پروت وی چی مَواجهت دمصلی سره یه هم نه وې بیا خو کراهت نشته»

په حدیث شریف کی چی بخاری په روایت کړی دی ام المؤمنین سیدتنا عائشه رضی الله عنها وائی چی څو وخت چی آنحضرت صلی الله علیه وَسَلم به زما په حجره کی تهجد لمونځ بی کاوه زما پښی به دده دسجدی په ځای کی وی. اوزه به دده وَمخته پرته وَم. نو چونکه دعلیه الصلوٰة وَالسلام دَتهجد دوهٔ رکعتو قرائت به ډېر اوږد وو. نو څه وخت چی به آنحضرت صلی الله علیه وسلم سجده کوله غَمزنی» نوما به پښی تولی کـړی چی دَه به سجدی وکړی ولاړ به سُوما به بیرته پښی وَغځولې ددې سَوال ددفعی دَپاره چی نه خوځې و پښه نو غمز ته دعلیه الصلوٰة والسلام څه ضرورت وو. تا به خپله پښی تهولولې. داوائی: وَالبُیُوتُ یَوْمَئِذٍ لَیْسَ فِیْهَا مَصَابیح : په هغه وخت کی په خونو کی څراغونه نه وَه چی ماته دعلیه الصلوٰة وَالسَلام دسجدی معلومات کیدلائی. قَـالَ المصنفُ

## وَمَسۡحُ الۡجَبۡهَةِ عَنۡ تُرَابٍ لَایَضُرُّہٗ فِیۡ خِلَالِ الصَّلوٰةِ

او دغه رنگه مکروه دی تَندی پاکول دهَغو خاورو څخه چی مصلی ته ضرر نه وې په مَابین کی د لمانځه. په مراقی کی چی وائی دا یو عَبث کار دی. اوکه دغو خاورو څخه په عذاب وو بیا پاکول پروا نه لري. اوځولې هم دغه حکم دی. او ورو سته تر لمانځه پاکول خو هیڅ کراهت نه لري.





بل عسٰی ان یکون مستحبا لدفع المثلة فی اشرف الاعضاء: قَـالَ المُصَنِفُ

## وَتَعۡیِیۡنُ سُوۡرَةٍ لَایَقۡرَءُ غَیۡرَهَا اِلَّا الۡیُسۡرِ عَلَیۡهِ اَوۡتَبَرُّکًا

او دغه رنگه مکروه دهٔ معینه کول دیوه سورت په لمانځه کی په داسی ډول چی بَل هیڅ سورة نه وائی مگر هلته بیا

## بِقِرَائَةِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ

مکروه نه دی که دغه سورة ورته وَیلی په اسَانه وَه. او یا یه تبرك کاوَه په قرائت دَنبی علیه الصلوٰة والسلام د دغه سورت په یوه لمانځه کی»

**یــوه مسـئله** چی دا کراهت په هغه سورة کی دی چی تعیین دهغه سورة واجب نه وي لکه الحَـمۡدُ لِلّٰهِ شریفه چی واجب دَه. او بَله په هغه سورتو کی چی دهَغو تعیین سنت وی لکه دوترو په اول رکعت کی» سَبِّحِ اسۡمَ رَبِّكَ الۡاَعۡلٰی» ترې یه پُوریږي. او دوهم رکعت کی قُلۡ یٰاَیُّهَا الۡکٰفِرُوۡنَ» او په دریم رکعت کی قُلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ» مراقی وجه دکراهت داوائی چی په دی تعیین کی هجر د باقی قرآن دی دقرائت څخه» او فقیه ابو جعفر الطحاوي وائی چی دا کراهت هَلته دی چی دمُصلی عقیده داوی چی بیله دغه سُورته په بَل سوَرت لمونځ نه دی رَوا. اوکی دغسی عَقیده نه وَه نو بیَا کراهت نشته،

دروېش وَائی چی داسی عقیده درلوونکی په مسلمانانو نړی کی که څه هم عوام وی سخی ډیر ښـادردي. نودَ مراقی وجه ډیره په زړه پوری ده **فَـائِـدَهْ:** داکراهت هلته دی چی دمُصلی نور سورتونه هم یاد وې. اوکی بَل هیڅ سُورت نه وو یَیاد لکه بعض عوام صحرا نشینه چی بیله قُـلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ» بل هیڅ سورت پیاد نه لرې بیا خو کراهت هیڅ سَوال نه پیداکیږی» در»

**دَتَبَرُّكْ دپَارَه** دآنحضرت صلی الله علیه وَسَلم هغه سُورتونه چی ده مُبَارك په مختلفو لمونځو کی تلاوت کړي بیا نیږی» ذکرهَا المراقی نقلاً عن الجلال السیوطیؒ» وترك اسانیدها وان کانت مسندة رومًا للاختصار» اکثر اوقات به

د مبارک دسحار په لمانځه کې سورة یٰسٓ وایه، یعنې په دواړو رکعتونو کې او دغه
رنګه دسحار په بعض لمونځونو کې سورة روم ویٔیلې دی.
او علیه الصلوٰة والسلام دسحار په لمانځه کې سُورة واقعه او مثل دهغه سورتونه ویٔیلي دي،
او په یو سفر کې آنحضرت صلی الله علیه وسلم دسحار په لمانځه کې قُلْ اَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ
او قُلْ اَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ وَوِیٔیله چې سلام یې وګرځوه حضرت معاذ رض ورته وویٔیل چې داسې
مونځ دې مونږ ته راکړي چې تر اوسه دې مونږ ته نه وو راکړي یعنې دسحار لمونځ په دومره
لنډ قرائت سره. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویٔیل چې تا نه واورېده ژړا دکشنې تر
ماوروسته په صفونو کې دښځو. نو ځکه ما دالنډ قرائت ووایه چې مور دکشني وخپل کشني
ته فارغه شي. او علیه الصلوٰة والسلام دسحار په لمانځه کې اِذَا زُلْزِلَتْ سورة یوازې ووایه
یعنې په دوهم رکعت کې مکرر کې دپاره دبیان دجواز، او علیه الصلوٰة والسلام په مکه مکرمه
کې دسحار په لمانځه کې سورة المؤمنین شروع کړه. چې ذکر د موسٰی او د هارون علیه السلام
ته ورسیدی علیه الصلوٰة والسلام ته ټوخې ودرېدی نو رکوع ته ولاړه یعنې سُورة یې
پوره نه کړه. او ګاهي ګاهي به علیه الصلوٰة والسلام دسحار په لمانځه کې قٓ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِیْدِ
سورة وایه. مطلب دا چې علیه الصلوٰة والسلام بیله عذره دسحار په لمانځه کې تر ۲ آیته
کم قرائت نه دی ویٔیلی. او په ماخستن کې تر ۱۰ اٰیته کم»
او علیه الصلوٰة والسلام دماپښین په لمانځه کې» وَاللَّیْلِ اِذَا یَغْشٰی آه وامثاله دهغه ویٔیلي
دي او په مازدیګر کې هم په مثل دماپښین. او په بعض اوقاتو کې دسحار په لمانځه کې سَبِّحِ
اسْمَ رَبِّکَ الْاَعْلٰی آه ویٔیلي دي. او ګاهي ګاهي به علیه الصلوٰة والسلام دماپښین په
لمانځه کې او ده مازدیګر په لمانځه کې وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ آه وَ السَّمَآءِ وَالطَّارِقِ آه
ویٔیلي دي وَنَحْوَهُمَا مِنَ السُّوَرِ» او علیه الصلوٰة والسلام بعض دوخت دماپښین لمونځ
وکاوه. او صحابه رض وائي چې په مونږ به اورېدې اٰیت اٰیت دسورة لقمان وَالذَّارِیَاتِ
یوه ورځ علیه الصلوٰة والسلام دماپښین لمونځ وخلګوته ورکاوه چې په ماپښین کې درکعت
په سجده تلاوت وکی. نو مونږ خیال دا سو چې تنزیل السجدة سورة یې ووایه»





درویش وائي چې په لمانځه کې یا جهري یا خفیه سجده تلاوت کول په مونږ پښتنو کې لکه
شریعت منسوخه داسې ګرځېدلی دی. عوام خو بیخي د لمانځه سجده تلاوت نه پېژني. حتی
چې یو حاجي دحج څخه راغلی وو. نو ما ته یې وویل چې عجب مې دا پلاو ولیده. په جده کې امام
دسحار لمونځ درې رکعته وکړه او د ماپښین په رکعت کې یوه سجده وکړه نو ده وویل ما بیرته
خپل لمونځ راوګرځاوه. ما ورته وویل چې هغه سجده تلاوت کړې دی. او علیه الصلوٰة والسلام
دماپښین په لمانځه کې او د مازدیګر په لمانځه کې سَبِّحِ اسْمَ رَبِّکَ الْاَعْلٰی او هَلْ اَتٰکَ
حَدِیْثُ الْغَاشِیَه» هم ویٔیلي دی»
او په حدیث کې راغلي دي چې یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم دماپښین په اول رکعت
کې وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا او په دوهم رکعت کې» وَاللَّیْلِ اِذَا یَغْشٰی آه ووایه. او په جهر یې سري
ووایه. وروسته تر لمانځه اُبَي بن کعب رض ورته وویل: اُمِرْتَ فِی الصَّلٰوةِ بِشَیْءٍ، یعنې
په جهر سره دقرائت دماپښین دلمانځه " ده ورته وویل لا بلکه زما به
جهر کې دقرائت دا غرض وو چې تاسې ته انداز دقرائت دماپښین د لمانځه در وښیم»
او په صحیح حدیث کې راغلي دي چې نبی علیه الصلوٰة والسلام دماښام په لمانځه کې ګاهي
سورة اعراف ویٔیلي دي. او ګاهي سورة الانفال، یعنې هر یو په دواړو رکعتونو کې.
ویحتمل ان یقصروا بایات من کل منهما، او یا دبیان دجواز دپاره دا دوه سورتونه
که څه هم ډېر اوږده دي ویٔیلي به وي. در» او په اخیري لمانځه کې دعلیه الصلوٰة و
السلام دماښام په اول رکعت کې سَبِّحِ اسْمَ رَبِّکَ الْاَعْلٰی. او په دوهم کې قُلْ یٰاَیُّهَا الْکٰفِرُوْنَ
ووایه. او دماښام په لمانځه کې په وَالتِّیْنِ وَالزَّیْتُوْنِ» هم ویٔیلي دی. یا دا سورت سر نیمې
کړي او یا یې په دواړو رکعتونو کې مکرر کې دپاره دبیان دجواز»
او دماښام په لمانځه کې حٰمٓ الدخان هم ویٔیلي دی یعنې په دواړو رکعتونو کې. او دماښام په
لمانځه کې سورة القارعة هم ویٔیلي دی. او د جمعې دماښام په لمانځه کې قُلْ یٰاَیُّهَا الْکٰفِرُوْنَ
او قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ غالبًا ویٔیله. او د ماخستن په لمانځه کې د جمعې دشپې به سورة الجمعة
او سورة المنافقین وایه» جبیر بن مطعم رض وائي چې ما دعلیه الصلوٰة والسلام څخه واورېده

چې دمَاخستن په لمانځه کې وَالتِّين وَالزيتُون، ووايه. ابی رافع وَائی چې ما په ابوهریره پسې دماخستن لمونځ وکړو نو د سورة اِذَ السَّمَآءُ انْشَقَّتْ شروع کړې او د سجدې په اٰیت یې سجده تِلاوت وکړه. نو د سجدې په بَاره کې ما د ده نه پوښتنه وکړه ده وَوَئیله سَجَدتُ بِهَا خَلفَ ابی القاسم صلی الله علیه وَسَلم: د عبد الله بن عُمر رضی الله تعالٰی عنهما څخه روایت دَی. چې نسته یو د مفصلو سورتو څخه که لنډ وی او که اوږد، مگر په داسې شان دی چې ما اوریدلی دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه چې په هغوی امامت ورکاوه وخلګو ته په فرضی لمانځه کې. نو داوو هغه تفصیل د سُورتو چې علیه الصلوٰة والسلام به فرضی لمانځه کې وَئیله: قَالَ المُصنفُ:

## وَتَرکُ اِتِّخَاذِ السُّترَةِ فِی مَحَلِّ المُرُورِ فِیهِ بَیْنَ یَدَیِ المُصَلِّیْ

اودغه رنګه مکروه دی نه نیول د سُترې په داسې ځای کې چې ګمان کول کیږی د تیریدو په هغه ځای کې په مابَین د حضور د لمونځ کوونکی. یعنی لارو د مرور او د عبور، لکن ط وَائی دا مکروه تنزیهی دی، په تنویر کې وَائی که د مرور ګمان وو لکه چې سری په خلاصه صحرا کې لمونځ کوی» لکن بیا هم دَ نیول یې اولی دی.

کتاب ——— نورالایضاح پښتو

مصنف ——— مَولانا عبید الله القندهاری

کاتب ——— فضل الحق حقانی

ناشر ——— مکتبة القراءة والتجوید

جلد ——— دوهم جلد



## فَصلٌ فِی اِتِّخَاذِ السُّترَة وَدَفعِ المَارِّ بَیْنَ یَدَیِ المُصَلِّی

فصل دی په بیَان کې د اختلو یعنی د نیلود سُترې. او دفع کول د هغه چاچې په حضور د لمونځ کوونکی تیریږی. د روایتو والا چې پښتو نه بلکه بعض ملایان د الفظ په زیر د سین وَائی لکن د لغت عَرَبی د لاری د الفظ په پیش د سین دی. او اګرچه د دی لفظ په لغت کې مَا یستر به الشیئ دَه لکن په عرف کې د فقهاؤ هغه شی ته ویل کیږی چې مصلی د مخه دَرَول کیږی په طور د علامې حتی خلګ پوه شی چې د سړی په لمانځه ولاړ دی نو ده او د سُترې ترمابَین به نه تیریږی.

**تَحقِیقُ المَقَام** په عنایه کې نی وائی چې په دی مسئله کې پنځه ځایه کې خبری دی: اول خبره داده چې لمونځ په تیریدو د هیڅ شی د مصلی د مخه نه قطعه کوی یعنی نه فاسدوی. لقوله علیه السلام لایقطع الصلوة مرور شیئ،

**سَوَال**، په صحیح حدیث کی راغلی دی چې قطع کوی لمونځ تیریدَ د ښځې او د خر او د تور سپی. **جَوابُ**: شراح د حدیثو مبارکه وو وائی چې مراد په دی حدیث کی قطع نَده بلکه قطع د حضور قلبی د مصلی دَه او په معنی حدیث کی من قطع حقیقی دَه. فلا تدافع بینهما» او دوهمه خبره داده چې تیریدو ونکی سخت ګناه کار دئه ولې چې په صحیح حدیث کی راغلی دی: که تیریدونکی خبر شی یعنی په مابین کې د حضور د لمونځ کوونکی، چې په ما باندی څومره ګناه دَه. نو دی به دریدلی وای، اَربعین. یعنی څلویښت راوی د حدیثو وائی چې زه نه یم چې څلویښت کاله علیه السلام یاد کړو او یا څلویښت میاشتې او یا څلویښت وَرځې. او دریمه خبره داده چې ورته مهمه دَه چې مقدار د هغه ځای چې هلته مرور مکروه دی څومره اندازه دَه. بعض فقهاءٌ وائی چې ځای د سجدې د لمونځ کوونکی دی، چې دا اسهل د مذاهبو دَی. وهو اختیار شمس الائمة السرخسیؒ او د شیخ الاسلام علی البزدویؒ او د قاضیخانؒ ده» او فخر الاسلامؒ وائی چې مصلی چې ځای ته د سجدې ګوری او سترګې یې پرما نه واقع کیږی. نو په داسې ځای کې مرور کراهت نه لري. او بعض

علماءُ وائی چې اندازه کې د دوصفو یا درو صفو چې سرې دلمونځ کوونکی مخ ته تیریږی گناه گار دی او تړدی که مسافه بالاوه بیا گنا ه اوکراهت نشته، اوبعضو فاصله ددروگزو اوبعض د پنځوگزو فاصله شرط بولي. اوبعض داسې هم وائی چې ترڅلویښت گزه په کمفاصله کی تیریدل مکروه اوگناه ده. داټوله مذاهب هلته دی چې په صحراکی سړی لمونځ کوي اوپه مسجدوکی بعض فقهاءٌ وائی چې دلمونځ کوونکی اوقبلې په خواکی مطلقًا مرور گناه ده که هرڅومسافت وي. اوبعض فقهاء یـه پنځوس گزه فاصله شرط بولي. قَـالَ المُصَنِّفُ

## اِذَاظَنَّ مُرُوْرَهُ يَسْتَحِبُّ لَهُ اَنْ يَّغْرِزَ سُتْرَةً تَكُوْنُ طُوْلُ ذِرَاعٍ فِيْ غِلَظِ الْاَصْبُعِ

که دمصلی گمان وو چې څوك به دی دمخه تیریږی نومستحب ده دده لره چې ښنخه دی کړی ستره. یعنې په ځمکه کی چې جګ والی یه یوگزوي اوپنډ والی یه دیوی گوتې وی یعنی کمه درجه یه داده. اوکی طول بالاوی یا یه پنډ والی تر گوته ډیر وی خو په طریق اولی ستره کیدای سی.

**پُوهـسَـه:** چې امام طحطاویؒ وائی چې ادنیٰ اتخاذ دسترې دا دی مطلقًا یعنی کی گمان د مرور د چا وی اوکه نوي. ولی په ستره سره دده سترگی دماوراء الستره څخه راگرځي اوفکر یه جمع کیږی. **سَـوال:** ستره خو په مقدار دیوه گزه ده اوغلظ یه یوه گوته دی نوڅرنگه دمصلی دماوراء الستره څخه سترگی راگرځي. اوخاطر یه جمعه کیږی. **جَوَابْ** امور شرعیه خپل حِکَم اومصالح لری چونکه سُتره امر شرعی دَه خدای جَل سُلطانه د لمونځ گذار سترگی اوذړه دبلی خوا څخه راگرځوی **پُـوهـسَـه:** چې استحباب زمونږد حنیفیانو مذهب دی اوامام احمدؒ یـه واجب بولي په مراعات د ظاهرامر د رسول الله صَلَی اللهُ علیه وَسَلم. اوبل په هغه حدیث دلیل وائی. چې عمر رضی الله تعالیٰ عنه وائی، چې که لمونځ گذاره خبروای چې زما دَ لمانځه څخه څونه ثواب کیږی نو بې لمونځ نه کولای مگر یوه شې ته چې دخلکو څخه بې پټولای. اودعبد الله بن مسعودؓ څخه روایت دی چې نیمی ثواب دلمانځه دمصلی په مرور سره دسړی کمیږي. چې ستره یـه نوی دَرَه وَلي، اوزمونږ په مذهب کی په





ستره مغصوبه سوهم کاکیږی ته په ثوب مغصوب کی لمونځ صحیح دی [illegible] دی، په حدیث مبارك کی راغلی دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمایل: لیستتر احدکم ولو بسهم، په بل حدیث کی راغلی دی چې دنبی السلام څخه چا پوښتنه وکړه دَ اندازې دسُترې دمصلی ده مبارك ورته وفرمایل مثل مؤخرة الرحل. تاته هغه چې د اوښ سپور شاورته لگوی، دهغه اندازه یوه گز نزدې یـه ده بلالا.

**پُوهـسَـه:** چې اقله اندازه کی دسُترې خلاف سته ویه کتبو کی اختلاف سته وپه دی هم پوه شه چې اقله اندازه کی یعنی دسُترې چه په وړاندې سړې اوس ست سړی هم کیږی لکن مخامخ ومصلی ته به نوي. اوپه وښ د مخ چوپ ـ ی که د القهستانی والحلبي.

**مسَـئَلـه:** په ښځه سره چې محرمه وی ستره نه ده ښوده وپه هغه موښځو کی اختلاف دی دروایتونو په عقیده چې ښځی به مطلقًا دسترې ځای نه سی نیولای. وغه هغه په لیونی کافر اوبیده سړي سترمنده مرور دروایتو وائی چې امام طحطاوی پردی قول د مصنفؒ في غلظ الاصبع اوبیا په مراقی کی وائي. وَذالك ادناه. یعنی غلظ الاصبع کمه درجه د ستری ده. داسې لیکلی دی: خلاف المذهب فلاحد له، اقول اورد هذالقول في التدوری بلفظ قيل وعلله صاحب الهدایه بما علله المراقي. یعنی دا قول دمصنفؒ اوبیا د مراقی قول خلاف المذهب دی، او بیا دحاکم په روایت دابی هریرةؓ څخه داسی روایت مرفوعًا نقل کړی دی. يجزئ من السترة قدر مؤخرة الرحل ولو بدقة الشعر یعنی کفایت کوی دسُترې څخه مقدار دمؤخرة الرحل که څه هم لکه و یښته داسې نری وي، ثم قال کذا في البحر عن القهستاني، دروایتونو وائی چې دمصنفؒ دلیل په مراقی کی: لان مادونه ربما لا يظهر للناظر فلا يحصل المقصود منها، یعنی کم ترگوته به ډیر څه نه ښکاره کیږی وکتونکی ته نومقصود د سَترې څخه نه حاصلیږی، معقول خودی لکن په مقابل کی دحدیث بیا اعتبار نه لري، وَاللهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابْ: قَـالَ المُصَنِّفُ:

## وَالسُّنَّةُ اَنْ يَّقْرِبَ مِنْهَا

اوسنت دا دی چې سُترې ته نږدې دریږی بعض فقهاء لکه ابن امیرحاج وائی چې دسُترې اود

ده د پښود مصلی ترډېرې شرعي ګزه به بالا نه وي. ودليل القرب، دا قول دعليه الصلوٰة و السلام دی. وَاِذَا صَلّٰی احدکم الی سترة فليدن منها لايقطع الشيطان عليه صَلوته، يعني که يوه ستاسي لمونځ کاوه وسترې ته نودې نږدې دی وستره ته ودرېږي نو که دَئې داعمل وکړو نو شيطان نه سي قطع کولای لمونځ دَدَه، ولې که مصلی دسترې ځخه لېرې ولاړوی نو شيطان و تيرېدونکی ته داپه خيال کې وراچوي چې دامُصلی ستره نه لري. ولې چې هغه لرګی خولېرې وَلاړدی نو به دسُترې اود مُصلی ترمابين تيرسي او مصلی ته به تشويش دغه فعله ځخه دمارپيدا سي. قَالَ المُصنفُ:

## وَيَجْعَلُهَا عَلٰى اَحَدِ حَاجِبَيْهِ وَلَايَصْمُدُ اِلَيْهَا صَمْدًا يعني بكرم

اوبل سنت دسترې دادی چې سُتره دې ګرځوي ديوې ورځې خپل پر برابر؛ اونه دې دربرې وسترې ته برابر يعني سيدهَا، لِمَاروی عن المقداد رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنهُ" دی وائي چې ماندې ليدلی رسول الله صلى الله عليه وسلم چې دَی دې لمونځ کوي و تنبيرته او يا درختی ته، مګر هغه بې ګرځوله پر راسته وَرَځراو يا چَپه وَرَځر وَلَا يَصْمد اليه صَمْدًا ای مُستويًا"، قَالَ المُصنفُ:

## وَاِنْ لَمْ يَجِدْ مَايَنْصِبُهُ فَلْيَخُطَّ خَطًّا طُولًا وَقَالُوا بِالْعَرْضِ مِثْلَ الْهِلَالِ

اوکه مصلی نه کی پيدا هغه شی چې دی يه ځګ ودَروی نو بيا دی خط وکاږی په اوږدو يعني پرطرف دقبلې او بعض عُلماء وائي چې په پساره دی وکاږی لکه داولوشپو مياشت، **پوه سه**: چې يوې ډلی دمتقد مينو ځخه چې بود هغو ځخه صاحِبُ دهدايه دی دخط ستره منع کړي دَئ. په عنايه کی وَائي چې که ځمکه سخته وه چې جګوَل دسترې نه سَوای پرکبنی کيدَلای نو هغه نيزه وغيره وَ مخته په اوږده کښيږدی تاچې پرهيئت دغرزسي" اوکه چيرې نيزه وغيره نه وَه ورسره زمونږ د حنيفيانو بعضی متأخرين وَائي: يخط خطًا طويلًا وهوقول الشافعی





او يا مثل الهلال کما فی نور الايضاح: قَالَ ولم يعتبره المصنفُ يعنی صاحِب هدايه وخط ته اعتبار نه دی کړی لِان المقصود منه وهو الحيلولة بين المُصلی والمار لايحصل به فيکون وجوده کعدمه" ولې چې مقصود دخط ځخه مانع والی دی په مابين کی د لمونځ کوونکی او د تيريدونکی. او هغه مقصود په خط کی نه حاصلېږی. نو وجود دخط لکه عدم دی" وهو المروی عن ابی حنيفةُ ومحمدٌ" او فتح القدير دمَبسوط ځخه وشيخ الاسلام نقل کړي دی. چې خط ليس بشئ" اود صاحب الهدايه په نيز پر ځکله اينوول دلرګی او خط دواړه اعتبار نه لري. لکن هشامٌ د امام ابويوسفُ ځخه روايت کړي دی چې ده بيا دلمانځه په وخت کی درې ومخته واچول او لمونځ بې وريته کاوه. متأخرين وَائی چې دخط په باره کی اثر موجود دی. چې روايت يې ابوداؤد کړي دمقدادرضځخه" انه اذا صلّی احدکم فليجعل تلقاء وجهه شيئًا فان لم يجد فلينصب عصا فان لم يکن معه عصًا فليخط خطًّا ولا يضره ما مَرّامامَه" قال صاحب الفتحُ والسنة اولٰی بالاتباع مع انه يَظهر فی الجملة وبربط به خيال المصلی کيلا ينتشر آه "

**سوال**: دغه حديث خو په بدائع الصَنائِع کی وائي چې شاذ دئ. او امام نووی هَم ضعيف ګنړلی دی **جواب** ددی حديث تصحيح امام احمدٌ او ابن حبانٌ کړي دَه. او نور هَم امام طحطاویٌ وائي که ومنل سي چې خط فائده نه لري نو تا وان خوهم نشته په کبنی. او بيا هَم په خط کی خو عمل دی په حديث مذکور که څه هم ضعف يې ومنل سي او عمل او عمل په وړ ته حديث په اعمالو کبنی روا دی. درولش هم داامام مذکور سره همخياله دی: وَ لِلنَاسِ فِيمَا يَعشقُونَ مذاهبُ:

**مسئله**: که لمونځ په جماعت سره وُو نو ستره د امام ستره دقوم دپاره هم دَه. وَلې چې په حديث شريف کی راغلی دی چې آنحضرت صلى الله عليه وسلم په ابطح کی لمونځ يې کړی ته کاوه چې په سرکې و سپينه وه چې عنزه ورته وائي او قوم لره ستره نه وَه. قَالَ

## وَالْمُسْتَحَبُّ تَرْكُ دَفْعِ الْمَارِّ وَرُخِّصَ دَفْعُهُ بِالْاِشَارَةِ

او مستحب دا ده چې مصلی دی دفع دتيريدونکی (مار) نه کوی) ولې چې بناء دلمانځه پرسکون

اووقـارده. اوهغه امرچـې پـه دره یعنی دفع سَرَه پـه حدیث نبوی کی راغلی دی دَپاره دبَیان د رخصت دی» او رخصت کړه سوی دی پـه دَفع کښی پـه اشاره یعنی دَلاس وَغیره اویا پـه تسبیح وئیلو سره اوده دواړه جمعه کول مکروه دی» لان بـا حدهما کفایة» پـه حدیث مبارك کی راغلی دی چې: یوه وَرځ رسول الله صلی الله علیه وسلم پـه خونه کی دام المؤمنین امرسلمة رضی الله تعالیٰ عنها لمونځ کاوه یعنی نفلی لمونځ دامرسلمة رض د مخی مېرځنی دوه عیاله وه یونَرچې عمیرة نومیدی او بل ښځه چې زینب نومیدَ له. نو عمیره غوښته چې د علیه الصلوٰة و السلام د لمانځه د مخه تیریږی. آنحضرت صَلی الله علیه وسلم په اشاره یـه دفعَ وکړه اوهغه ودریدَی. وروستـه زینب اراده وکړه چې تیره سی. علیه الصلوٰة والسلام وهغی تـه هـم د دریدو اشاره وکړه. لکن هغی عملی نـه کړه او د لمانځه دمخه تیره سَوه. څروخت چې علیه الصلوٰة والسلام دَ لمانځه څخه فارغه سو نو زینب تی وکتل او داسی وو ئیَـله: نَـاقِصَاتُ عَقْلٍ» ناقِصَاتُ دِیْنٍ» یعنی نفسی ښځی ناقص العقل دی او دین یـه هم نـاقص دَی صَوَاحِبُ یُوسُفَ او ښځی هغه دی چې یوسَف علیه السلام یـه پـه اضطراب او پَه حبس اخته کی. چې هغه ښځی امرأة العزیز او هغو ملګری پـه تقاضاء کی د زنـا د یوسف علیه السّلام څخه» صَوَاحِبُ کرسف» صحابه کرام رض دَ علیه السلام څخه پوښتنه وکړه چې مَن کرسف» علیه الصلوٰة وَالسّلام ورتـه وو ئیَله چې دا یـو سړی وو یعنی پـه تـیرو سوو امتو کی چې دیرش، کاله پر ساحل البحر یـه د خدائ عبادَت کړی وو» اخیر یـې یوه کافره ښځه باندی عَاشِق سُو.

چې هغی ورَتـه دعوت د کفر ورکړی او دی هم ورسره کافِر سُو. لکن هغه د مخه نبو عملو د ده سره کومك وکړی. او توبـه یې وکښه. او بیـا تـه مسلمان سو. علیه الصلوٰة وَالسّلام زیاته کړه» یَغْلِبْنَ الکِرامَ و یغلبهن اللـئـام» او ښځی غالبی وی په پـاك نفسو خلګو چې د شریعت مراعات کوی او د ما ښوپر ادنی کار ز دوکوب نـه کوی» او پر ښځو غالبه دی بی دینه او بی پـروَا کسَان» یعنی د هغو څخه ښځی بیږی ی چې پر ا ندك شی یَه تر ډبه وَلو لا ندی نسی» فافهم»





واقِعَه

دوه وروڼه وه پـه قند هار کی چې مشریـه ماینه درلوده. او بل ورسره پـه عناد وو. او ماینه یـه ډیره پر غښتلی وه. وروستـه کشر ورور تـه یـه کور کی وځ یـه سوه او ناوی یـه کورتـه راوستـله پر تخت یـه کښینوله پـه کور کی نرځ چې دواده هغه ناره وکړه. کشر ورور تـو فلك وروا خستی او دایـ وویـل چې زما گمان دا وو درلود چې پـه دی کور کی تـر یوازی زه یم. خره تـه هم د ناوی والې دعوه دی وکړه. تـهک یـه پر وَکی څخ مړ کړی، ناوې پر تخت بـاندی و بیریدَل چې پـه څه بَلا میره اختـه سوې. حاصل دَا چې د کشر ورور مـاینی پـر کور کی د مېړه او لیوره سره او د کور د لویه او کشنی سره ډیره ښه و شمیت کاوه. نومشر ورور کشر ورور تـه وو یَل چې داستـا ماینه ډیره ښه ښځه ده. دَ زما ښځه خو هیڅ اخـلاق نـه لری او تَرما پوری ټوله کور خا ندی پـه عَذاب دی د د بے څه سَبب دی کشر ورور ورتـه وو یَل ما د خپل ماینی پـه اوله وَرځ زره څندی وکښی او خپله سَره ستر ګه می ور معلومه کړه چې خرمی پـه ګولی وو یشتی. مشر ورور دَ ځانـه سره فکر وواهه چې دا خو آسانـه چم دی بله وَرځ چې دَ مشر ورور خره ناری کړه. مشر ورور توپك پر راوخستی چې تـهك ئی پر وَکی او مَاینه پـه و بیر وی. ماینی ږغ پـر وَکی چې ښا حقه خر مه وژنه ماتـه ستا د سری ستر ګی د رلك وختـی را معلوم سَوی دَی. دا د بو یـه کتابو کی وائی. چې دَ عَربو قـد یمه اصطلاح د ښځو چې د میړه د رلك و ځانـه معلوم کړی. داسی وَه چې یوه ښځه چې د پلار د کور و د یـدَ ل نو یوې سَپین سَری ښځی بـه د مېړه د امتحان دپاره داسِی نصیحت ور تـه کاوَه چې ترواده ور وسته چې تـه د کور پـه کارو بـا ل شروع وکړی یوه وَرځ چې میړه دی پر کور وی دَدَه سپر را واخله غوښی پر میده کوه. میړه خو د رتـه والې چې دا څه کوی سپر خوږ ما د جنګ شئ دی او تـه غوښی پر میَده کوې. تـه ورتـه وو ایـه چې څرنګه کور دی چې د غوښو د میدو تخته هم نستـه پکښی نو زه خو غوښی پر وَرانـه نسَم میده ولائ. نو که میړه پـه ښه ژبه درتـه وو یَل چې تـه سَپر کښیږده زه بـه هم اوس تخته درله راوړم. دا یو امتحان وو. سپین سری دا هم وَرتـه وو یَل چې څه و ر ځی وروستـه بیا یوه ورځ چې میړه دی پر کور وی. د ده توره را واخله

اوپر هغه تخته اړوکی پهٔ ماتوه. دی به درته ووائی چې دا څه کوی پړاڅو کوخود تورې نغ اوړی. اودا زما عزیزه سلاح ده. ته ورته ووایه چې دا خرنګه کوږ دی چې نه یو ساتل په کښې اوئه یو غټه چاره چې زه اړوکی په مات کړم پلاس خوږه اړوکی نه سمرماتولای نوکه ده په دې دلاسائی ورته وویل چه ته توره کښېږده زه به د بازاره څخه یو غټه چاره درله راوړم» دا دوهم امتحان دی. خوورځې وروسته بیا یوه ورځ دهٔ غشی راواخله په دروازه کی سره پیچه دی خواه مخواه درته وائی چې دا دې بیا څه کار په مخ را اخستی دی. په دی کار خودا غشی بری خرابیږی. ته ورته ووایه اوبوڅه دزر راچم هم وکړه چې زه دې دی کوږکی څرنګه ګذاره وکړم. چې ته پرهرشی ماته منت کوی ما په دروازه کی سوری کاوه چې یوه زلفی یا ځنځیروړ واچوم. نو په کوږکی می وکتل نه یو تیره پیچ کش وه اونه برمه وه نوزه په ګوته دروازې ته سوری نه سمرو کولای که ده په دې دلاسائی درته وویل چې ته غشی کښېږده» زه د بازاره برمه درله راوړم» دا دریم امتحان دی. نو وروسته به سپین سری وناوی ته وویل چې په دی دری امتحان کی چه ته کامیابه سوې. فَقُعْ عَلَيْهِ الاكافُ فاِنَّهٗ حِمَارُكَ» نو پرمیره دې پالان کښېږده چې دی دې د عمر دپاره ستا خرسو» دروښ وائی چې زه نه یم خبر چې زمونږد پښتو سپین سری به ناویا نوته څه څه امتحا نونه وړ بښې» قَالَ

## وَيُدْفِعُهُ بِرَفْعِ الصَّوْتِ بِالْقِرَاءَةِ وَتَدْفِعُهُ بِالْإِشَارَةِ

اود فعه کوی دی نیریدو نکی مُصلی که نروو یه پوته کولو سره داوان او به قرائت سره. اوکه لمونځ کوونکی

## وَالتَّصْفِيقُ بِظَهْرِ اَصَابِعِ الْيُمْنٰى عَلٰى صَفْحَةِ كَفِّهَا

ښځه وه نودا به دفعه کوی تیریدونکی په اشاره سره. او یا په ټکولو سره د شا دګوتو د ښته لاس د دی پرشا باندی د ظاهر

## الْيُسْرٰى وَلَاتَرْفَعُ صَوْتَهَا لِاَنَّهٗ فِتْنَةٌ»

دارغووی دچپه





ددی اود دفعې دپاره به دانه پوره کوی آواز یعنی نه په تسبیح ویلو اونه په قرائت ویلو سره ولی پورته کول د آواز د ښځی فتنه ده»

**تنبیه** چې رفع دصوت ددی په صرف تسبیح ویلو سره هغه هم په لمانځه کی دپاره امر شرعی چې دفع دماره فتنه» نو څرنګه به فتنه نه وی پوره ته کول داواز د ښځو په غزلو ویلو سره په داسې توګه سره چې په کوڅو او نورو کوړو کی هم اوریدل کیږی په ودو او نورو خوشحالیو کی. او څرنګه به فتنه نه وی خبری د ښځو په راډیوګانو کی او یا په ټلویزنو کی چې پوره صورت د دې هم په کښې معلومیږی او د بعض ملایانو په کورو کی هم د غه ټلویزونونه موجود دي. او څرنګه به فتنه نه وي دوکانداری د ښځې په عامو بازارو کی. اوه پایان و دې ته د ښځو آزادی ترپینوله ندې کول وائی» او ما نعا توته په شدت پسنده مُلایان وائي. افسوس چه بعض دُوَلِ اسلامیه د دې خبری د غه بیانو حمایت کوی» چو کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلمانی»

چو بینم دین احمد در غریبی :: دلم سوزان ز چشمم خون جاری :: وورد فی الحدیث الصحیح قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ماتركت فتنةً اَضَرَّ على الرجال من النسآءِ» مانه ده پرې ایښی یوه فتنه چې ډیره ضرر رسوونکی دې وي ونروته تر ښځو. صدق رسول الله صلى الله عليه وسلم

**پوښتنه**: چې ولې د ښځو دپاره د دفع دمار دا اجازه نسته چې لاسو ورغوی سره ووهي

**جواب**، دا ټکول خو هغه فتنه انګیزه چکچکی دی چې دوی یه په ودو وغیره کی کوي. او وه اوریدونکو ته تر آواز ددی پر دغه چک چکو خوند اخلی

**مسئله**: رفع الصوت په قرائت سره صرف او صرف په جهري لمانځه کی روا ده نه په سری لمانځه کی. ولې چې جهر په سري لمانځه کی مکروه تحریمي دی او دفعه دمار رخصت دی نو مکروه تحریمي د رخصت دپاره څرنګه سره مصلی کولای سي» بحر، ط»

**مسئله**: که ښځې د دفع کولو دپاره تسبیح ووئیله چې دې نه خو اجازه نه وه. او یا نر په لمانځه د دفع مار دپاره تصفیق وکړی چې د ده کار نه وو. لمونځ خو د دواړو نه دی فاسد لکن خلاف السنة کار یه وکړي»

## ولا یقاتل المار وما ورد به مؤول بانه کان والعمل

حتی ... مصلی د مارسره یعنی په سوکانو وهلو سره اویا په لغتوسره اویا په نوروحملو سره. اوهغه چې په حدیث شریف کې امر دقتال راغلی دی. دهغه

مبـاح وقد نسخ تاویل دادی چې په ابتداء کې داسلام مصلی ته د ذکرسوي قتال اجازه وه په داسې حال کې چې په هغه وخت کې نور عملونه هم مصلی ته رواوه لکن هغه عملونه منسوخ سوه نو قتال هم ورسره ولاړی،، حاصل د کلام دادی»

د بدرالدین العینیؒ په شرح کښې د بخاری ذکر کړی دی. کې څه هم عینیؒ نسبت وما لکیا نو ته کړی لکن قواعد د احنافو ورسره هم منافی نه دی. هغه وائی که چیرې تیریدونکی وده ته نژدی وو چې د مصلی گام پورته کوی ... نه غوښته اول دی اشاره ورته کړي یا دی تسبیح ووائی که هغه ... سې سپکه چپلاخه دی پرځیگر وواهی اوکه په هغه دفعه نه سو، نو هغه ... چې ذکرسوه دی ورسره کوی. ولې چې هغه عمل کثیر دی که څه هم عمل کثیر په ابتداء د اسلام په لمانځه کې روا ؤ خو بیا هم منسوخ دی لکه مصنفؒ چې وویله.

اوکه مار تیری وو نو د مصلی خوښه ده که اشاره ورکوی اویا تسبیح ورته وائی. اوکه پرینږدی مطلب دا چې بیې روانیږی به نه. اوکه د مخه د مصلی پیشی تیریدله چې په اشاره نه پوهیدله په لغت دی وو وهی. درویش وائی چې هغه حدیث چې مصنفؒ اشاره ورته وکړه دادی: چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائی چې هغه وخت چې سړی لمونځ کوي نه دی پرینږدی هیڅ څوک چې دده د مخه سره تیریږی. او دفع دی کړي په هغه ټول چې ده ته ممکن وي یعنی په اشاره سره اویا په تسبیح سره. اوکه هغه مار اباء وکړه یعنی تیریدی. نو ده دی جنگ ورسره وکړي. ولې هغه نه دی مگر شیطان یعنی دغه سرکښې دده فعل د شیطان دی.

**مسئله** که مصلی په ظاهر روایت د حدیث عمل وکړي او ماریه په لغته وواهه اویا یې په سوکه وواهه هغه مړ سو. پر مصلی خوگناه نسته په اتفاق د علماؤ. او دیت د مړي پر سته اویا مرگ یې لغو دی، د علماؤ په دی کې دوه مذهبه دي. او هغه علماء چې دیت





پر لازم بولي. بعض وائی چې ټول دیت د مصلی د مال څخه ورکړه سي. او بعض وائی چې دیت به پر عاقله یعنی پر قوم د مصلی دی،، وفی الدر عن الباقانی وائی چې د دغه مار مرگ لغو دی هیڅ دیت نه لري په نیزد شافعیانو. او د حنفیانو په نیز ضمان نسته،، ط،،

**پوهسله:** چې امام محمدؒ د دغه حدیث مذکور تاویل په دی سره کړی دی چې په سختۍ دی دفع وکړي خو حاصل دادی چې په نیزد عامو علماؤ ظاهر د حدیث مراد نه دی،، والله سبحانه وتعالی اعلم وعلمه اتقن واحکم،، بیت،،

نقصان نه قابل است وگرنه ؛ علی الدوام فیض سعادتش بهمه کس برابر است ؛

همت بلند دار که نزد خدا و خلق ؛ باشد بقدر همت تو اعتبار تو ؛

## دَ اوولی څخه یو جهان لشکر

ای نسیمه زیری وکړه د صباح
په رونا چې مو خوشحاله سی ارواح

د احنافو فقه ټوله په پښتو سوه
چې تفصیل سوا جالی نور الایضاح

ایولی ته می ترخوله دعاوی وزي
چې بیان سوه ټول حرام او هم مباح

ربه ته لې عمر نور هم په صحت کړي.
لې خبره مؤمن اوس کړي خپل اصلاح

که تا هیڅ دعا د لانو په لاس لیک سو
ایولی به وی اول پر دی الواح

حقانی ته هم امید لره له خدایه
د نجات اودر گذر هم د فلاح

## فَصْلٌ فِيمَا لَا يُكْرَهُ لِلْمُصَلِّي

دافصل دی په بیان کی د هغو شیانو چې مکروه نه وی مُصلی ته:

**پوښتنه:** چې مَراقی بیان د لفظ د "مَا" په فیما کی په افعالو سره کړی دی لکن ظ و ائی او یا اقوال لکه مکرره وَیل دیوه سورت په دوو رکعتو کی د نفلو، شاید مصنف په مراقی کی دد ی وَجهی تخصیص دا فعالو کړی دی چې افعال غیر مکروهه ډیردي تر اقوالو، قَالَ

## لَا يُكْرَهُ لَهُ شَدُّ الْوَسَطِ وَلَا تَقَلُّدٌ بِسَيْفٍ وَنَحْوِهِ إِذَا لَمْ يَشْتَغِلْ بِحَرَكَتِهِ

نه دی مکروه لمونځ کوونکی ته ملا تړل په دسمال یا کمربند وغیره سره کرشه هم بیله عذره وي. ولی چې په دی کی ځان ښه چسپکول دی د عبادت دپاره اودغه رنگه نه دی مکروه په غاړه یا په اوږه کی اچول د توری او یا مثل د توری لکه توپك وغیره لکن حالت چې د مصلی زړه نه مشغوله کیږی په حرکت د هغه سلاح توره وغیره.

**مسئله:** کرسړی قبا اغوستی وه او مشد ود الوسط نه وه دی گناه کاره دی. او کی لاندی تر قبا قمیص نه وو بیا خو شد الوسط او یا په لاسو نیکول یه لازم دی. ولی بیله دغه خو کشف العورت لازمیږی **فائده:** قباء چې په اصطلاح کی د پښتنو یه چپنه بولی او په عربی یه قفطا نهم بولې. هغه اوږده جامه ده چې د مخ دخوا تر پایه پوری چاك لري او تر شا چاك نه لري.. اهل تواریخ وائی چې اول لابس د قبا سُلیمان نبی عَلیه السلام وو" وفی المَراقی وفی غیره قیل بکراهته لانه صنیع اهل الکتاب" یعنی په غیر کی د قبا لکه پوستین، کوسئ، سمور" بعض علماء وائې چې بیله تړلو دی گناه کاره دی. ولې چې دا اهل کتابو فعل دی. لکن دا مذهب ضعیف دی لکه مصنف چې په قیل اشاره ورته وکړه ولی دد ی شیانو په تړلو کی حَرج عظیم دی. ط، قَالَ المصنف

## وَلَا فِي إِدْخَالِ يَدَيْهِ فِي فَرْجِيِّهِ وَشَقِّهِ عَلَى الْمُخْتَارِ

او دا غه رنگه مکروه نه دی داخلول د لاسو د مصلی په فرجی کی. فَرجی هغه قبا ده چې ده شا څوا





باندې چاك لري. چې په پښتو یه بالاپوښ بولي، او نه په مشق کی. **پوښتنه** چې شق چې په عربی یه عَبَا هم بولی د غسی چپنی دي چې ډیری اوږدی وی چې لستوڼي نه لري. صرف د لستوڼو په ځای کی یو فراخه غاروی چې. ترهغو لاسونه کښه کیږی لکن مبا چې حاجیان د تحفی په ډول بعض ملایا نو ته راوړي. په دی قسم کی یو فراخه غاروی چې تر هغو لا سونه کا بږی. په دی قسم کی بعض صرف یو تکړه وی استر نه لري. او بعض گرم استر لري.

**پوښتنه:** چې مصنف علی المختار ووایه" دد ی سَببه چې بعض فقهاء وائی چې لاسونه کښل لازم دی. او بیله ده لاسو کښلو لمونځ مکروه دی. درویش وائی چې په دغو لباسو کی قدیمًا او حدیثًا اختلاف سَته، لکن لکه چې درویش د مخرم ووَیل چې مبنی دده لغو لباسو په لاسو کښلو کی په عرف دلا بسینو د دغو لباسو ده. بیله لا نځه که بیله لا نځه لاسونه کښل عادت نه وو نو لمونځ هم بیله لاس کښلو مکروه نه دی. وعلی العکس لمونځ مکروه دی. فتدبر و الله اعلم بالصواب" قَالَ المُصنف:

## وَلَا التَّوَجُّهُ لِمُصْحَفٍ أَوْ سَيْفٍ مُعَلَّقٍ أَوْ ظَهْرِ قَاعِدٍ يَتَحَدَّثُ

او دغه رنگه مکروه نه دی لمونځ کول چې دَمخ وخواته قرانْ مبارك پروت وي او یا توره وي چې ځړیږی. او دغه رنگه نه دی مکروه لمونځ کول وشا ته د ناست سړی چې هغه خبری کوي وجه د عدم کراهت دَا ده چې د دغو شیانو عبادت څوك نه دی کړی او خدای جل سلطانه هم وائی: وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ: او توره چې وړخته ته د سړي پرته وي نو دی ښه قدرت لري پرا خستو یه په وخت کی د حاجت. او شا ته د قاعد تشبیه د عبادة الاصنام سره نه ده. وورد انه صلی ابن عمرؓ الی ظهر نافع"

**پوښتنه:** چې د قاعد قید اتفاقی دی. د قائم هم دغه حکم دی. او قید د ظهر احترازی دی. ولی چې وړخته د قاعد یا قائم لمونځ مکروه دی. ولې عَبدة الاَصنام وړخته د خپلو بتانو سجدی کولې نو د دوی سره تشبه مکروه ده، او قید د یتحدث" دد ی دپاره دی که چیرې

هغه قاعده خبري نه کولې بيا خو په طريق اولیٰ لمونځ مکروه نه دی. **فائده** ق عِد په کرار کن  نبري کولې چې ومصلی ته تشویش نه پيدا کوی ورنه بيا مکروه دی. ط

## بنهَ‌نَه وَ رَبَاره

**پوښتنه**: مصنف د څه ضرورت د وجې مسئله د توجه د مصحف شريف او د توری معلق مسئله راوړه. **جواب** په کفايه کې شرح د هدايه کې وائي چې وجه د راوړلو د دو مسئلو دا ده چې بعض علماء دا دواړه مکروه بولي. د توری د کراهت سبب دا بيانوي چې توره خو آله د حرب وه نو مناسب نه ده. چې په ځای کې د عجز او ابتهال چې لمونځ دی د مخه کښيښول شي. وقيل هوقول عمر رضی الله تعالیٰ عنه. او د مصحف و مخته ايښوولو د کراهت وجه دا بيانوي چې په دې کې تشبه د اهل کتابو سره ده چې هغوی هم خپل کتابونه ومخته ايښوول په لمانځه کې. وقيل هوقول ابراهيم النخعيؒ دی. والجواب عن الثانی» دا دی چې اهل کتابو به خپل کتابونه د دې دپاره مخته ايښوول چې په لمانځه کې بې د هغو څخه قرائت کاوه. او د قرآن شريف څخه تلاوت خو زمونږ په نيز مکروه دی مسئله خو د لته دا ده چې صرف قرآن د مخ وخواته پروت وی. او سړی لمونځ کوی بيله دی چې تلاوت د مصحف شريف څخه کوی» وشتان بينهما، نو په دی کې هيڅ تشبه د اهل کتابو سره نشته. نو قرآن شريف که د مخه د مصلی پروت اوکه ځړيږی دواړو کراهت نلري. او ده اول چې سيف معلق دی. جواب دا دی، چې مونږ نه نو چې توره آله د حرب ده لکن لمونځ دوه جهته لري جهت د عجز د خدای جل سلطانه ته. او جهت د حرب د شيطان سره نو ځکه محراب بولی يعنی ځای د جنګ. نو د جنګ او عجز تر مابين منافات نشته لتغاير الجهتين» او بل جواب دا دی چې مونږ په صلوٰة کې امر سوی يو په اخذ د سلاح» قال الله تعالیٰ: وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ نو توره چې معلق وی و مخته د مصلی نو اخستل يې اسانه دې وو ده ته کې حاجت ورته پيدا شو نو [illegible] اهت هيڅ وجه نشته» او دی خبری بخلی هغه حديث صحيح کوی چې صحابه رضی الله تعالیٰ





عنهم وائی چې عنزه چې هغه لکړه ده چې په سر کی تيره وسپنه ده د آنحضرت صلی الله عليه وسلم د مخه به چا اخستی وه نو وخت کی د لمانځه به دا ده مبارک د مخه دره وله کيدله. او په دی کی شک نشته چې عنزه خو هم آله د حرب ده انتهی قول الکفايه بما حاصله مع الزيادة منه.

قال المصنفؒ **اَوْ شَمْعٍ اَوْ سِرَاجٍ عَلَی الصَّحِيْحِ** او دا غه رنګه مکروه نه دی لمونځ چې و مخته مصلی شمع لګيږی او يا څراغ لګيږی پر صحيح روايت. ولی چې په دی کی مشابهت د عبادت سره د مجوسيانو نشته، ولی چې مجوسيان عبادت سکرو ته کوی نه وه بل اور ته کذا فی فتح القدير و کذا السيد فی الشرح وقدم بعض التفصيل» او صحيح په لفظ کی اشاره وی ته ده چې په بعض روايا تو ضعيفه وو کی راغلی دی چې دا مکروه دی. شايد هغو صرف دا اوريدلی وی چې مجوسيان د اور عبادت کوی نو شمع او څراغ خو هم اور دی لکن دوی ته دا در لک نه دی معلوم چې مجوسيان خود سکرو ته عبادت کوی نه د بل اور» قال المصنفؒ:

**وَالسُّجُوْدُ عَلٰی بِسَاطٍ فِيْهِ تَصَاوِيْرُ لَمْ يَسْجُدْ عَلَيْهَا** او دا غه رنګه مکروه نه دی لمونځ کول پر هوار سوی شی چې په کی بتانو داسی تصويرونه او بتان وی چې مصلی سجده نه پر کوی **پوښتنه**: چې مراد د بتانو څخه بتان د ذی روح شی دی. ولی د غير ذی روح لکه درخت پر تصوير باندی سجده هم روا ده. چنانچه هغه مصلی وی چې د عربستان په حاجيانو او ريدلی د عين سجدی په ځای کی د محراب صورت. او يا د مسجد مکی يا د مسجد مدنی نقشه وی. ولی چې د غه بتان سپک استعماليږی چې تر پښولاندی کيږی نو تعظيم د بت نه دی» م» داسی عبارت په جامع صغير کی راغلی دی. او بدائع هم صحيح ګڼلی دی او تاج الشريعة يې هم بخلی کړی دی. او په مبسوط کی عبارت د کراهت مطلق ويلی دی. يعنی که سجده پر کوی او که نه. او صاحب النهر وائی چې مطلق عبارت د مبسوط محمول پر مقيد دی» ط» يعنی چې سجده پر کوی فارتفع الاختلاف»

خدايه وبخښې مؤلف او هم کاتب؛ دعاء تل رب قبلوي دوړو غايب؛ حقانی غفرله

قَالَ الْمُصَنِّفُ **وَقَتْلُ حَيَّةٍ وَعَقْرَبٍ خَافَ أَذَاهُمَا وَلَوْ بِضَرَبَاتٍ**

اود غه رنګه مکروه نه دی وژل د مار او لړم د مصلي دخوا چې مُصلي بيريږي د آزاره نه دوی که څه هم په څو واره وهلو سره وي چې عمل کثير دی. او که د اراز بيريدی نو عمل کثير په لمانځه کې خو مکروه تحريمي دی. **فائده**: په صحيح حديث کې راغلي دي: اُقْتُلُوا ذاالطفتين وَالابتر واياکم والحيته البيضاء فانها من الجن» يعنې تاسي وژنی مطلقاً يعنې که په لمانځه کې يا سِت که بيله لمانځه هغه مار چې پر شا يا نه دوې ليکې لري چې دا مار ډېر خبيث مار دی. او ابتر مار يعنې چې لکۍ په لکه پرې وي چې موږ په لنډي بولو او ځان ساتي د سپين مار ده وژلو نه ولې چې د پيريانو د قسم نه دی»

**مسئله**: که لمونځ کوونکي د آزاره د مار لړم وغيره په امان کې وُو. نو که په عمل قليل وژلای سوای لکه يو ه پلا په څوټه يه وه وهي نو خو کراهت نشته. او که عمل کثير لکه څو واره ضربات يا په انحراف د قبلې نه نو په دې کې اختلاف دی» حسنؒ د امام اعظمؒ نه روايت کړي دی چې د غه قتل په عمل کثير يا انحراف د قبلې نه سره د امن مکروه خو دی لکن لمونځ نه په فاسديږي. کذا قال الامام السرخسيؒ. وقال الحلبيؒ صحيح دا ده چې لمونځ په فاسديږي که څه هم په نفس وژلو د دغو موذيانو په لمانځه کې قاتل ګناه کار نه دی. وهذه رواية مبسوط شيخ الاسلام وعليه عامة شروح الجامع الصغير وقال الکمالؒ الاصح في المسئلة المذکورة فساد الصلوٰة ط بتغيير وتقديم وتاخير» وفي المراقي نقلاً عن سبعيات الفقيه ابي الليثؒ»

او شيان دي چې مصلي يه وويني. لَابَأْسَ بِقَتْلِهَا» پروا نشته په وژلو کې په لمانځه کې ۱ـ ماردی ۲ـ لړم ۳ـ کربوړی ۴ـ غالبوزه که ژړ وي که تهنده، او که مچ وي که مچکوچی، ۵ـ او منګږ ۶ـ او کيکه ۷ـ او شپږه او لعض علماء وو غوماشيه هم پر يا ته کړيده، او موږ ميږی چې سا نګور ميږي په بولي يا حبشي ميږي په بولي. هم پر يا ت کړي دی. لکن د شپږي دونو نحي دځان ساتي. ولې هغه په نيزد امام شافعيؒ نجس دی. وَقَالَ بعضهم چې نيول د شپږي





او يا وژل د امام اعظمؒ په نيز مکروه دی. لکن د اهلته مکروه دی چې د اشپږی مصلي نه آزاروي په باره کې د مار د وژلو صدر الاسلامؒ داسي وائي چې صحيح دا ده چې په وژلو کې د مار انو ده سري د ير احتيا ط کوي چې جني پيري ځندی قتل نسي»

تا چې بيا سبب د لوي آزار د جنی دخوا نه ونه ګرځی. او چې سړی مار ووينی چې شک د جنی پيري ځندی وسي. يعنې سپين وي او سمدم روان وي. اول دی ورته ووائي چې خالی کړه لار د مسلمانانو تير سه. نو که تير سو نو ردی کار نه په لري. او که نه ايسته کيدی او يا ئې جنګ کاوه مړ دي کړي» صدر الاسلامؒ وائي چې زما ماشر ورور يو لوی غټ مار چې زموږ په کور کې پيدا سوی وو په توره په وواهه او مړ ئې کړئ. د پيريانو دخوا دی پر پښو وو هل سو. چې په دوارو پښو شل سو او پښې په تر ډيرې مياشتې پورې هيڅ حرکت نه در لودی. حتی چې بيا مو دواوي هم په وکړي او هغه پيريانو موهم راضی کړه بيا هغو پرې سو او جوړ سو دی وائی. چې داخو زما چشم ديده واقعه ده.

درولتي وائي. چې هغه خبره چې قهستانی د شرح التاويلات نه نقل کړی ده. چې وائي چې پيريانان ډير ضعيف دی تر انسانانو» او دوی قدرت نه لري پر وژلو د سړي او يا د هغه د مال پر وړو باندي پر فاسد ولو د هغه مالو» خلاف د بداهت نه او خلاف د تجربو نه او خلاف د احاديثو نبويه ص نه فتامل» در قال المُصَنِّفُ:

**وَانْحِرَافٌ عَنِ الْقِبْلَةِ فِي الْأَظْهَرِ وَلَا بَأْسَ بِنَفْضِ ثَوْبِهِ**

يعنې که څه هم په وژلو کې د مار او لړم چې د ازاره نه بيريږي کږ والی راسي د قبلې نه، او پروا نشته چې مُصَلي ليری کوي جامه خپله د بدن نه يعنی په عمل قليل. **كَيْلَا يَلْتَصِقُ بِجَسَدِهِ فِي الرُّكُوعِ** تا چې دغه جامه پر ده سره جوخت نسي په رکوع کې يعنې يا په سُجده. دا دی د باره ليری کوي چې د بعض خلکو قميص لنډ وي او پر توګ په تنګ وي نو چې پر رکوع سي پر توګ يه په کونه ننوزی. او د کونی نقشه په کښې ښکاره سي، او چې پر سجده سي په پرتاګه کې د خوټو ګراندی نقشه معلوميږي

که د هندوستان د خلکو کالي. او د بعض خلکو کالي تر خېږي نه لري په یوه تاوي د هغو په کونه هم داقمیص نه نوزي. او د کوم نقشه پکښې معلومېږي. چې په نقشه معلومېږي ویره تر شا لمونځ کوونکو ته ډېر نازه بیا معلومېږي. نو د دې سببه نقص د جامې و مصلي ته مکروه نه دئ.

**مسئله**: جامه ساتل د خاورو څخه مکروه نه ده په لمانځه کې. یعنې چې په قمیص په وخت د رکوع لاس ونیسي چې په خاورو نه شي. مګر کې ځاپوړ ته کره د ځیګرو خواته بیا مکروه دي.

قال المصنف **وَلَا بَأْسَ بِمَسْحِ جَبْهَتِهِ مِنَ التُّرَابِ اَوِ الْحَشِيْشِ**

او پروا نشته په پاکولو سره د تندي د خاورو څخه (او یا خاشو څخه) پسله فراغه د لمانځه، مراقي

**بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الصَّلٰوةِ** په وجه د اوانۍ تنظیفًا عن صفة المثلة ه یعنې د پاره د ساتلو او پاکولو مخ د ډول څخه د مثلت. یعنې بد شکلي د تندي. درویش وائي چې د دې د دلیل څخه د مراقي دا فهمیږي چې نه پاکول یه مکروه دي، ولې چې مثلت خو مکروه دي. او د لفظ د لَا بَأْسَ» په متن کې دا معلومېږي چې پاکول یه مکروه تنزیهي دي، کما هُوَ مصطلح الفقهاء في لفظ لَا بَأْسَ» نو پاته یه بنه کار دئ.

او د غه رنګه په یوه اثر کې چې روایت یه سید کړی دی داسي راغلي دي: اِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَسْتَغْفِرُ بِه مَا دَامَ عَلَيْهَا. چې ملکې طلب د بخښنې ورته کوي تر هغو پورې چې د غه خاورې د ده پر جبهه وي. د دې اثر خو هم بالتصریح دا معلومېږي چې پرېښودل یه اولی دي» او یا که یه مکروه تنزیهي دی. فما التوفیق بین ما یفهم من تعلیل المراقي وبین ما یفهم من لفظ لا بأس ومن هذا الاثر» **والجواب** دا دي چې کر تندي معمولي په خاورو سپیره وي نو ترلک یه اولی دي. او پاکول یه مکروه تنزیهي دي کما هو مفاد لفظ» لَا بَأْسَ وَالْاَثَرِ الْمَذْكُوْرِ» او که تندي یه په خاورو ډېر چټل وو چې حد ته د مثلت رسیدلي وو نو بیا پاکول بنه کار دی پرېښودل یه مکروه دي کما مفاد تعلیل المراقي» وهذا هو وجه التوفیق کما هدیت الیه بنور التوفیق. دا خو حال وو د تندي د پاکولو وروسته تر لمانځه»

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ اٰمِين





قال المصنف **وَلَا قَبْلَ الْفَرَاغِ اِذَا ضَرَّهُ اَوْ شَغَلَهُ عَنِ الصَّلٰوةِ**

او د غه رنګه پروا نه لري پاکول د تندي د خاورو او خاشو څخه د مخه تر فارغ والي د لمانځه څخه کې و مصلي ته د غه خاورو او خاشو ضرر رساوه یعنې تندي یه ور خوږ ناوه. او یا یه مصلي د خشوع څخه د لمانځه مشغول کړي وو» قال المصنف:

**وَلَا بِالنَّظَرِ بِمُوْقِ عَيْنَيْهِ مِنْ تَحْوِيْلِ الْوَجْهِ**

او د غه رنګه پروا نشته چې مصلي په کنجانو د سترګو و بوشي ته ګوري لکن نه په مخ اړولو سره لکن بیا هم بیله ضروره ته یه اولی ترلک دي چې د ادب څخه د لمانځه خلاف دئ.

**مسئله**: که چا په کتلو کې مخ د سمت د قبلې څخه واړاوه نو عمومي فقهاء وائي چې لمونځ مکروه دی او کې ځیګر هم د سمت القبله څخه واړاوه لمونځ یه فاسد دی لکن قاضیخان په د مخه صورت کې هم لمونځ فاسد بولي وهو اختیار د» قال المصنف:

**وَلَا بَأْسَ بِالصَّلٰوةِ عَلَى الْفَرْشِ وَالْبِسَاطِ وَاللُّبُوْدِ**

او پروا نشته په لمونځ کولو کې پر فرش باندې لکه د سنګ مرمر وغیره فرش. او نه پروا شته په لمانځه کولو کې پر آوارسوي شیانو باندې لکه سترنجې، غالي، او پر کرا سنو باندې چې توشه کان یه بولي» په شرط د دې چې حجم د ځمکې لري یعنې د سجدې په حال کې کښته نه ځي لکه پنبه یا وړی، **مسئله**: په مراقي کې وائي چې صرف تر تندي لا ندې کم توکړ آواره وي د جهت څخه د صرف ګرمي او یا ډېر یخ او یا د ځمکې د زیږ والي په سبب مکروه دي»

**حِکَایَت** یوه ورځ امام اعظم تر تندي لا ندې یو توکر اوار کړی وو، یو نا ولده سړي ورته وویل یا شیخ لا تفعل مثل ذالک فانه مکروه فقال له الامام یعنې بعد الفراغ عن الصلوٰة من این انت» ته د کوم وطن یه، فقال من خوارزم،

فقال الامامؒ الله اکبر داکلمه یه دتعجب دپاره وویل: جَآءَ التکبیرمن الصَّف الاٰخِر، داخیره کنایه ده د ې غخه د ه چې امام په لمانځه کې سهوه ې. داول صف دخوافتح نه ورکړه سی بلکه داخیر صَف دخوافتح ورکړه ې. غرض دحضرت الامامؒ دا وو چې دین داسلام د دی غخه خوارزم ته تللی دی او د خوارزمه دلته نه دی راغلی. وروسته امامؒ ورته وویل اَفی مسجدکم حَشیش، ایا ستاسی په مسجد کی واښه نه دی آوار» قال نَعَم یعنی هو آوار دی نوحضرت الامامؒ ورته وویله یجوز علی الحشیش وَلا یجوز علی الخرقة، نو غرنگه سجده کول پر وښو روا ده او پر خرقه مکروه دی: قاله صاحب الهدایه فی التجنیس» ط، د،

**مسئله**: هغه ټوکر چې مُصلی پسله اودا سه مخ او لاسونه په وچ کړی وی پر هغو سجده مکروه ده په سبب ددی چې په لعض روایا توکی که غه هم معتمد نه دی راغلی چې ماٌ مستعمل نجسه دې. قَالَ المُصنّفؒ:

## وَالاَفضَلُ الصَّلٰوةُعَلَى الاَرضِ اَوعَلٰى مَاتُنبِتُهُ

اوښه کار لونځ کول دی پر خالصه ځمکه چې هیڅ شی نه وی پرآوار یعنی بیله حائِله دشئ. اویا پرهغو شیانو چې ځمکه یې راشنه کوی. لکه بوریا، که د لوخووې اوکه دمزرو وې، او یا واښه لکه عوم بک. ولې یو خو داسبب دی چې داسی لمونځ کول نهایت تواضع ده. او بل پردغوشیانو لمونځ کول مصلی باسی دخلاف غخه د امام مالکؒ. ولې چې امام لمونځ مکروه بولی پرهغه شی چې دَ وړیو غخه جوړ وی اویاد پنبَو غخه اویا دکتان غخه: قَالَ المُصنّفؒ:

## وَلَابَأسَ بِتَكرَارِالسُّورَةِ فِى الرَّكعَتَينِ مِنَ النَّفلِ

اوهیڅ پروا نشته په مکره وَلو کی د یوه سورة په دوو رکعتونو کی دَ نفلو یعنی بیله عذره چې نور سورتونه یې هم یاد وی بخلاف الفرض فانه یکره التکرار فیه بدون العذر» قَالَ المُصنّفؒ:

---

اَللّٰهُمَّ اغفِر لِمُؤَلّفِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِمَن سَعٰى فِيهِ اٰمِين»





# فَصلٌ

## فِيمَا يُوجِبُ قَطعَ الصَّلٰوةِ وَمَا يُجِيزُهُ وَغَيرُذٰلِكَ

فصل دی په بیان کی دَ هغو شیانو چې پر مصلی قطع یعنی پرې ښوول دلمانځه واجبوی او یا روا کول د قطع کوی او نوری مسئلی: قَالَ المُصنّفؒ:

## يَجِبُ قَطعُ الصَّلٰوةِ بِاستِغَاثَةِ مَلهُوفٍ بِالمُصَلِّى

واجب ده قطعه کول دَ لمانځه په فریاد کولو سره دیوه مظلوم سړی مصلی با ندې مثلاً یو ظالم پرسړې ظلم کاوه او زدوکوب ده هغه یه کاوه هغه سړی پرمصلی باندی استغاثه وکړه او یا یو سړی په اوبو کی ولویدی، او یا درنده حمله پرې وکړه. او هغه پر مصلی باندی استغاثه وکړه نو پر مصلی واجبه ده چې لمونځ دی قطع کړي او فریاد رسی دَ هغه سړي دی وکړی.

**مسئله**: قطعه د لمانځه واجبه ده چې قادر وی پر دفع دا ستغاثه کوونکی یعنی پر خلاصولو د ده. او که قادر نه وو بیا قطع د لمانځه حرامه ده لعدم الفائدة..

**مسئله**: امام طحطاویؒ د بعض فضلاؤ غخه نقل کړی دی. که مصلی قادر وو پر خلاصون د مَلهوف بیا قطع د لمانځه واجب ده پر ده. که غه هم وخت دَ لمانځه تیرین ې. دروایت والئ چې سبب یه دادی چې د ملهوف وخت تیرین ی او قضاء یه هم نه راوړه کیږی. او د لمانځه وخت که تیرسی قضاء خو یه سته او باداری جل سلطانه غفور رحیم دی

قَالَ المُصنّفؒ: **لَابِنِدَاءِ اَحَدِ اَبَوَيهِ** او نه ده واجب قطع د لمانځه په نارہ سره د یوه د مور او پلار، لکن چې دَه استغاثه پرې ول نه وی. والاّ فالقطع واجب بالطریق الاولیٰ» ولې چې قطع د لمانځه دپاره د بیگانه مستغیث واجبه دَه نو مور او پلار تر بیگانه اولیٰ دی چې د زوئی غخه استغاثه وغواړی. دلیل د مسئلی دمتن دادی چې قطع د لمانځه هلته روا ده چې ضرورت وی د نفس نداء غخه د اَبَوَینو خو ضرورت نه فهمیږی نو قطع د لمانځه حرام ده» ط،

قال الامام الفقیه ابوجعفر الطحاویؒ فی شرح معانی الآثار، چې دا حکم د فرضي لمانځه دئ. اوکه سړی پر نفلو لمانځه ولاړ وو. او مور یا پلار ور ناري کړي. نو که مور او پلار ته دی خبر وه چې زوی پر لمانځه ولاړ دی نو دي د ده لمونځ نه قطع کوي. اوکه نه وو خبر بیا دي لمونځ قطع کړي او د دوی اجابت دی وکړي. لکن په صورت کې د خبرتیا هم اولی دا ده چې لمونځ دې قطع کړي. د رویش وایي چې هم پر نفلی لمانځه باندی محمول دئ. هغه اوږد حدیث د جریجؒ او ده مور چې بخاری او نورو کتابو د حدیثو نقل کړي دی فراجع الی تلک الکتب

قال المصنفؒ **وَيَجُوْزُ قَطْعُهَا بِسَرِقَةِ مَا يُسَاوِيْ دِرْهَمًا وَلَوْ لِغَيْرِهٖ**

او روا ده قطع کول د لمانځه یعنی واجب نه ده. په سبب د غلا د یو څه دونه شي چې قیمت یې وي یوه درهم سره برابر وي. که څه هم هغه شي د مُصَلي نه وي. بلکه د بل څاوي. دلیل یې دا دی چې اندازه د درهم مال دی. وقال علیه الصلوة والسلام قاتِل دون مالک. او دلیل د دوهمې خبرې دا دی چې په دی قطع کې د لمانځه د پاره د مال د غیر دفع د ظلم ده هغه نو ترنهی عن المنکر ترکلیه لاندی راځي. مصنفؒ په مراقی کې وائي چې تر درهم کم مال د پاره هم قطع د لمانځه روا ده. ولې چې په یوه دانق چې شپږمه حصه د درهم ده حبس د یوړه وړ روا دی وهوالاصح:

**مسئله**: که څوک پر لمانځه ولاړ وه او کتهوو یشیدل چې توبول قطع د لمانځه ورته روا ده.. **مسئله**: که ښځه پر خپل کشنی زوی بیریدل چې مثلاً د پښې څخه ونه بیرېږي او بیاد باندی ولاړ نسي. قطع د لمانځه روا ده» در» **مسئله** که یو سړی پر لمانځه ولاړ وو یو کافر ورته ووېل چې ماته کلمه را وښیه زه مسلمان کیږم. قطع د لمانځه ورته روا ده. او واجب په دی سبب نه ده چې لمونځ هم عبادت دی او تعلیم د کلمي وکافر ته هم عبادت دئ. نو هر یو چې د مخه کوي د ده اختیار دی. او په غیر کې د حالت د لمانځه ځنډول د تعلیم د کلمي وکافر ته گناه ده. په دی سبب چې دی نو گویا راضی دی په بقاء د کافر پر کفر» وهو معصیة»





قال المصنفؒ **اَوْ خَوْفِ ذِئْبٍ عَلٰى غَنَمٍ اَوْ خَوْفِ تَرَدِّيْ اَعْمٰى فِيْ بِئْرٍ وَنَحْوِهٖ**

او د غه رنگه قطع د لمانځه روا ده د جهت د ویرې د لیوه څخه مثلاً یا د زمري یا د فرانک وغیره پر پسونو باندی که څه د بل څاوي. او د غه رنگه قطع د لمانځه روا ده چې مُصَلي بیریږي چې ړوند وخاه ته ونه لویږي او یوی کندی ته او یاد بام ره او نه لویږی. **مسئله**: که غالب الظن د مصلی دا وو چې ړوند به وخاه ته ولویږی او یا به د بامه ره ایله سي. بیا قطع د لمانځه پر واجب ده که څه هم فرض لمونځ وي. قال المصنفؒ

**وَاِذَا خَافَتِ الْقَابِلَةُ مَوْتَ الْوَلَدِ** او د غه رنگه قطع د لمانځه روا ده کړقابله چې په اصطلاح یې دائی بولي بیریدله چې کشنی به مړېږي یعنی زه لمونځ پوره کوم. قال

**وَاِلَّا فَلَا بَأْسَ بِتَاخِيْرِ الصَّلٰوةِ وَتُقْبِلُ عَلَى الْوَلَدِ** او که مرف بیره نه وه بلکه غالب الظن د لمونځ کوونکی ښځې دا وو که زه چیرې لمونځ پوره کوم کشنی به مړېږي مثلاً یعنی یا بی مور مړه سی نو باک نسته بلکه پر واجبه ده چې لمونځ به ځنډوي یعنی تر وخت او دا به مخ راګرځوي پر کشنی چې دا او س زیږي تا چه د کشنی ژوند وساتل سي. لمونځ خو بیا قضائي وکړي. او ده ور ته عذر د سبب چې د لمانځه قضاء کول روا دي.

لکه صحیح بخاری کې او په مسلم کې چې راغلی دی چې په غزا کې د خندق آنحضرت صلی الله علیه وسلم څلور لمونځونه قضاء کړه د ماپښین لمونځ او بیا د مازدیگر لمونځ او بیا د ماښام لمونځ او بل د ماخستن لمونځ بیا یې په ترتیب سره قضاء راوړه په جماعت سره» ط» عذر دا وو چې مشرکین او د دوی سره همکارانو لوی هجوم راوړی وو. **فائده**: که څوک غواړي چې تفصیل د غزا د خندق چې بل نام یې غزوة الاحزاب هم بولي. پر یوه ځای ئ ده کړي نو د ړو لیکن کتاب» المبلاغ المبین دی مطالعه کړي چې ډېر افسوس نا که غزاده چې په قرآن مبارک کې هم د هغی غزا ذکر راغلی. او د شدت د رلک یه د د غوالفا ظو قرآنیه

ځنې معلومیږي: «اذ زاغتِ الابْصَارُ وَبَلغتِ الْقُلُوبُ الحَنَاجِرَ» الآیة: لکن پاک خدای جل سُلطانه بیا م فتح و ظفر او کامیابي مسلمانانو ته په برخه کړه و لِلّٰهِ الحَمْدُ: قَالَ المُصَنِّفُ

**وَکَذَا نَمَا ... اِذَا خَافَ مِنَ اللُّصُوصِ اَوْقُطَّاعِ الطَّرِیْقِ**

او دغه رنګه هغه مسافر چې ویریږي د دې نه چې لمونځ په مستحب وقت کې وکړي د غلو ځنې او یا د قطع کوونکو ځنې د لارې د لارې وهونکو ته

**جَازَ لَهُ تَاخِیْرُ الْوَقْتِیَّةِ** دو حتی لمانځه تر اخیره پورې د وخت روا دي وده ته تاخیر او ځنډول

**پُوهَسَه**: چې مراد د مسافر ځنې مسافر لغوي دی. یعنې چې په بیابان کې روان وي که څه هم د شرعي سفر نیت نه وي کړي. ولې چې دا عذر د لصوصو په مسافر شرعي پورې خاص نه دی. **پُوهَسَه**: چې د لصوص لفظ عام دی نفس غله ته وائي که څه هم لارې بیخي نه وي بندې کړي. او قطاع الطریق هغه خاصه ډله د غلو ده چې او طاقونه یې لمبول لارې کې وي او خلک تیریدو نه ورته نه پریږدي هم او مالونه یې هم ځنې وړي، چې دا ډله غلوه چې په قرآن عظیم الشان کې د دوي د پاره سزاګانې قسم قسم تیا کل سوي دي.

**مَسْئَلَه**: که مجاهدینو په صفونو کې د جنګ د کافرانو سره آسانو سپاره وه او یا په اوښانو کې یې موټرانو کې سپاره وه. او یا په تها ګانو کې سپاره وه. چې هغوی د جهت د شدت د جنګ په اشاره هم لمونځ نه سواي کولای. نو دي لمونځونه قضاء کړي بیا بې وروسته دي قضاء راوړي لما مر من حدیث غزوة الخندق، **مَسْئَلَه**: د قضائي لمونځو قضاء که څه بالفوره واجب ده لکن هغه سړي ته چې په نفقه برابره ولو د عیال اخته وي. او د قضائي لمونځو د اګر ځولو وخت نه لري. نو ده ته روا ده چې قضائي لمونځونه وځنډوي تر وخت پورې د قدرت، او قضاء د روژې خو واجب علی التراخی ده، م، قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَتَارِکُ الصَّلٰوةِ عَمَدًا کَسَلًا یُضْرَبُ ضَرْبًا شَدِیْدًا حَتّٰی**

او پریښوونکی د لمانځه په قصد سره یعنې بیله عذره وي هغه حکام په سخت وهلو حتی چې





**یَسِیْلَ مِنْهُ الدَّمُ وَیُحْبَسُ حَتّٰی یُصَلِّیَهَا** چې وینې ځنې وبهیږي او کله په وهلو توبه ونه کښي بیا دې بندي کړي

**مَسْئَلَه**: حکام دې د ده معلومات د لمانځه کولو همیشه کوي په نصیحت او په پیش رو. او بیا کې توبه ونه کښي هم دې وو هې یعنې تر هغه وخته چې دی پر لمانځه راښې ی. او یا په هغه بندي خانه کې مري. دا خو د تارک الصلوٰة د نیاوي جزاء ده. او په آخرت کې چې پر اسلام هم مړ سي او د ترک الصلوٰة ګناه یې بښل نه دي ده جزاء یه هغه ده چې په حدیث شریف کې راغلې ده. لَهُ عذاب طویل بوادٍ فی جهنم اشدها حرا وابعدها قعرًا» الی اخر الحدیث» او په حدیث شریف کې چې روایت یې جابر کړي دی علیه الصلوٰة والسلام وائي: بین الرجل وبین الکفر ترک الصلوٰة» رواه احمد ومسلم م

قَالَ المُصَنِّفُ **وَکَذَا تَارِکُ صَوْمِ رَمَضَانَ** او دغه رنګه حکم دی د روژه خوړو یعنې د کسل او سستی د جهته روژه نه نیسي، یعنې هغه دې وهل کیږي او بیا دې بندي کیږي څو توبه کا نیسي او روژې نسي

قَالَ المُصَنِّفُ **وَلَا یُقْتَلُ اِلَّا اِذَا جَحَدَ اَوِ اسْتَخَفَّ بِاَحَدِهِمَا** او تارک الصلوٰة یا روژه خوړه دی حکومت نه وژني مګر هغه وخت چې صریح منکر کیږي د دوه ځنې د لمانځه او د روژې او یا سپکاوی کوي په یوه د دوي. یعنې دا سې الفاظ استعمال کړي چې په سپکاوي دلالت کوي لکه چې ووائي العیاذ بالله لمونځ ورزش دی او روژې سنه په هضم کیږي. او یا نور ورته قبیح الفاظ چې زه ئې پر خوله نه سم راوړلای. او حضرت الامام شافعیؒ وائي چې د غه دواړه دي حدًّا وژني یعنې د دوي حد وژل دی. او امام احمدؒ وائي چې دواړه دي وژني د جهته د کفر یعنې دوي مرتد دي. په لمانځه نه کولو سره او یا په روژه خوړلو سره که څه هم انکار صریح یا استخفاف هم نه وي. د رولیش وائې چې د دې مسئلې او د دې فصل شرحه خلاصه سوه په توفیق د خدای جل سلطانه او س باب الوتر شروع کیږي.

*اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولجمیع المؤمنین آمین*

# بَابُ الْوِتْرِ

باب دی په بیان کی د هغه لمانځه چې د وترو په نامه مشهور او شهرت لري او هرچا ته معلوم دي

قَالَ الْمُصَنِّفُ

## اَلْوِتْرُ وَاجِبٌ وَهُوَ ثَلٰثُ رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيْمَةٍ

وتر واجب دی یعني چې منکر یې کافر نه دی لکن تارک یې مستحق د عذاب النار دی، او فرض هغه عمل ته وائي چې منکر یې کافر دی بالاتفاق. او په عمل کی واجب او فرض سره یو شان دي او وتر درې رکعاته دي په یوه سلام سره لکه د ماښام لمونځ، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَيَقْرَءُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ مِّنْهُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُوْرَةٍ

او وبه وایی په هر رکعت کی د وترو الحمد لله او یو سورة. او کښیني

## وَيَجْلِسُ عَلٰى رَأْسِ رَكْعَتَيْنِ مِنْهُ وَيَقْتَصِرُ عَلَى التَّشَهُّدِ

به پر سر د دوو رکعتو یعني د دوه اول او د اناسته اوله واجبه ده. او په ناسته کی به یوازې التحیات

## وَلَا يَسْتَفْتِحُ عِنْدَ قِيَامِهِ اِلَى الثَّالِثَةِ

وائي یعني لکه فرضي لمونځ دا چې وتر د فرضو سره مشابه دي،

او سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ به نه وائي په وخت د ولاړې د دریم رکعت ته لکه په نفلو چې وائي.

**پوښتنه**: چې په وترو کی ډیر اختلافات ستنه په احادیثو مبارکه وو کی هم او په فقهاوو او مجتهدینو کی هم خو دګردو تفصیل کول په دې ځای کی مناسب نه دي. زمونږ د حنیفیانو مذهب دا دی چې وتر درې رکعت دي په یوه سلام. د دې دلیل هغه حدیث دی چې حاکم یې روایت کړی دی او صحیح یې هم بوللی دی. كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ لَا يُسَلِّمُ اِلَّا فِيْ اٰخِرِهِنَّ"، پوښتنه: چې وتر په لغت کی تاک شی ته وائي





چې مقابل د جوت دی. او په شرعه شریفه کی د فوق الذکر لمانځه نوم دی.

**فَائِدَه**: اول روایت د امام اعظمؒ څخه دا دی چې وتر فرض دی. والیه مال الشیخ علم الدین السخاوی المقرئؒ. او په دې باب کی ده یوه رساله هم جوړه کړېده. او هغه حدیث یې سره جمعه کړي دي چې ظاهرًا پر فرضیت د وترو دلالت کوي. او دوهم روایت یې دا دی چې وتر سنت دی. او د اقول دیارلسم دی او اخیري روایت د ده مبارک څخه دا دی چې وتر واجب دی وهو الاصح، او اکثر اهل المذهب الحنیفیهم ورغه روایت ته تللي دي کما قال المصنفؒ او بعض مشائخو مذهب د دې درو روایتو تطبیق داسې سره کړی دی.

چې مراد د امام اعظمؒ د فرض څخه فرض عملي دی یعني چې ترک یې نه دی روا او د واجب څخه مراد دا دی چې وتر واجب دی از روی عقیده یعني منکر یې کافر نه دی، او د سنتیت څخه مراد دا دی چې اثبات د وترو په سنت نبویؐ سره شوی دی. چې هغه دا قول د علیه الصلوٰة والسلام دی، الوتر حق فمن لم یوتر فلیس مني، او دا خبره یې درې واره مکرر کړه. رواه ابوداؤد والحاکم وصححه الحاکم، په دې حدیث کی امر نبوي او لفظ د حق دلالت پر وجوب کوي.

## هرڅه مه وایه

هغه قصه چې بعض قصه خوانان بیعلمه خطیبان یې کوي چې یوه شپه جبرئیل امین علیه السلام د آنحضرت صلی الله علیه وسلم ته راغلی او ورته ویې ویل چې خدای پاک وائي چې یو رکعت لمونځ وکړه نو علیه السلام چې یو رکعت لمونځ وکړی د ځان سره یې فکر وکړ واهم چې یو رکعت خو به لمونځ نه وي. نو یو رکعت لمونځ یې بل ورضم کړي چې جوت سره پر التحیات چې کښیننستی تر سلام د مخه جبرئیل علیه السلام ورته وویل چې یو رکعت بل وکه یعني چې تاک شی نو علیه الصلوٰة والسلام یو بل رکعت هم اداء کړه. نو دغه په دین کی بی پروا ملایان وائي چې اول د رکعت د وترو چونکه په امر د خدای جل جلاله دی نو هغه رکعت فرض دی. او دوهم رکعت چونکه علیه الصلوٰة والسلام د خپلی رائې څخه وکړي نو هغه سنت دی. او دریم رکعت چونکه په امر د جبرئیل علیه السلام وو هغه واجب دی دا قصه بالکل غلط

اولې بنیاده ده. پر خدای جل جلاله او پر رسول د خدای دروغ ویل ډیره غټه ګناه،

فالحذر الحذر»

**تحقیق الرکعۃ:** پوه سه چې درې رکعته والې د وترو، مذهب دی د فقهاء سبعه وود مدینې منورې. او ابن ابي شيبه د حسن البصريؒ روایت داسې راغلی دی، چې اتفاق کړی دی سلفو چې وتر درې رکعته دی او سلام دی نه ګرځوي مګر په اخیرد هغو کې، وهو مذهب ابي بكرؓ الصديق وعمرؓ والعبادلة الثلاثة يعني عبد الله بن عباسؓ وعبد الله بن عمرؓ وعبد الله بن مسعودؓ. وذهب اليه ابوهريرة رضي الله عنه په یوه روایت کې داسې راغلي دي چې سعد ابن ابي وقاصؓ وتر یو رکعت وکړې نو عبد الله بن مسعودؓ ورته وویل ما هذه البتيراء، داخه یوازې رکعت دی نه دی کافي يو رکعت فقط، او عبد الله بن مسعودؓ پر دغه خبره قسم هم یاد کې. وروي ان عمرؓ راى سعيدًا يوتر بركعة فقال، نو عمرؓ ورته وویل، ما هذه البتيراء، یا به بل رکعت ورسره جوړ وې او یا زه تا تر ادب درکومه»

**پوه سه:** چې کر څه هم مصنفؒ مطلق سورت ویلی دی لکن په حدیث شریف کې داسې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم: په اول رکعت کې د وترو سورة سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى، وایه، او په دوهم رکعت کې قُلْ يَا اَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ، ولیه او په دریم رکعت کې قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ، وایه او په یو روایت کې عائشه رضي الله تعالى عنها چې روایت د هغه اصحاب السنن یعني سنن ابي داؤد، سنن ترمذي، سنن نسائي، سنن ابن ماجه کړې دی، او دغه رنګه ابن حبان او حاکم په مستدرک کې کړې دی. داسې راغلي دي چې رسول کریم صلى الله عليه وسلم په دریم رکعت کې قُلْ هُوَ اللّٰه، قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ او قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ یو ځای سره ویل»، نو مونږ باید ګاهې هغسې هم وکو. او ګاهې داسې وکو" لکن اسحق بن راهویه وائي چې اصح روایت په باره کې د قرائت د عليه السلام په وترو کې سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى، او قُلْ يَا اَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ، او قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ، ده، او د معوذتينو په باب کولو په دریم رکعت کې امام احمد بن حنبلؒ او یحيى بن معينؒ انکار کړی دی، د روایت





وائي چې عمومي فقهاء د مذهب حنفي په خپلو کتابونو کې پر دریمې اولو سورتو اقتصار کړی دی

قال المصنف **وَاِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ السُّوْرَةِ فِيْهَا رَفَعَ يَدَيْهِ حِذَاءَ**

او چې مصلي فارغ سي د قرائت څخه د سورت په دریم رکعت کې پورته دې کړي دواړه لاسونه

**اُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ وَقَنَتَ قَائِمًا قَبْلَ الرُّكُوْعِ** تر غوږو پورې او بیا دې الله اکبر وائي

ولې چې دا اوس مصلي و دعا ته نقل کیږي، او بیا دې دعاء قنوت ووائي په ولاړه. په حدیث مبارک کې راغلي دي چې آنحضرت صلى الله عليه وسلم دعائي قنوت د مخه تر رکوع وایه"

**پوه سه:** چې اختلاف په دعاء قنوت کې د مخه تر رکوع د مجتهدینو په افضلیت کې دی ورنه قنوت بعد الرکوع هم په حدیث مبارک کې راغلی دی.

**فائده:** په وخت د قنوت ویلو د حضرت الامامؒ مذهب دا دی چې راسته لاس دې پر چپه لاس کښیږدي لکه د نجوا په شان، او د ابو یوسفؒ څخه روایت دی چې لاسونه دې د دعا پر ډول پورته کړي تر څیګر پورې لکه عبد الله بن مسعودؓ چې داسې کوله او امام محمدؒ وائي چې لاسونه دې د ځانه سره ایله کړي. واختاره الطحاويؒ والكرخيؒ»، مرط قال

**فِيْ جَمِيْعِ السَّنَةِ وَلَا يَقْنُتُ فِيْ غَيْرِ الْوِتْرِ وَمَعْنَى الْقُنُوْتِ الدُّعَاءُ**

دعائي قنوت په وترو کې دې په ټوله کال کې وائي. او شافعيانؒ وائي په اولو شپو کې د روژې صرف وائي. او دعاء قنوت دې نه وائي په غیر کې د وترو لکه حضرات شافعیهؒ چې د سحار لمانځه په دوهم رکعت کې همیشه وائي. او د دعاء پر شکل لاسونه هم پورته کوي.

**پوه سه،** چې په حدیث شریف کې چې روایت یې انسؓ کړی دی داسې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په دعوت د بعض قبیلو د عربو یعنې رعل و ذکوان و عصیه چې هغه دعوت د دوی د هم مکر او خد لیعه وه او یا کسنه" او یا اتیا کسان د قاریانو څخه د صحابهؓ وو د هغو قومو سره د پاره د تعلیم د قرآن او اسلام واستوله خو هغوی ما کرانو په لارکې

نو کسان هم کښېنول، او هغه قاریان یې تول په شهادت ورسول نو څه وخت چې علیه الصلوٰة والسلام په ذریعه د وحې د دوئ د شهادت خبر او ېدې نهایت غمجن سو او د سحار په لمانځه کې دعاء قنوت شروع کړې. یوه میاشت او هغه قنوت پسله رکوع څخه د دوم رکعت بر وایه. چې ود غواقوا موته بې ښرا کوله او د خدای جل سلطانه څخه ئې نصرت او غلبه غوښته پر دوئ،» انسؓ وائي چې څه وخت چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم ته غلبه پر هغو کفارو پر برخه سوه. بیائې قنوت د سحار د لمانځه پرېښو. نو د دې حدیث څخه دا معلوم سول چې د سحار د لمانځه قنوت د نازلې بلا د کبله وو.

او قنوت د نازلې د بلا پر مسلمانانو د پاره د خلاصون او س هم مشروع دئ. او زمونږ حنیفیانو د همیشه و یلو څخه د قنوت د سحار په لمانځه کې که نازله وي او که نه وي مخالف یو او حدیث د انسؓ هم زمونږ د مذهب تائید کوي. لکن اختلاف په دې کې دی چې څه وخت چې پر مسلمانانو یوه عامه بلاء نازله سي. لکه په موجوده وخت کې د افغانستان پر مسلمانانو او د کشمیر پر مسلمانانو او د فلسطین پر مسلمانانو او د چیچنیا پر مسلمانانو، نو په لمونځو کې به دعائي قنوت یعنې طلب د نصرت د خدای جل شانه پر کفارو کوي. نو مذهب د امام شافعیؒ دا دی چې په ټولو لمونځو کې به دعاء قنوت نازله وائي. دا زمونږ مذهب دی کما صرح به العلامه نوحؒ. او بعض فقهاء وائي چې په ټولو جهري لمونځو کې دعائي قنوت ویل سته او مذهب د احنافوؒ او د امام مالکؒ او د ثوريؒ او د جمهورو محدثینو مذهب دا دی چې د سحار په لمانځه کې بې یوازې وائي. ولې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په بلاء کې د شهادت د قراوو صرف د سحار په لمونځو کې دعائي قنوت ویلې دی،» لکن حموئ وائي چې د احنافو په نیز قنوت د نازلې دی قبل الرکوع لکه قنوت راتب وائي د وترو. او مصنفؒ په مراقي کې وائي چې د بلاء د نازلېدو په وخت کې بعد الرکوع قنوت روا دی.

**پوښتنه**: چې فقیه ابوجعفر الطحاويؒ چې علماء وائي چې اعلم د خلګو په مذهب د امام اعظمؒ هم دی. دا سې وائي چې مذهب د ائمه ثلثه وو د مذهب دا دی چې دعائي قنوت





دی د سحار په لمانځه کې نه وائي د همیشه د پاره. او نه هم رسول کریم صلی الله علیه وسلم د همیشه د پاره دعائي قنوت د سحار په لمانځه کې ویلې دی بلکه صرف د یوې میاشتې د پاره په وخت د نزول د بلاء د شهادت د اوویا قاریانو او یا اتیا له طرفه څخه د قبیلې د رعل او ذکوان یې ویلې دی او بیا یې پرې ایښې دئ.

نو ابوجعفر الطحاويؒ په شرح کې د معاني الآثار چې دده یو ډېر محکم او صحیح کتاب دئ. په حدیثو کې وائي چې زمونږ د حنیفیانو او س هم دغه مذهب دی چې دا نازلې بلا په دوران کې دې امامان د مساجدو دې د سحار په لمانځه کې د دوهم رکعت تر رکوع د مخه وائي. او د هغې نازلې بلا دفعه دې د خدای جل جلاله څخه په ډېر عجز او نیاز سره غواړي. لکن افسوس دا دی چې دغه قنوت د نازلې په پښتنو کې لکه شریعت منسوخه داسې ګرځېدلی دی. سبب یې هم دا دی چې امامان د مساجدو دونه قدرت نه لري چې په عربي ژبه د دفعه د بلا د خدائ څخه وغواړي. او په کتاب الاشباه والنظائر په نقل د امام طحطاويؒ داسې راغلي دي چې د طاعون چې معنې یې مرض عام دی چې خلګ ډېر ځندي مري. دعائي قنوت نازله ویل اشد ضروري دی. ولې چې طاعون د ډېرو بدو نوازلو څخه دی. او ده زیاته کړې ده چې علاوه تر قنوت د سحار د لمانځه مسلمانانو له دوه دوه نفل کول پکار دي، په نیت د دفع د طاعون:

**پوښتنه**: طاعون خو سبب د شهادت کما جاء في الحدیث النبويؐ. نو ولې مسلمانان د دې دفعه غواړي **جواب** سلمنا ذالک لکن په دې کې شک نسته چې طاعون یو مصیبت عامه دی. او د پاره د دفعې د مصیبت عامه ویل د دعائي قنوت نازله مندوب دی لکه چې جنګ د کفارو سره هم سبب د شهادت دی،» نو ولې خواست د عافیت کول مندوب دی حتی چې په حدیث نبويؐ کې راغلي دي؛ لا تتمنوا لقاء العدو واسئلوا الله العافیه،»

او حتی چې په کتابو کې د فقهی شریفې راغلي دي چې هیڅ مسلمان ته دا دعا نه کوي چې خدای دې په طاعون سره ستا مرګ وګرځوي کې څه هم په ضمن کې شهادت سته. او سره د دې چې صرف دعاء د شهادت روا ده.

**مسئله**: دعاء د طولِ عمر د هغه چا د پاره رواده چې د هغه په بقاء کې منفعت د مسلمانانو وي لکه یو بنه عالِم متقي مدرس، او یا یو بنه عادل امیر د مسلمانانو، ولې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم و انس ؓ ته چې دده ؓ خادم وو دعاء د طول عمر کړي. چې د هغې دعاء اجابت هم سوی دی. کما فی کتب السیر النبویؐ،

**سوال** ټول کارونه خیر و شر خدائ په ازل کې مقدر کړي دي. او په لوح محفوظ کې هم لیکلی دی. نو پس له دغه زمونږ د دعا گانې څه فائده لري. **جواب**: که فائده نه وای نو ولې خدای پاک په قرآن مبارک کې وائي: اُدْعُوْنِیْ اَسْتَجِبْ لَکُمْ، او په حدیث مبارک کې هم داسې راغلي دي: اَلدُّعَاءُ یَنْفَعُ مِمَّا نَزَلَ، دعا فائده کوي و هغې بلائنه او مصیبت ته چې پر مسلمان باندې نازله سوي وي یعني باعطاء الصبر الجمیل علیها بسبب الدّعاء من جانب الرب الجلیل او باعطاء العوض الکثیر عن الفائت القلیل الی غیر ذالک. وَقال هو وممالم ینزل، او دعاء نفعه کوي و هغه مصیبت ته چې تر اوسه لا نه وي نازل سوي. یعني په دفعه د هغه. ولې چې د قضاء معلق تبدیل اتفاقًا روا دی، که څه هم د قضاء جرم تبدیل په نیز د اکثرو علماؤ روا نه دئ. بلکه د عبارت څخه د امام طحطاوی په صـ۳۰۶ ظاهرًا داسې معلومیږي چې د مکتوب د لوح محفوظ هم تبدیل روا دی، وَ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ یَفْعَلُ مَا یَشَآءُ وَ یَحْکُمُ مَا یُرِیْدُ، وَمَا ذَالِكَ عَلَی اللّٰهِ بِعَزِیْزٍ وَاِنَّ اللّٰهَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ" وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ،

# ضروری ښوونه

**پوښتنه**: چې په مبسوط کې د محمد بن الحنیفیة ؒ څخه داسې نقل کړي دي چې دعاء څلور قسمه ده ۱ دعاء رغبت چې دیوه شي ته دي رغبت کیږي. او د خدای پاک څخه غواړي مثلاً خدایه ماته جنت راکړې او حوري او نعمتونه د جنت راکړې او یا ماته ولد صالح راکړې. او یا ماته رزق حلال واسع عطا کړې وغیر ذالک په داسې دعاکې به ورغوي د لاسو و طرفته د آسمان نیسي، ۲ دعاء رهبة یعني چې دیو شي بیریږي او د هغه څخه امان





او ساتنه د خدای جل جلاله څخه غواړي. لکه چې دعا کوي چې ما د عذاب د جهنم څخه وساتې او یا عذابه، او یا داسې ووائي چې یا خدایه ما د دې موجوده ناجوړي څخه خلاص او یا د دښمنانو د ضرر څخه وساتې وغیر ذالک، په داسې دعاء کې به شا د لاسو او ارغوو و طرفته د مخ گرځوي. ۳ دعاء د تضرع ده یعني په دعاء کې خپل عجز و خدای جل جلاله ته ښکاره کوي: کما نقل عن بعض التابعین،

*الهی عبدک العاصی اتاکا: مقرًا بالذنوب وقد دعاکا: فان ترحم فانت لذاک اهل: وان تطرد فمن یرحم سواکا:*

او یا ووائي خدایه زه ستا عاجز ذلیل حقیر بنده یم الی غیر ذالک. په داسې دعاکې دې څنګري گوته او وړه لیبې گوته کت کړي. او د میانځ گوته او بټه گوته دې حلقه کړي او مُسبّحه گوته دې ښوروي. ۴ دعا خفیته ده. چې هغه داده چې په زړه کې د خدای جل جلاله څخه درخواست کوي او په خوله څه نه وائي.

**پوښتنه**: چې دعائي خفیه صرف د نورو دوعا گانو څخه په تکلم او نه تکلم کې فرق لري ورنه دعاء خفیه د دریو اولو قسمو څخه خارجه نه ده. **فائده**: د لاسو پورته کول په دعا کې په خارج د لمانځه کې سنت، البته بعض فقهاؤ یې په نفلو کې هم روا بولي.

## دعاء قنوت سره د ترجمې دادی

په روایت د عبد الله بن مسعود ؓ اَللّٰهُمَّ ای یا الله. اِنَّا نَسْتَعِیْنُكَ په تحقیق مونږ ستا څخه کومک یعني توفیق غواړو یعني پر افعالو د عبادت ستا، وَ نَسْتَهْدِیْكَ او مونږ طلب د هدایت کوو ستا څخه د هغو کارو چې ته په هغه سره راضي کیږې. وَنَسْتَغْفِرُكَ او مونږ ستا څخه بخښنه د ټولو گناهونو غواړو. وَنَتُوْبُ اِلَیْكَ او مونږ رجوع کوو د خپلو گناهو څخه و تاته، رجوع معنای لغوي د توبې ده. او په شرعه کښي توبه پښیماني ده پر تیرو گناهو د زړه دي کوي نه صرف په خوله. او في الحاله د هغې گناه پریښول دي. او په اینده کې ټینګ قصد کول دي چې زه به دا گناه بیا نه کوم. او که چیرې حق د یو آدمي په کښي وو نو ده هغه راضي کول غواړي. حتی چې په غیبت کې او بهتان کې هم حق د آدمي ستـه، نو د هغه څخه بخښنه غوښتل ضروري دي فاذا تم هذه الشرائط للتوبة یکون الشخص العاصي مصداقًا للحدیث النبويؐ: اَلتَّائِبُ

مِنَ الذَّنبِ کَمَن لَاذَنبَ لَهٗ» وَنُؤْمِنُ بِكَ اوزمونږ تصدیق دی په زړه او اقرار دی
په ژبه ستا په وجود او وحدانیت سره الیٰ اٰخِرِ اٰمَنتُ بِاللهِ» وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ او زمونږ
تکیه او اعتماد دی پر تا باندی او سپارو مونږ د ټولو کارونو خپل و تا ته کوو. ولی مونږ عاجزه
یو وَنُثْنِی عَلَيْكَ الْخَيْرَ كُلَّهٗ، او مونږ ثنا و صفت کوو ستا په ټولو ښو صفاتو او
افعالو سره چی ستا سره لائق وي. وَنَشْكُرُكَ او مونږ ستا شکر وایو د ټولو نعمتو که ظاهری
وی او که باطنی وی. او ټولو ته اموته د هغو کارونه کماروچی تا هغه اندامونه د هغو کارو
دپاره مونږ ته راکړی دی. وَلَا نَكْفُرُكَ او مونږ انکار ستا د نعمتو څخه نه کوو. او نی
منسوبه وو وغیرته معناع ے من ازحق بدانم نه عمرو زید. شکر نقیض دی د کفر کفر ټولو ته وائی
وَنَخْلَعُ او مونږ وړ غندی د کفر او ده ناشکری د خپلو غاړو څخه کاږو، یعنی کفر او ناشکری
نه کوو. وَنَتْرُكُ او مونږ پرېږدو یعنی محبت نه ورسره کوو مَنْ يَفْجُرُكَ هغه څوک چی ستا
عبادت څخه انکار کوی او عبادت د بل شی کوی. اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ یا الله مونږ ستا عبادت
کوو، **پوښتنه**: چی تقدیم د مفعول چی "اِيَّاكَ" دی پر فعل عامل چی نَعْبُدُ»
دی د پاره د حصر د عبادت دی په خدای جل سلطانه سره په استحقاق ذاتی سره.
وَلَكَ نُصَلِّيْ او خاص د پاره د رضا ستا لمونځ کوو لمونځ که څه هم په عبادت کی خود اخل دی
لکن تخصیص په ذکر سره د جهته د شرافت دی، ولی چی لمونځ په ضمن کی خپل ټول عبادات لری.
وَنَسْجُدُ او مونږ خاص و تا ته سجده کوو تخصیص پسله تخصیص دی. ولی اقرب د حالاتو
د بنده او رب جل شانه ته سجده ده. ولی چی په سجده ایښولو کی دی د اشرف د اعضاوو
پر اخس د ځایو چی خاوری دی. وقد ورد فی الحدیث النبوی اشارة الیٰ ذالک»
وَاِلَيْكَ نَسْعٰی او مونږ ستا د قرب وخوا ته دره ځغلوو. په دی لفظ کی اشاره وه هغه حدیث
نبوی ته ده: مَنْ تَقَرَّبَ اِلَیَّ شِبْرًا تَقَرَّبْتُ اِلَيْهِ ذِرَاعًا وَمَنْ تَقَرَّبَ اِلَیَّ ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ
اِلَيْهِ بَاعًا وَمَنْ اَتَانِیْ سَعْيًا اَتَيْتُهٗ هَرْوَلَةً» وَنَحْفِدُ او مونږ کوشش کوو ستا
په عبادت کی **مسئله**: که چا نَحْفِدُ په ذال سره ووایه لمونځ یې فاسد دی، لانه
لفظ مهمل م، لکن امام طحطاوی پر دی حکم باندی سخت اعتراض کړی دی. او وائی





چی په صفت د براق د معراج نبوی دا سی راغلی دی، لَهٗ جَنَاحَانِ يَحْفِدُ بِهِمَا اَیْ لَيُسْرِعُ بِهِمَا،
نو په ذال سره معنیٰ ته تغییر نه راسی نو لمونځ یې فاسد نه شی. ط در، وَنَرْجُوْ رَحْمَتَكَ
او مونږ امید ستاد رحمت لرو، یعنی ودوام ته د رحمت او پراخی ته د هغه ولی چی ته کریم
یې امید او هونکی نه نا امیده کوی» الٰهی یا الٰهی یا الٰهی: ندارم جز امیدت تکیه گاهی:
او مونږ سره د عبادت ستا، ستا د عذاب څخه بیرېږو لان الایمان بین
وَنَخْشٰی عَذَابَكَ الخوف والرجاء لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُوْنَ» ے
اگر بر گناه صغیره عذاب دوزخ دهد عدل است: داگر از گناهان کبیره درگذرد و بنده را داخل جنت نماید فضل است:
اِنَّ عَذَابَكَ الْجِدَّ په تحقیق سره ستا عذاب حق په کفارو سره بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ» په کفارو
سره ملحق دی، **پوښتنه**: چی کسره د حاء افصح ده نو ملحق په معنا د مجرد دی ای
لاحق بهم» او فتح د حاء هم روا ده نو ملحق صیغه د اسم مفعول د خپل باب په معنیٰ یعنی
خدای جل شانه دا عذاب ملحق کوی د دوی سره» وصلی الله علی النبی واله وسلم

## دَدُعَاءِ قنوت په باره کی څه خبری

**پوښتنه**: چی دعا قنوت چی مصنف راوړی دا اَتَمْ قنوت دی چی په روایت د ابن
مسعود رض ثابت دی. لکن د قنوت نور اقسام هم شته. **نو مسئله** دا ده چی هر قسم
قنوت چی مروی وی کافی دی» **فائده**، جلال الدین السیوطی وائی چی قنوت ابتداءً
من جملة القرآن وو او دوه سورته وه او د هر یوه په سر کی بِسْمِ اللهِ وه یو یې سورة الخلع بالله
چی ابتداء څخه تر" مَنْ يَكْفُرُكَ " پوری او بل یې سورة الحفد بالله چی د " اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ
څخه شروع بیا تر پایه پوری جمهور د صحابه وو رض پر دی دی چی قرآنیت یې منسوخ دی او د ابی رض
په خپل مصحف کی پر دوو سورتو لیکلی دی نو سورتونه د قرآن په نیز د ده ۱۱۶ دی.
**پوښتنه**: چی اعظم دارکانو د توبې بینیما فی ده پر کړی گناه باندی، او هر چی پر ښو
دی فی الحاله د هغه معنیٰ دا ده چی که آلات د هغی گناه ده ته حاضر وو هغه ځان لری کړی
او یا سړی شراب خوړله او شراب د ده په کور کی موجود وو هغه دی توی کړی وعلیٰ هذا فقس

**واوره**: چې عارف ابن العربيؒ په عزم على ترك العود، داسې سوال کړی دی چې دا شرط نه دئ لازم. چې داخو عيب دی نو اولى ددی په ځای تسليمدی وخدای جل جلالته، لکن امام طحطاويؒ پردی خبره دابن العربي ډیر معقول سوال کړی دی. او وائی چې غيب خو عود دی وگناه نه او عزم د ترك العود خو حاضر دی في الحاله فتدبر »

**فائده**: که گناه د قسمه څخه د حقوق العباد وه نو کې ممکن وه لکه چې د چا مال یې خوړلی وی یه عدلا نو هغه قدر اندازه مال دی ور ردکړی. او هغه ته دا حال بیا نول نه غواړی. او که ممکن نه وو لکه غیبت د چا یا بهتان پرچا نو ده هغه څخه عفوه غوښتل ضروری ده »

**بشارت**: زمونږ په مذهب کې عفو مجمل هم کافی ده په اداء کې د حقوق النّاس مثلاً یو سړي د بل سړي ډیر مال خوړلی وو په غلا او یا خیانت وغیره نو که دی تفصیل د هغه مال ورته وکړي دی یو هیږی چې هغه نه ترنیږی یعنی بخښنه نه کوی نو که دی وهغه ته ووائی چې زما او ستا ترمابين اندیوالي وه نو حق به سره بخښنو او هغه ورته ووائی چې ما هم خپل حق وتا ته بخښلی دی ده د هغه خلاص سو، قال المصنفؒ

**وَالْمُؤْتَمُّ يَقْرَءُ الْقُنُوْتَ كَالْإِمَامِ** او مقتدی دی وائی دعاءِ قنوت لکه امام او دا روایت دی د امام اعظمؒ څخه او دا غرهم صحیح دی. او امام محمّدؒ وائی چې قوم دی قنوت نه وائی بلکه امین دی وائی پر قنوت د امام کما سیاتی

**مسئله**: امام او قوم دی دواړه دعائی قنوت کرار وائی. قال المصنفؒ وهو الصحيح لکن مستحب ده امام لره جهرپه دعائی قنوت سره یعنی د روڼې په میاشت کې وتر چې په جماعت سره اداکیږی چې په زوره دی وائی دعائی قنوت په بلادو کې د عجمو تا چې دوی یه واوری او زده ئی کی. وقال بعض الفقهاءؒ که چیرې امام په ده دی خبر وو چې د قوم دعاءِ قنوت زده دئ. نو اخفاء افضل کار دی، او که پوهیدی چې د قوم دعاءِ قنوت نه دی زده نو افضل جهر دئ. قال المصنفؒ

**وَاِذَا شَرَعَ الْاِمَامُ فِي الدُّعَآءِ بَعْدَمَا تَقَدَّمَ قَالَ اَبُوْيُوْسُفَ**

او هغه وخت چې شروع وکړي امام په دعاء سره پیسله دعاءِ قنوت څخه. نو ابو یوسفؒ وائی چې قوم





**يُتَابِعُوْنَهُ وَيَقْرَؤُنَهُ مَعَهُ وَقَالَ مُحَمَّدٌ لَا يُتَابِعُوْنَهُ وَلٰكِنْ** دی هم د امام متابعت وکړي او هغه دعاءِ دی ورسره وائی. او امام محمّدؒ وائی چې دوی دی د امام متابعت

**يُؤَمِّنُوْنَ وَلَا فِي الْقُنُوْتِ** نه کوی بلکه آمین دی ووائی په دی دعاکی او په دعاءِ قنوت کی دی هم متابعت نه کوي»

د روایش وائی چې ددی عبارت څخه دا معلومیږی چې امام به دعاء په جهر سره کوي. ولې چې متابعت د امام په دعاء ویلو کی او یا په امین ویلو کی پر دی موقوف دی چې دوی به د امام دعاء اوري

قال المصنفؒ **وَالدُّعَاءُ هُوَهٰذَا** او دعا هم داده. مصنفؒ په مراقی کې ویلی دی چې بعض مشائخ وائی چې په دعاء کې تعیین نشته انتهی، لکن په غاية البیان کی وائی چې دعاء د لمانځه باید معینه وي، ولې چې ممکنه ده دعا کوونکی به جاهل وی نو په دعاء کی بی داسی الفاظ تر خوله ووزی چې لمونځ به په فاسدیږی. او بله خبره داده چې ماثور دعاء برکت لري.

**سوال**: دامام محمّدؒ څخه روایت دی چې وائی: ليس في القنوت دعاء موقت، **جواب** مراد د امام محمّدؒ دادی چې غیر د اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ آه کما مر او غیر د اللهم اهدنا چې او به راسی بنایه د ابن امیرحاج، د روایش وائی چې د دغی دعاء چې به راسی. په وترو کی نن صبا لکه شریعت منسوخه داسی گرځیدلی ده. ولې چې د پښتنو په علاقه کی د هیڅ ملا څخه دوترو په لمانځه کی دا دعا چا نه ده اوریدلی والی. الله المشتکی »

**مُقَدَّمَةٌ لِلدُّعَاءِ الْاٰتِيْ** پوهسه: چې په حدیث شریف کی راغلی دی: وَلَا يَؤُمُّ عَبْدٌ فيخص نفسه بدعوة دونهم، یعنی امامت دی نه کوي یو بنده قوم ته چې خپل ځان خاص کړي په دعاء سره نه قوم، یعنی صیغه د واحد متکلم وائی او صیغه د متکلم مع الغیر نه وائی لکه چې امام داسی ووائی: اَللّٰهُمَّ اغفرلي ذنوبي ولوالدي، مثلاً بلکه داسی به وائی اللهم اغفرلنا ذنوبنا ولوالدينا مثلاً: قال م» فان فعل فقد خانهم، او که امام دغسی وکړه نو قوم سره یه خیانت وکړی، او دا حدیث ابوداؤد روایت کړی دی او ترمذی حدیث حسن ورته

وئیلی دی، ان الدعاء الآتی یعنی دَغه چې راځي په روایت سره د حسن بن علی رضی الله تعالیٰ عنهما راغلی ده چې دی وائی: علمنی رسول الله صلی الله علیه وسلم کلمات اقولهن فی الوتر» یعنی ما ته را ښوولی دی آنحضرت صلی الله علیه وسلم یو څو کلمې چې زه ئې په وتر کی وایم، د هغې ټوله کلمې په صیغه د واحد متکلم راغلی دی مثلاً اللهم اهدنی فیمن هَدَیْتَ آه نو فقهاؤ د مذهب بناءً پر مقتضی د حدیث فوق الذکر ټوله کلمات د دعاء په متکلم مع الغیر سره بدلې کړي دی مثلاً اللّٰهُمَّ اهْدِنَا او دا وائی که یو سړي یوازې وتر کوي نو هغه ته روا ده چې صیغې د متکلم واحد وَوائی چې ما ثور دی د حسن بن علی څخه» او د غیر نګه روا دی چې شفقةً پر نورو او ورورو مسلمانانو صیغی د متکلم مع الغیر وَوائی. او امام خو به متکلم مع الغیر خامخا وائی. هغه دعاء دا ده:

**اَللّٰهُمَّ اهْدِنَا بِفَضْلِكَ فِيْمَنْ هَدَيْتَ** ترجمه: یا الله ته مونږ ته هدایت وکړی ستا په فضل سره ستا په هغه دوکی د هغو کسانو چې تا هغو ته هدایت کړی دی: درو لیښ وائی چې هر څو که په هدایت کی اختلاف ډیر دئ. لکن مراد څندی دَلته توفیق د خیر د کار دی. لیعنی دلالت موصله»

**سَوَال:** مسلمانانو ته خو هدایت حاصل دی نو طلب یې د څه د پاره کوي. **جَوَاب:** مقصود په طلب کی همیشه والی دی پر هغه هدایت» او یا طلب د زیات والي دی کما قال المفسرون فی تفسیر قوله تعالیٰ: اِهْدِنَا الصراط المستقیم» او د لفظ ده بفضلك مراد دا دی چې واجب پر خدائ خوښی نه دئ. بلکه ټوله شیان د خدائ فضل دی. او د الفظ په قنوت کی د حسن سته قال المنذر

**وَعَافِنَا فِيْمَنْ عَافَيْتَ** د عافیت معنا دا ده چې مونږ د بلاوو او د مرضو او د تکلیفو څخه وساتې. او د معافا معنا دا ده چې مونږ د شر څخه د بل په امان یو او بل زمونږ د شر څخه په امان وي. قَالَ

**وَتَوَلَّنَا فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ** او مونږ ته په نظر د رحمت او د دوستۍ او مصلحت وګوری سره د هغو کسانو چې تا په دَغه نظر ورته کتلی دی لیعنی هغه ستا صالح او مقرب بندګان،

**وَبَارِكْ لَنَا فِيْمَا اَعْطَيْتَ** او مونږ ته برکت راکړی لیعنی زیاتوب راکړي په هغو نعمتو کی چې تا مونږ ته راکړی دی»





**وَقِنَا شَرَّ مَا قَضَيْتَ** او مونږ وساتی د شر څخه د هغو شیانو چې قضا ستا پر هغو تللی وي یعنی زمونږ او د شر ترمابین وقایه پیدا کړي. **پوهه سه** چې قضا معلقه په دعا سره ردیدای سی» **فَائِدَه**: قضا د خدای جل شانه خو ټوله خیر ده. او شر په مقتضی به کی دی. نو ځکه مونږ د شر څخه د مَا قضیت پناه وغوښتله»

**اِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ** او ستا قضاء نافذه ده په هر شی او پر تا باندی څوك خپله قضاء نه سی تحمیلولای» ولې چې خدائ مالك الملك والملكوت دی لا شریك له فی الملك فلذا انت المولا تك»

**اِنَّهٗ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ**

ولې چې په تحقیق نه سی ذلیله کیدلای یعنی د خلګو د خواهغه څوك چې ته د هغه سره دوستی ولری او عزت او غلبه نه سی پیدا کولای هغه څوك چې ته د هغه سره دښمنی او عداوت ولري. قَالَ الله تبارك وتعالیٰ: وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ» **تَبَارَكْتَ** ستا ذات لوړ دی د صفاتو څخه د مخلوقاتو **رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ**: ای زمونږ رب او ستا ذات د مشابهته څخه د ذوات د مخلوقاتو بالا دئ. درو لیښ وائی چې تبارکتَ وتعالیتَ تقریبًا سره یو شی دي. قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَسَلَّمَ وَمَنْ لَّمْ يُحْسِنِ الْقُنُوْتَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ** او که د چا نه وي زده دعائی قنوت نو دی دې وَوائی درې واره اللهم اغفرلی خدایه ما ته بخښنه وکړه. دا سی ویل مختار د فقیه ابو اللیث السمرقندي دَه» قَالَ المُصَنِّفُ:

**اَوْ يَقُوْلُ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ** او یا د دا سی ووائی ای خدایه زمونږ راکړی مونږ ته ښه شی په دنیا کی او په

اخرت کی ر اکړی بنه شی او موږ قساتی دعذ ابرد او ر صاحب هدایهؒ په تجنیس کی وائی چه دا دعا
مختاره زموږ د مشا ئخو ده **اَوْ يَارَبِّ يَارَبِّ يَارَبِّ** او یا دی دری واره یا رب ووائی
**فَائِدَه**: صاحب البحرؒ وائی چی، من لم یحسن، قید نه وهذا مختار الصدر الشهید،
دی بلکه هغه څوک چی قنوت مشهور یه زده هم وی دغه مذکوره کلمات په ځای کی قنوت
ورته روادی» ط» قال المصنفؒ:

## وَاِذَا اقْتَدٰى بِمَنْ يَّقْنُتُ فِى الْفَجْرِ

اوکه چا اقتداء وکړه په امام پسی چی هغه

**قَامَ مَعَهٗ فِىْ قُنُوْتِهٖ سَاكِتًا فِى الْاَظْهَرِ** دعائی قنوت وایه دسحار په لمانځه
کی لکه شافعی مذهبه امام مقتدی دی پسی ولاړوی د امام د قنوت په وخت کی پټه خوله یعنی
دعائی قنوت دی نه ورسره وائی په اظهر روایت کی، چی مذهب دی د امام اعظمؒ. او د امام محمدؒ
دوی یه په نفس قیام کی متابعت لازم بولی. نه په دعائی قنوت کی، ددوی دلیل دادی چی قنوت
الفجر خو منسوخ دی لکه چی موږ وړاندی ددی مسئلی ذکر وکړی. نو مثال یه دادی لکه چی دجنازی
په لمانځه کی امام تکبیر ووائی نو مقتدی بی په پنځم تکبیر کی متابعت نه کوی. او حضرت الامام
ابویوسفؒ وائی چی مقتدی دی دعائی قنوت ورسره وائی. ولی چی قنوت الفجر مختلف فیه دی
**مسئله**: شافعیانؒ دعائی قنوت پسله رکوع څخه وائی او دوی لاسونه پورته نیسی، نو مقتدی
چی حنفی مذهبه دی لاسونه به دځان سره ایله نسی، ولی زموږ په مذهب کی قنوت الفجر ذکر
مسنون نه دی.

## ډیره ضروری بنوونه

په هدایه کی وائی چی ددی مسئلی څخه دا معلومیږی چی اقتداء د حنیفی په مخالف المذهب امام پسی
روا ده، ولی چی حضرات ائمه ثلاثه زموږ چی په کیفیت کی د صلوة الفجر په شافعی المذهب
پسی اختلاف کوی نو معلومه ده چی نفس اقتداء خو یه بالاتفاق روا بولی. **د صحت د اقتداء
دپاره شرائط**، پوه سه چی زموږ د مذهب فقهاءؒ وائی چی اقتداء په مخالف پسی که شافعی
المذهب وی او که بل مذهب والا وی هلته صحیح ده. چی دغه مخالف المذهب امام په ځای کی د
اختلاف احتیاط کوی یعنی د حنیفی مذهب مراعات کوی. مثلاً کی یو ځای وینی سی او دس نوی
کوی په مراعات د مذهب حنیفی کهٔ څه دده په مذهب کی په خروج الدم سره اودس نه ماتیږی. او
مثلاً څلرمه دسر خواه مخواه مسح کوی په مراعات د مذهب حنیفی که څه هم دده په مذهب کی
ادنیٰ ما یطلق علیه المسح کافی ده. او مثلاً د وتر د دوو رکعتو په ما بین کی سلام نه ګرځوی
مراعاتاً للمذهب الحنیفی که څه هم دده په مذهب کی په ما بین کی سلام ګرځول روا دی. او مثلاً
چه د دغه امام څخه تس شپږ لمانځه کم قضاء سوی وی په ترتیب سره د وختی لمانځه یه قضا
راوړی مراعاتاً للمذهب الحنیفی که څه هم دده په مذهب کی ترتیب لازم نه دی.
او مثلاً د امام نطفه او منی چی لنده وای د کالو څخه ئی په پریولو لیری کوله. او که وچه وای یا یه ګروول
او یا یه په پریولو لیری کوله» کل ذالک بمتابعة مذهب الاحنافؒ من ان النطفة نجس که څه
هم په نیز د شافعیانوؒ نطفه پاکه ده، حاصل دکلام دادی» چی د صحت د اقتداء د پاره شرط دی
چی د امام لمونځ په صحیح وی په عقیده کښی د مقتدی مثل ما ذکرنا من المسائل» او که چیری د امام
لمونځ په عقیده د مقتدی فاسد وو بیا اقتداء یه نه ده پسی روا، مثلاً مقتدی ولیدی چی
د امام پزه وینی سوه. او مقتدی تر هغو ده سره یو ځای وو څو چی امام بیله نوی اودس کولو
پر لمانځه ودریدی. نو د دغه مقتدی لمونځ په دغه امام پسی نه دی روا. ولی چی د مقتدی په
عقیده امام بی اودسه دی. وبالجملة معتبره په صحت او فساد کی د لمانځه د امام رای ته اعتبار
نسته بلکه رأیه د مقتدی ده، وهو الصحیح الذی علیه الاکثر
او امام هندوانیؒ وائی چی معتبره رأیه د امام ده. وقال فی النهایه وهو الاقیس او پردی مذهب
اقتداء په مخالف المذهب پسی صحیح ده که څه هم امام احتیاط نه کوی. ط، **فَائِدَه**
که سړی ولیدی چی امام شافعی المذهب وو په پرتاګه یه لاس چرګ کی او ذکر یه مسح کړی چی
په نیز د شافعیانوؒ اودس مات سو، او د حنیفیانو په نیز اودس یه نه دی مات» او دغه امام
تجدید الوضوء ونه کړی په لمانځه کی د مخه سو. نو پر قول د اکثرو فقهاوؒ چی اعتقاد ته د مقتدی
اعتبار ورکوی د دغه حنیفی لمونځ پسی روا دی. ولی چی دده په عقیده امام بی اودسه نه دی،

اوپر مذهب دامام هندوانیٔ چې اعتبار عقیدی ته دامام ورکوی دحنیفی لمونځ نه دی لیپی رَوا. ولې چې دامام پرمذهب دی بې اود سه دَیٔ. وَعَلیٰ هٰذا فقس المسائل الاخر» قَالَ

## وَلَوْنَسِيَ الْقُنُوْتَ فِي الْوِتْرِ وَتَذَكَّرَهٗ فِي الرُّكُوْعِ اَوْفِي الرَّفْعِ مِنْهُ لَا يَقْنُتُ

اوکه دَسرې هیرشُو دعائی قنوت په دریم رکعت کی دَوترو او ور پیادسُو. په رکوع کی اویا پسله سرراپور ته کیدو څخه د رکوع څخه نودعائی قنوت دی نه وَائی نه په رکوع کی. اونه په وخت کی د رکوع څخه بلکه سجده سَهوه دی وکړی پر صحیح روایت، په اول مسئله کی اوبعض فقهاءٌ وائی چې په رکوع دعائی قنوت دی وائی صرف رکوع به اوږد هسی هغه پروانلري. اوپه صورت ثانیه یعنی چې بعدالرفع یه قنوت ور پیادسی اتفاقا دی قنوت نه وائې. م، ط، در، قَالَ المصنفؒ:

## وَلَوْقَنَتَ بَعْدَرَفْعِ رَأْسِهٖ مِنَ الرُّكُوْعِ لَا يُعِيْدُ الرُّكُوْعَ

کہ مصلی ووایه پسله دی څخه چې سَرېه راپورته کړي د رکوع څخه نورکوع دی بیرته نه راګرځوی او

## وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ لِزَوَالِ الْقُنُوْتِ عَنْ مَحَلِّهِ الْاَصْلِیِّ

سجده د سهوې دی وکړي. ولې چې قنوت دځپل اصلی ځا یه څخه چې قبل الرکوع وو نه ایل سوه. او تاخیر د واجب راغلی. امام طحطاویٌ وائی چې د ظاهره څخه دعبارت د مصنفٌ دا معلومیږی چې رکوع راګرځول ورته حرامه دَه. ولې چې دا راګرځول داسی کاردی چې د لما نځه څخه نه دیٔ. فما قَال السیّد چې د مصنفٌ مراد دادی چې د لمانځه صحت یه پر راګرځولو د رکوع موقوف نه دیٔ دا نه دی مراد چې دی د رکوع د راګرځولو څخه ممنوع دَیٔ. لیس وجه موجه والظاهر ما قال الطحطاوی» قَالَ المصنفؒ:

## وَلَوْرَكَعَ الْاِمَامُ قَبْلَ فَرَاغِ الْمُقْتَدِیْ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُنُوْتِ

اوکه چیری رکوع وکړه امام د مخه تر فارغ والی د مقتدی د دعاء قنوت څخه یعنی څه یه وَئیلی وو





اوڅه یاته وو. قَال

## اَوْقَبْلَ شُرُوْعِهٖ فِيْهِ وَخَافَ فَوْتَ الرُّكُوْعِ تَابَعَ اِمَامَهٗ

اویا امام رکوع ته وَلاړ چې مقتدی بیخی شروع په دعاءِ قنوت نه وه کړې. او مقتدی په دواړو صورتونو کی بیریدی چې رکوع به سره دامامه را څخه فوت سی. نو د امام متابعت دی وکړي په رکوع کی یعنی قنوت دی پریږدې. اما فی الصورة الاول» یعنی چې یوڅه قنوت یه وَئیلی په دی سبب متابعت د امام کوی چې دعائی قنوت لره یوه معینه اندازه نسته نو هغه چې دومره ویَل پوره سو. واما فی الصورة الثانیه چې مقتدی بیخی شروع په قنوت نه وی کړې، د دی متابَعت دامام مَراقی دابیان کړی دی چې دی که، په دعائی قنوت مشغول سی متابعَت د امام چې واجب دی پاته کیږی. لکن پردی دلیل باندی ط داسوال کړی دی چې قنوت خو هم واجب دی لکه متابعت دامام. نوبا ید مقتدی ته اختیار وی که دعاء قنوت وائی که رکوع دامام سره پریږدی، اوکه رکوع دامام سره کوی او دعائی قنوت پریږدي. بلکه باید دعائی قنوت ویل اولیٰ وي. ولې دعائی قنوت خو یک لحظه پاتیږی، او د نفل د رکوع خو یوازې هم کولای سی

**جَوَابْ** دقنوت واجب والی مجتهد فیه دی. او د متابعت الامام وجوب متفق علیه دیٔ "در"

**مَسْئَلَه:** که چیری د دعائی قنوت په ویلوسره یه امید د مشارکة فی الرکوع وُو، نو دعائی قنوت دی ووائی جمعًا بَین الواجبین» م» در ولیڅ وَائی چې چونکه په دعائی قنوت کی حد محدود نسته، بلکه په دری واره وَیلود یَارَبّ» هم اجراء د قنوت کیږی، لکه مذهَب د صدر شهیدٌ چې ووکی څه هم اوږد د دُعائی قنوت هم پیاد وی کمامر سابقًا من الطحطاویٌ» نو په دغه صورت کی دَخوف د پا ته والې د متابعت دامام په رکوع کی یعنی په صورت ثانی کی دی فقط مقتدی یَارَبّ یَارَبّ یَارَبّ» ووایه چې د دغه په وئیلو کی رکوع هم نه تیریږي. ولې چې امام کم از کم په رکوع کی دری واره سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ وائیٔ» در، قَالَ

## وَلَوْتَرَكَ الْاِمَامُ الْقُنُوْتَ يَأْتِیْ بِهِ الْمُؤْتَمُّ اِنْ اَمْكَنَهٗ

اوکه امام پریښود دعائی قنوت مقتدی بی وائیٔ که چیری ممکن وو ده لره.

**مُشَارَكَةً فِى الرُّكُوعِ وَالْاَتَابَعَهُ** مشارکت د امام په رکوع کی او که وو ممکن سیادی متابعت د امام وکړي،

د روایت وائی په هغه د مخه مسئله کی او به دی مسئله کی که سړی د اسی ووائی چې مقتدی دا مذهب او عقیده وه چې پوره اوبن د دعائی قنوت ویل غواړی. او و مذهب ته د چا شهید یه عقیده نه وه. نو دواړه صورت پرظاهر د کلام د مصنف جوړیږی فافهم، قال

**وَلَوْاَدْرَكَ الْاِمَامَ فِى رُكُوعِ الثَّالِثَةِ مِنَ الْوِتْرِ كَانَ مُدْرِكًا**

او که امام ته سړی ورسیدی په رکوع کی د دریم رکعت د وترو نو دعائی قنوت یه هم پرځای سو

**لِلْقُنُوْتِ فَلَا يَأْتِى بِهِ فِيْمَا سُبِقَ بِهِ** نو د غه مقتدی به دعائی قنوت نه وائی په هغو رکعتو کی چې دده څخه تیر سوی وی. ولې چې رکعتونه د قنوت ځای نه دی. قال المصنف:

**وَيُوْتِرُ بِجَمَاعَةٍ فِى رَمَضَانَ فَقَطْ** او وتر دی کوی په جماعت سره په میاشت کی د روژی نه په نورو میاشتو کی او دا جماعت هم مستحب دی. **پوښتنه**: چې مصنف په مراقی کی وائی وعلیه اجماع المسلمین» وفی الهدایة علیه اجماع المسلمین، وفی المراقی وکذا فی فتح القدیر داسی وائی چې وتر نفل دی من وجه او جماعت په نفلو کی مکروه دی په غیر کی د میاشتی د روژی، پس احتیاط په دی کی دی» چې وتر دی په جماعت سره نه کوی په غیر کی د روژی. او د شمس الائمة څخه روایت دی چې د اکراهت په هغه صورت کی دی چې جماعت د وترو په طریقه د یو د بل ده را بللو سره وی چې دی ته تداعی وائی. او که اتفاقًا یو سړی یا دوه کسه په بل پسی په وترو کی اقتداء وکړی بیله روژی په هغه کښی کراهت نسته، او چې دری کسه اقتداء په بل پسی وکړی په دی کی اختلاف دی. او که مقتدیان څلور کسه وه هغه جماعت مکروه دی اتفاقًا. **سوال**: په نوازل کی وائی په نقل د مغنی څخه چې اقتداء په وترو کی خارج رمضان جائز ده. **جواب** جواز خو د کراهت سره منافی نه دی، لان معنی





الجواز انه صحیح ولا شك فی الصحة، ورب صلاة تكون صحیحة مع الكراهة» په صحیح حدیث کی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم تهجد لمونځ وابن عباس ته په جماعت ورکړی. او دا حدیث هم صحیح دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم بر عائشه رضی الله تعالی عنها د وترو په وخت کی ویښوله. او دی به وتر علیه السلام سره په جماعت کول. او دا هم صحیح حدیث دی چې علیه الصلوة والسلام تبرکًا دوه رکعته نفل د امرانس په کور کی په جماعت کړی دی» قال المصنف:

**وَصَلٰوتُهُ مَعَ الْجَمَاعَةِ فِى رَمَضَانَ اَفْضَلُ مِنْ اَدَائِهِ مُنْفَرِدًا**

او کول د وترو سره د جماعت په میاشت کی د روژی افضل او ښه کار دی. تر یوازی کولو په اخیر د

**اٰخِرَ اللَّيْلِ فِى اِخْتِيَارِ قَاضِيْخَانَ قَالَ وَهُوَ الصَّحِيْحُ وَصَحَّحَ**

**غَيْرُهُ خِلَافَهُ** شپی یعنی وروسته تر تهجد د لمانځه په خوښه د قاضیخان، او ده وئیلی چې دغه خبره هم صحیح ده. ولې چې جماعت په کم لمانځه کی چې رواوی نو جماعت یه افضل دی تر یوازی. او دا خبره هم په ثبوت رسیدلی ده چې عمر رضی الله تعالی عنه و خلګو ته په وترو کی د جماعت لمونځ ورکاوه. او د غیر څخه مراد صاحب نهایه دی هغه وائی چې زمونږ د مذهب علماوو د اخوښه کړیده چې خلګ دی وتر په کور کی بیله جماعت نه پس له تهجده کوی، ومثل ما فی النهایة قال فی الفتاوی الظهیرة والذخیرة. لکن په فتح القدیر او برهان کی داسی عبارت راغلی دی چې قول د قاضیخان ارجح دی کذا فی المراقی، ولې چې علیه الصلوة والسلام وترو صحابه ته پس له جماعت څخه د تهجد په جماعت سره ګذارلی دی. او بیا علیه الصلوة والسلام عذر د ترك د جماعت په تهجد او وترو کی داسی بیان کړی دئ چې زه بیریږم چې تهجد لمونځ پر موږ فرض نسی، او د غه رنګه خلفاء راشدینو رضی الله تعالی عنهم وتر په جماعت سره کول» درو یش وائی. چې مذهب د قاضیخان د یر ښتا خوښ مختاره کړی ده» والله اعلم بالصواب

بیت سه باب د وترو په توفیق د خدائی تمام سو:: او س به فصل د نفلی لمونځو شروع کړو:: ان شاء الله،

# فَصْلٌ فِي النَّوَافِلِ

فصل دی په بیان کی د نفلی لمونځو، **پوښتنه** چې نفل په لغت کی نفس زیادت ته وائی نو دی کبله غنیمت ته نفل وائی. ولې چې غنیمت زائد دی ترا صل موضوع د جهاد چې اعلاء د کلمة الله ده زیاتی دی. قال الله تعالی: وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ» یعنی انها لمن هی و کیف تقسیمها، او لمسی ته هم نافلة وائی. ولې چې ترا صل مقصود دازدواج دمیره اوما ینی زیاتی شئ دی. قَالَ اللهُ تَعَالٰى، وَوَهَبْنَا لَهُ ای لابراهیم، اسحاق، وهو ولده الذی طلبه ابراهیمؑ و يعقوبُ نَافِلَةً» چې يعقوب دابراهیمؑ لمسی دی. قَالَ المصنفؒ فی المراقی چې مصنفؒ عنوان د فصل لفظ د نوافل وګرځاوه او سنن په عنوان نه کړی. ولې چې نفل تر سنت عام دی. ولې هر سنت نفلی دی یعنی ترفرضو او واجبو زیاتی لمونځ دی، او هر نفل سنت نه دی کما هو ظاهرٌ:

ثم فسر النفل بحسب اصطلاح الشرع انه ما لیس بفرض ولا واجب ولا مسنون من العبادة نو پر مصنف دا سوال واردیږی چې تاخو عنقریب وویل چې هر سنت نفل دی. او د لته بیا وائی وَلَا مَسنون»، نو د دې عبارت څخه صراحةً دا معلومیږی چې سُنت نفل نه دی وَالصواب چې د نفلو دوې معناوې دی یوه معنا داده چې مصنفؒ په بیان وکړی چې نه به فرض وی او نه سنت او نه واجب، دا معنا خو مقابل د سنتو ده لکه د فرضو او واجبو چې مقابل ده. او بله معنا د نفلو داده چې زائد پر فرضو او واجبو فقط وی. نو نفل په دی معنا تر سنتو عام دی.
فقد خلط المصؒ بین المعنیین. او نفلی ته (عبارت) تطوع هم وائی چې سړی په خپله خوښه کوی یعنی د خدائ د خوا څخه فرضیت او ایجاب نسته»

**فائده:** نفل یوازی په لمانځه پورې خاص نه دی بلکه په نورو عباداتو کی هم نفل شته لکه نفلی روژه، نفلی حج، نفلی صدقه، **فائده:** نفلی لمونځ د پاره د جبیره دی د نقصان په فرضو کی. ولې بنده که هرڅو کوشش وکړی په اداء کی د فرضو





لمانځه خو بیا هم د تقصیر څخه نه سی خلاصیدای نو نفل به جبیره د هغه تقصیر ده.

**پوښتنه:** چې دا فائده چې بیان سوه دا خو صرف دوو وسته تر لمانځه نفلو ده، نما الفائدة فی النوافل القبلیة» **جواب:** قاضیخانؒ وائی چې فائده د سنن قبلیه وو قطع د طمع د شیطان ده د فرضی لمانځه څخه» ولې شیطان ته دا یقین کیږی چې دا سړی په نفلی لمانځه کی یعنی سنت قبلی زما متابعت نه کوی. او سره د دی چې پر واجب هم وی نو څرنګه به ده فرضی لمانځه په پریښولو کی زما په خوله وکړی. **فائده:** سُنت دوه قسمه دی یو سنت مندوب دی چې سُنت زائده یې هم بولی او بل سنت مؤکد دی نو مصنفؒ د سنت مؤکد په بیان شروع کوی او وائی.. قَالَ المُصَنِّفُ،

## سَنَّ سُنَّةً مُؤَكَّدَةً رَكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ

(او سنت دی کلک سنت دوه رکعته د مخه تر لمانځه د سحار)

دوه رکعته مخکی تر لمانځه د سحار، در وليش وائی چې سنة الفجر تر ټولو سنتو اقوی دی په سنتیت کی، چې د دی سُنتو په باره کی ډیر احادیث نبویه راغلی دی. حتی چې حسنؒ د امام اعظمؒ څخه روایت کړی دی چې د سحار سنت بیله عذره په ناستی نه دی روا یعنی لکه فرض او واجب» او مرغینانیؒ بیا روایت دا امام اعظمؒ څخه داسی کړی چې دا دوه رکعته قبل الفجر واجب دی. وقَالَ علیه الصلوة والسّلام: رکعتا الفجر خیرٌ من الدنیا وما فیها» وفی حدیث صحیح اخرلا تدعوها وان طردتکم الخیل» یعنی تاسی مه پریږدی دوه رکعته د سحار سنت که څه هم آسان مو تر پښو لاندی کوی، او په خلاصه کی چې په اجماع سره د سحار سنت بیله عذره په ناستی نه دی روا، او په مضمرات کی وائی چې بیم د کفر دی پر هغه سړی چې د سحار د سنتو منکر وی.

او بل دلیل د قوت د دغو سنتو دا دی چې هر فرضی لمونځ چې د سنتو سره قضا سی د سُنتو قضایې نسته. اما د سحار لمونځ که د سُنتو سره قضا سو د سُنتو قضاء او په یې سته او په مسلم شریف کی دا بوهریرةؓ څخه روایت دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به سُنتو کی د سحار قُلْ يَا اَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ» او قُلْ هُوَ اللهُ اَحَد» ویلی. او امام احمدؒ دا بن عباسؓ

څخه روایت کړي دي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په اوله رکعت کي د سنة الفجر اخري ایتونه د سورة بقره ویله او په دوهم رکعت کي یې دا ایت وایه قُل یا اَهلَ الکتٰبِ تَعَالَوا اِلٰی کَلِمَةٍ الاٰیَة درویش وائي چي علماء مستحب دابولي چي سړی کاهي په سنت الفجر کي هغه دوه سورتونه وائي. او کاهي دا نور ایتونه وائي. واما ما استحسن الامام الغزالي في الاحیاء چي په اوله رکعت کي اَلَم نَشرَح وائي. او په دوهم رکعت کي دي اَلَم تَرَ کَیفَ وائي. وقال انه یرد شر الیوم؛ هغه په حدیثو شریفو کي نه دي راغلی والله اعلم:

**مسئله**: پیله سنت الفجر څخه افضل سنت کوم سنت دی. بعض علماء وائي چي قبل الظهر سنت اکد دي. قال الحسن وهو الاصح او مبسوط والاهم تر سنة الفجر وروسته سنت قبل د ظهر ذکر کړی دي: او امام حلواني وائي چي وروسته تر سنة الفجر افضل دوه رکعته د ماښام دی. او وروسته تر هغه سنت بعدی د ماپښین دی. او وروسته تر هغه دوه رکعته د ماخستن دی او وروسته تر هغه څلور رکعته قبل الظهر دي. وقیل چي هغه دوه رکعته پس له عشاء هغه څلور چي قبل الظهر دی او هغه دوه رکعته چي بعد الظهر دی او هغه دوه رکعته چي بعد الظهر دی او هغه دوه رکعته چي بعد المغرب دی ټول په درجه کي سره برابر دي. درویش وائي چي مراقی چي دوه رکعته قبل العصر او دوه رکعته قبل العشاء هم دلته په ترتیب داخل کړي دي.

دا سوال پیدا کیدی چي کلام د مصنف دلته په سنن مؤکده کي دی. او دغه دوه دوه رکعت خو مستحب دي چي سنن زوائد ورته وائي والجواب چي مصنف وروسته مندوبات په سنن کي هم راوړي دي. نو دی سبب په هغه دوه دوه رکعته په ترتیب کي راوړه،

**مسئله**: افضل په سنتة الفجر کي داده چي په اول وخت کي دي اداء کړی لکن سره د تخفیف وقیل چي اسفار افضل دی. او په بنایه ده مبسوط څخه نقل کوي چي وروسته تر سفیدو چاودلو د سړي خبری نه کوي. ولې چي ملائکة اللیل والنهار په دغه وخت کي سره جمع کیږی. نو باید دده دخولي بیله ذکر الهی بل څه نه واوری. قال الله تعالی اِنَّ قُراٰنَ الفَجرِ کَانَ مَشهُودًا، مر، ط د، ه





**مسئله**: څوک چي دعوی داجماع کوي چي سنة الفجر دي بیله عذره په ناستي نه کوي. امام طحطاوي وائي چي په هغه کي نظر دی بلکه معتمده خبره جواز دی. نو افضله دادی چي په ولاړه دي کوی. قال المصنف:

## وَرَکعَتَانِ بَعدَ الظُّهرِ وَمِنهَا رَکعَتَانِ بَعدَ المَغرِبِ

او بیا سنت مؤکده دوه رکعت دی پس له ماپښینه، او بل د سنت مؤکدو څخه دوه رکعت دي پس له ماښام د لمانځه څخه. وفي شرح الوقایه لاخی زادهٔ. وفي الحدیث افضل الصلوات عند الله المغرب، لم یحطها عن مسافر ولا مقیم، یعني په دغه لمانځه کي کموالی نه دی راغلی نه مقیم څخه او نه مسافر څخه، قال م چي د ماښام په لمانځه سره د شپی لمونځ شروع کیږی او د ورځی داختم کیږي. قال صلعم که چا وروسته تر ماښام دوه رکعته سنت ودرته بدوی کوټی جوړي سي. په جنت کي او که چا څلور رکعته وکړه خدای به ورته ګناهونه د شلو کلو ورو بخښی. قال في المراقي ویستحب ان یطیل القرائة في سنة المغرب. ولی چي په حدیث نبوی کي راغلی دي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به په اوله رکعت کي د سنة المغرب بهٔی الٓمٓ تنزیل وایه. او په دوهم رکعت بي تَبَارَکَ الَّذِی بِیَدِهِ المُلکُ وایه، لکن کاهي کاهي قاله شارح المشکوٰة، کذا في الجوهرة،

وعن انس د هغه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: مَن صَلّٰی بعد المغرب که چا اداء کړه وروسته د ماښام تر لمانځه دوه رکعته چي په اول کي الحَمدُ لِلّٰه او قُل یٰاَیُّهَا الکٰفِرُونَ وواید او په دوهم رکعت کي الحَمدُ لِلّٰه او قُل هُوَ اللّٰهُ اَحَد ووایه د مخه تر دي چي د چا سره خبری وکړي نو د ګناهو څخه به داسی ووزی لکه مار چي د خپله پوسته وزي: قال المصنف:

## وَبَعدَ العِشَاءِ وَاَربَعٌ قَبلَ الظُّهرِ وَقَبلَ الجُمُعَةِ وَبَعدَهَا بِتَسلِیمَةٍ

او دغه رنګ سنت مؤکده دی دوه رکعته پس له ماخستن څخه او څلور رکعته د مخه تر ماپښین او د مخه د جمعی تر لمانځه او څلور رکعته وروسته تر جمعی په یوه سلام سره. لقوله علیه السلام من

تَرْكِ الاربع قبل الظهر لم تنله شفاعتی، نقله المراقی عن الاختیار. وفی البحر وایه به په هر رکعت کی په قدر د لسو ایتو وکذا فی الاربع بعد العشاء، د روایت وائی چی باره کی رغلی رکعتو قبل الظهر یو اوږد حدیث د ابی ایوب انصاریؓ هم موجود دی، لکن سنت قبلی د ما بینین او جمعی د لمانځه په یوه سلام سره اداکړی. او د مخه د جمعی تر لمانځه هم علیه الصلوٰة والسلام څلور رکعته لمونځ کاوه چی په مابین کی به ئی سلام نه گرځاوه. زیلعی شارح الکنز وائی کی دغه څلور رکعته په دوه سلامه سره وکړه د سنت اجراء نه په کیږی. لکن داهلته چی دسړی تلوار نه وی. او کی تلوار وی دوه رکعته دی په مسجد کی وکړی او دوه رکعته چی بیا د کاره خلاص شو. وبهذا اللفظ جاء الحدیث النبوی الذی رواه الجماعة الاجلاء

**مسئله**: قال ابویوسفؒ، چی تر جمعی وروسته دی شپږ رکعته کوی په دوه سلامه قال الکرخیؒ و محمد مع ابی یوسفؒ، د روایت وائی چی دغه مذهب معمول دی زمونږ په وطنو کښی، یعنی وروسته تر جمعی ۴ رکعته د مخه او دوه رکعته وروسته کوی وهو مذهب ابی یوسفؒ؛

**مسئله**: کی سنت بعدی وځنډول پر صحیح روایت د سنتو ثواب نه نشی مر،

**مسئله**: په مابین کی د فرضو او سنتو خبری کول او یا داسی عمل کول چی د تحریمی سره منافی وی سنت خو به د ذمی څخه نه ساقطیږی لکن ثواب به کمیږی. علی الاصح ط، **مسئله** په حلبی کی وائی که څوک نفل کوی نو اول دی پر ځان نذر کړی. او بیا دی اداء کړی. ولی نو خو واجب دی او د واجبو ثواب تر نفلو ډیر دی. **مسئله**: په سنن قبلیه او بعدیه وکی افضل به کور کی کول دی وهذا کان غالب حال النبی صلی الله علیه وسلم: واخرج ابوداؤد د صلوة المرء فی بیته افضل من صلاته فی مسجدی هذا الا المکتوبة، او منیة المصلی والا وائی چی سنت کول په مسجد کی حسن دی وفی البیت احسن، وبه افتی الامام الفقیه ابوجعفر الطحاوی **مسئله**: که ده سړی کور لیری وو او ویریږی چی نه کور ته رسی نو به دچا سره په خبرو اخته شم. او یا په بل عمل نو هغه دی سنت په مسجد کی گذاری: الحکمة فی صلوة السنة فی البیوت، په هغه حدیث کی بیان سوی دی، نوروا





بیوتکم بالصلوٰة، تاسی نورانی کوی خپل کورونه په لمونځ سره: وَلَا تَجْعَلُوْهَا قُبُوْرًا، او تاسی مه گرځوی کورونه خپل قبرونه. یعنی مړی خو په قبر کی لمونځ نه سی کولای، نو ستاسی کورونه دی لکه د مړو قبرونه داسی نه وی رواه الحلبی وغیره: قال المصنف:

## وَنُدِبَ اَرْبَعٌ قَبْلَ الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ وَبَعْدَهُ وَسِتٌّ بَعْدَ الْمَغْرِبِ

او مستحب دی څلور رکعته د مخه د ماز دیگر د لمانځه او څلور رکعته د مخه تر ماخستن او وروسته تر ماخستن، او شپږ رکعته وروسته د ماښام تر لمانځه **پوهه سه**: چی مندوب او مستحب او مرغب فیه او حسن الفاظ مترادفه دی. معنا یه داده چی شارع په وفعل ته ترجیح تر ترک ور کړی وی. ط،

### الدلائل علی المندوبات المذکورة

اما الاول، یعنی ۴ رکعته قبل العصر په حدیث شریف کی راغلی دی که چا څلور رکعته وکړه د مخه تر لمانځه د ماز دیگر او به په نه کړسه یعنی اور د دوزخ. او په بل حدیث شریف کی راغلی دی چی علیه الصلوٰة والسلام دوه رکعته وکړه د ماز دیگر تر لمانځه د مخه، نو ددی حدیثو په سبب قدوری سړی ته اختیار ور کړی دی یعنی که څلور رکعت کوی او که دوه. او امام محمد بن الحسنؒ هم اختیار ور کړی دی. د ه ۲: اود ۴ تر ما بین کما فی فتح القدیر: د روایت وائی چی معنی د تخیر داده. چی مستحب پر دواړو تقدیر اداء کیږی. لکن زیادة الخیر خیر، بالاتفاق، فاما الثانی، یعنی ۴ رکعته قبل العشاء ده سیدتنا عائشه رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی، چی علیه الصلوٰة والسلام د مخه د ماخستن تر لمانځه څلور رکعته نفل کول او بیا به فرضی لمونځ کاوه. او وروسته به څلور رکعته نفل کول. او بیا به آرام کوه واما الثالث، ای بعد العشاء، لماروینا من قبل ولقوله علیه الصلوٰة والسلام که چا څخه ترماپښین څلور رکعته نفل وکړه دومره ثواب لری لکه د شپی د تهجد د لمانځه او که چا څلور رکعته نفل وکړه د ماخستن تر لمانځه وروسته. نو دوونه ثواب به دی لکه چی په شب قدر کی څوک وکړی،

**تنبیه**: اما طحطاویؒ وائی چې د فوائد قرشیه څخه نقل را اغلی دی. چې مراد په دغو احادیثو شریفه ووکې چې په مقابل کې د دغو اعمالو چې ډیر آسان دی دومره لوی ثواب وعده وهغه چا ته ده چې پر دغو اعمالو همیشه توب وکړي او یا په سبب د عذر په بعض اوقاتو ځندی پاته سي.
او که څیری یوسړی گاه گاه دا عملونه کوي او بیله عذره په گاه گاه پریږدی. هغه د دونه لویو ثوابو مستحق نه دی. البته نفس ثواب هولري. وَاَمَّا الرابع ای بعد المغرب» په حدیث شریف کې راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وویله که چا پسله مابنام د لمانځه شپږ رکعته نفل وکړه کتب من الاوابین» دا سړی به نوشته سی د اوابینو په ډله کې. بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آیت وَوَایه» اِنَّهُ کَانَ لِلْاَوَّابِیْنَ غَفُوْرًا» په تحقیق خدای جل شانه د اوابینو بخښونکی دی»

**فائده**: اواب هغه چا ته وائی چې گناه ځندی صادره سی ژر تر ژره و خدای پاك ته په توبه کولو رجوع کوي. او د ابن عباسؓ څخه روایت دی چې علیه الصلوٰة والسلام وویله که چا د مابنام تر لمانځه وروسته شپږ رکعته وکړه او په مابین کې خبري ونه کړي برابر دی د غه شپږ رکعته د عبادت سره د دوولسو[12] کلو یعني په نورو وختو کې. او د ابی هریرة رضی الله عنه پر روایت کې داسی راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام وویله که چا پسله مابنامه ۲۰ رکعته نفل وکړه. خدای پاك به جوړکړي د ده د پاره یو کور په جنت کې. او د ابن عباسؓ په روایت کې راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام وفرمایله که چا څلور رکعته نفل وکړه پسله مابنام د لمانځه د مخه تر دی چې دیو چا سره خبري وکړي. رُفِعَتْ لَهُ فِی عِلِّیِّیْنَ» دا عمل دده په علیین کې ذخیره سی. علیین دیو لوړ مقام نوم دی په جنت کې»

**پوښتنه**: چې مراد په دی حدیث کې دا دی چې لوی ثواب به ودَه ته په علیین کې نوشته سی نو دا سوال نه پیدا کیږی چې په علیین کې خو د نورو عملو د خیر ثوابونه هم ذخیره کیږی. او علیه الصلوٰة والسلام زیاته کړه: وَ کَانَ کَمَنْ اَدْرَكَ لَیْلَةَ الْقَدْرِ فِی الْمَسْجِدِ الْاَقْصٰی وَهُوَ خَیْرٌ لَه مِنْ قِیَامِ نِصْفِ لَیْلَةٍ» او دا سړی لکه هغه سړی گرځي چې





د شب قدر لمونځ په مسجد کې د بیت المقدس وکړي. او د غه څلور رکعته بهتر دی. تر نیمی شپې پوری تر نفلو»

**سوال**، د لیلة القدر عبادت خو په نص د قرآن کریم بالا دی تر زرو میاشتو عبادت په نورو شپو کې. او قیام د نصف لیلة خو هم یو لږ عبادت دی **جواب**: چې په حدیث شریف کې مراد دا دی چې د قیامی د نصف لیلة ثواب بالا بود ور کول کیږی تر قیام د لیلة القدر. وعن ابن عمرؓ ده وویل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویله که یو چا شپږ رکعته نفل وکړه د مخه تر خبرو کولو. هغه ته به و بخښل سي. گناهونه د پنځوسو کلو» وعن عمار بن یاسرؓ قال رسول الله صلی الله علیه وسلم چې که چا وکړه پسله مابنامه شپږ رکعته. خدای پاك بې گناهونه ور و بخښي که څه هم دومره ډیر گناهونه وي لکه ځگ د دریاب» **درویش** وائی چې په دی حدیث کې که څه هم قید د قبل التکلم نسته لکن مراد دی. ولی چې مطلق پر مقید حمل کیږی چې واقعه یوه وي. کما تقرر فی اصول الفقه»

**پوښتنه**: چې اکثر علماء بخښل د گناهو په سبب بعض عملو لکه پر ما نحن فیه کې مخصوص بولي په صغیره گناهو پوری. وذالک لبشارة عظیمة» او بعض علماء گناهونه عاموی کبائر و گناهونو ته هم شامله وي. ففی الاحادیث المذکورة اعظم بشارة للمؤمنین والمؤمنات **فائده**: د حضرت الامام الاعظمؒ مذهب دا دی چې دا شپږ رکعته دي د مابنام تر لمانځه وروسته په دوه سلامه سره کوي یعنی اول دوه رکعته او بیا څلور. او یارانؒ وائی چې دا شپږ رکعته دی په دریو سلامو سره کوي یعنی دوه دوه رکعته. او په دررو کې وائی چې شپږ سره دي په یوه سلام کوي او فتوای پر قول دامامؒ ده»

**مسئله**: د غه شپږ رکعته د مابنام بالا بود تر سنتو مؤکده دی او که سره د هغو دی بعض علماء وائی چې دا شپږ رکعته جلا د ه سنت مؤکده څخه دي. او کمال الدین ابن الهمامؒ په فتح القدیر او امام حلبیؒ په خپل کتاب کې وائی چې دا شپږ رکعته مجموع سنت مؤکده او نفل دی نو نفل څلور رکعته کیږی. **درویش** وائی چې دا هم تائید د امام اعظمؒ کوي چې وائی چې په دوه سلامه سره دی کوي. ولی جلا کول د نفلو د سنت مؤکده وو څخه مستحب دی

اوصاحبُ الدر رحمه الله چې شپږ سره په يوه سلام بولي دَهغه په نيزه اشپږ رکعت د سنت مؤکده ځکه بللي دي. نوچونکه شپږ رکعته په يوه سلامه اَدُوم تحريمةً وه او سخت وه نو ځکه درر والادغه مذهب مختاره کړي.

**تحقيق علمي:** **يوه سله:** چې محدثين ټوله پردې متفق دي چې روايت د موضوعي حديث چې سړي په خبروي ناروادي مګر د بيان سره دوضعي ملګري، او دا په متفق دول سره فقهاءُ وائي چې په حديث ضعيف سره په فضا ئِلوکي دَاعمالو استدلال روا دې نو بناءً على هذا درويش وائي چې دغه حديثونه چې دلته په فضا ئِلوکي دسنتو او نفلو ذکر سوي دي بحمد الله موضوعي خو يو هم نسته په کښې، بلکه اکثريه صحيح دي. او که چيرې بعض احاديث مذکوره دسند د لارې ضعيف هم وي. خو بيا استدلال په روادی. ولي داځای دبيان دفضا ئِلو د اعمالودی. فلا نعتبر بماقيل اويقال؛ قَالَ المُصنفُ.

## وَيَقْتَصِرُ فِى الْجُلُوسِ الْاَوَّلِ مِنَ الْمُؤَكَّدَةِ (الاربعة) عَلَى التَّشَهُّدِ

او بس والي دي کوي په ناسته کې چې اوله ناسته ده. په څلور رکعتيز کې د سنت مؤکدة يعنى څلور رکعته سنت د مخه ترمابښين اود مخه دجمعي ترلمانځه. او ورسته دجمعي ترلمانځه پر ويلود التحيات، يعني پر اَشْهَدُ اَنْ لَااِلٰهَ الا الله وَاشهد انَّ محمدًا عبده ورسُوله پورې دي وائي. **فَائِدَه:** سره ددي چې په فرضي لمانځه کې د مَيانځ په ناسته کې تر التحيات بالابود وکړي. وَلَوْ که په قدر د اَللّٰهمّ صَلِّ عَلىٰ محمّد وي سجده سهوه به کوي. لکن په سُنت مؤکده وو کی چې څلور رکعته وي اود ميا نځ په ناسته کې تر التحيات بالاوَوائي دفقهاوو اختلاف دي چې سجده سهوه پر لازم ده اوکه نه! کذافی الدرر وَالغرر، هغه خلک چې سجدهٔ پر وائي هغه دا استدلال کوي چې سُنت مؤکده پر مشابهت لري دفرضوسره. نود تشهد وَيلو په باره کې حکم دفرضو لري. نو لکه په فرضي لمانځه کې چې دميانځ په ناسته کې تر التحيات د تيرېدو په صورت کې خو سجده سهوه وه. نو په سنت مؤکده وو کې هم سجده سهوه سته په صورت مذکوره کې..





او هغه علماء چې په صُورت مذکوره کې په سنت مؤکده وو کې سجده سهوه نه وائي هغه وائي چې اصلاً خو سنت مؤکده هم نفل وه لکن په سبب د مداومت دَعليه الصلوٰة وَالسلام سنت مؤکد وګرځيد له نو د اصل د لارې سجده سهوه نسته،، او هغه دليل چې اوَلي وائي وو چې سُنت مؤکده د پراَه. جواب دادی چې په مشبه کې خو ټول احکام د مشبه به جاري نه وي چې يو د هغو ځنې سجده سهوه ده. وهذا المذهب ينبغي ان يفتى به . قَالَ

## وَلَا يَأْتِى فِى الثَّالِثَةِ بِدُعَاءِ الْاِسْتِفْتَاحِ بِخِلَافِ الْمَنْدُوْبَةِ

او را تګ دي نه کوي مصلي د سنت مؤکده وو. چې دريم رکعت ته ولاړ سي. په سُبحَانَكَ اللّٰهمّ سره کذا فى فتح القدير وهوالاصح كما فى المنيه، او په خلاف د سنة موکده دي سنت مندوبه چې څلور رکعته وي. يعني په دواړو مسئلو کې معنا دا چې د مندوبه څلور رکعتيزو د مَيانځ په ناسته کې به درود لا زمًا وائي. او چې د دريم رکعت وَلاړسی سُبحَانَكَ اللّٰهمّ به هم وائي لکه په نفلي خالِص څلور رکعته وَالا، او که مصلي د مندوبه سُنتو په اوله ناسته کې نه کښېنستی نو په دريم رکعت کې دي سُبحَانَكَ اللّٰهُم او اَعُوذُ بِاللهِ نه وائي.

**نکته:** په شرح کې د مُنيې وائي چې مسئله د استفتاح ويلو او مثل دهغه د متقدمينو ځنې د مذهب روايت نسته، البته د متاخرينو ځنې دا روايات مروي دي. قَالَ المُصنفُ

## وَاِذَا صَلّٰى نَافِلَةً اَكْثَرَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ وَلَمْ يَجْلِسْ اِلَّا فِى

او که سړي نفل وکړه بالاتر دوه رکعته يعني څلور مثلًا او نه کښېنستی مګر په اخير کې

## اٰخِرِهَا صَحَّ اِسْتِحْسَانًا لِاَنَّهَا صَارَتْ صَلٰوةً وَاحِدَةً

صحيح دي لمونځ په از روي استحسان. ولې دا ټول څلور رکعته يو لمونځ وګرځيدی او په يوه لمانځه کې صرف اخيره ناسته فرض ده.

**پوښتنه** چې مصنفؒ استحسانًا ددې سببه ووایه چې په قیاس کې باید د لمونځ ناسته وي كما ذهب اليه زفرؒ وهو رواية عن محمدؒ وجه القياس ، داده چې هر دوه رکعته د نفلو جلا لمونځ دی نو ده میانځ ناسته د شفع اول اخیره ناسته ده. او دې مصلي هغه پرېښوله. او د استحسان دلیل خو هغه دی چې مصنفؒ وواییه ، وما يؤيد الاستحسان ما روى مسلمؒ انه صلى الله عليه وسلم يو وخت نه ۹ رکعته لمونځ نفلي وکړي او پر اتم رکعت یې ناسته وکړه. او بیا و نهم رکعت ته ولاړ شو»

**مسئله**: که ناسته پر دوو رکعتو هیره شوه حتی یې په سجده سهوه سره کیږي. او کې په ولاړه کې ور پیاد شوه بیرته دې ناستې ته راګرځي او سجده سهوه دې هم وکړي تر هغو چې رکعت یې په سجده سره نه وي مقید کړي» ف م، **پوښتنه** چې بعض فقهاؤ وائي چې دا څلور سره رکعته مثلاً یوه شفعه حسابل کیږي. نو مصنفؒ هغه رد کړه چې دا څلور سره یو باعی لمونځ دی.

**پوښتنه**: ابن امیر الحاج وائي په مبحث کې د تراویح چې که یو سړي شل رکعته تراویح په یوه سلام په اخیر کې وکړي په دې کې خو اختلاف د مشائخوؒ سته. لکن صحیح داده چې دا شل سره رکعته په ځای کې د دوو رکعتو د تراویحو دریږي که څه هم شل رکعته نفل خو ګڼل کیږي لکن په ځای کې د دوو رکعتو د تراویح دریږي یعني ۱۸ رکعته به نور کوي نو هله تراویح پوره کیږي او دغه رنګه که سړي ۴ رکعته تراویح وکړي او په مابین کې ناسته ونه کړي پر دوه رکعته حسابیږي. نو پوښتنه دا داده چې دا قول د مصنفؒ: وَاذا صَلّى نافلةً آه، د قول د ابن امیر حاج مخالف نه ده **جواب** امام طحاویؒ وائي چې منافات نه سره لري. ولې چې تراویح پر هیئت مخصوصه راغلي دي یعني دوه دوه رکعته. نو بیله خپله هیئته په بل هیئت سره نه اداکیږي.

**مسئله**: که سړي په نفلي څلور رکعتي لمانځه کې پر دریم رکعت کېنیستې اختلاف دی په صحت کې او خلاصه والا وائي چې لمونځ یې فاسد شو. م» ولې چې مشروع ناسته خو پر دوهم رکعت وه هغه ده پرېښوله. او پر دریم رکعت ناسته خو بې ځایه ده»





نو پر دغه سړي قضاء د دوو رکعتو لازمه ده فقط، ولې چې اول شفعه ده شروع خو صحیح ستوله. لکن په ترک د قعودې ده فاسده کړه نو قضاء یې لازمه ده. او د دوهمې شفع قضاء پرې نسته لانه بناء على الفاسد» ط قال المصنفؒ:

## وَكُرِهَ الزِّيَادَةُ عَلَىٰ اَرْبَعٍ بِتَسْلِيمَةٍ وَاحِدَةٍ فِى النَّهَارِ وَعَلَىٰ ثَمَانٍ لَيْلًا:

او مکروه دي زیاتوالی پر څلورو رکعتو په یوه سلام په ورځ کې، او پر اتو رکعتو زیاتوب په شپه کې. دلیل یې دادی چې عليه السلام والصلوٰة زیات تر دغو رکعتو په شپه او ورځ کې نه دي کړي نو که مکروه نه وای علیه السلام به د یاره د بیان د جواز یو وخت زیاتوب کړي وای. وهذا اختيار اكثر مشائخ المذهب» او په معراج کې وائي چې صحیح داده چې کراهت نسته لما فيه من وصل العبادة بالعبادة» او امام سرخسيؒ یې هم مکروه نه بولي په دې دلیل چې په صحیح بخاري کې په روایت د عائشه رضی الله تعالی عنها راغلي دي چې عليه الصلوٰة والسلام دیارلس رکعته لمونځ د شپې کاوه. یعني چې لس رکعته بې وکړه کښېنستې به او بیا به دري رکعته وکړه. نو هغه لس رکعت خو نفل دی او دري رکعته یې وتر دی ط وائي چې په دغه حدیث د سرخسيؒ مدعی نه ثابتیږي. ولې چې په دې حدیث کې صراحتًا راغلي چې لس رکعته یې په یوه سلام کول: قال المصنفؒ:

## وَالْاَفْضَلُ فِيْهِمَا رُبَاعٌ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَؒ

او افضل د نفلو په شپه او ورځ کې څلور رکعته دي په نیز د امام اعظم ابوحنیفهؒ. ولې چې په حدیث کې چې روایت یې عائشه رضی الله تعالی عنها کړي دی او په بخاري وغیره کې موجود دی. داسې راغلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د شپې څلور رکعته لمونځ کاوه چې ته پوښتنه د ښه والی او اوږد والی مه کوه یعني په ډیر ښه طریقه او ډیر اوږده رکعتونه به سبب د طول قرائت کول ثُمَّ يُصَلِّى اَرْبَعًا فَلَا تَسْئَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ» دا خود شپې د څلورو رکعتو فضیلت وو. او د ورځې په باره کې د څلورو رکعتو د فضیلت دلیل دادی» چې عليه الصلوٰة

والسلام د ثابت لمونځ کاوه څلور رکعته چې په مابين کې بې سلام نه ګرځاوه. او دوام ثابته ده چې عليه الصلوٰة وَالسَّلام د څابت پر لمانځه مواظبت کړې دی»

**فائده:** مراد د مواظبت دلته دوام نه دی ولې عمل دائم د عليه الصلوٰة والسلام خو سنت مؤکد بلل کيږی. نو بايد چې صلوٰة الضحیٰ په سنن مؤکده وو شميرل سوې وای بلکه مراد کول د څابت د لمانځه دی په اکثرو اوقاتو کې. **دفع توهم** پوه سه چې عليه الصلوٰة والسلام د څابت لمونځ په کور کې کاوه. نو دا مواظبت د هغه حديث سره منافی نه دی چې راوی وای چې ما د څابت لمونځ د عليه الصلوٰة وَالسلام صرف او صرف په کال کې د فتح د مکې مکرمې وليدی او بيا مې نه دی ليدلی»، فتدبر» قَالَ المُصنفُ

## وَعِندَهُمَا الاَفضَلُ فِی اللَّيلِ مَثنیٰ مَثنیٰ وَبِهِ يُفتیٰ

او افضله په نيز د يارانو په شپه کې دوه دوه رکعته دي. او په دغه سره فتویٰ ورکړه کيږي حاصل دا چې يارانٌ دَوَرُځی په نفلو کې چې څلور رکعته افضل دی د امام اعظمؒ سره موافق دی د يارانو دليل دا دی، چې په حديث شريف کې راغلی دی صلوٰة مثنیٰ مثنیٰ» او د دی حديث جواب محقق ابن الهمام په فتح القدير کې داسی ورکړی دی. چې د حديث شريف معنیٰ دا هم کيدای سی چې دوه رکعته د شپې په نفلو کې افضل دی نسبت وَ څلورو ته لکه مدعیٰ د يارانو چې ده. او دا هم کيدای سی چې په حق کې د اباحت دوه بيدي ترپيوه رکعت، ولې چې يو رکعت لمونځ اباحت نه لري، واذا الاحتمال بَطَل الاستِدلالُ، نو ترجيح ديوه احتمال پر بل باندی مرجح غواړی. او د عليه الصلوٰة والسلام څلور رکعت په يوه سلام ثابت دی كما مَرَّ من حديث عائشة رضـ او بعض فقهاءُ وائي چې مراد د مثنیٰ څخه په حديث کې دا دی چې صلوٰة الليل شفعة شفعة دی يعنی مقابل د تاك»

او څلور خو هم شفع دی. او ابن همام وائي چې مونږ ترجيح په جانب کې د څلورو ورکوو، ولې چې په څلورو کې مشقت پر سړي ډير دی. ولې په خدمت کې د عبادت دی ډيره زمانه پاتيږی وقد ورد فی الحديث النبوی: انما اجرك بقدر نصبك» نه دی ستا ثواب مګر په قدر د تكلف





ستا، د دی خبری دليل دا دی. چې په فقه شريفه کې وائی چې که يو سړي پر ځان نذر کړه چې زه به څلور رکعت لمونځ په يوه سلام کوم، نو په دوه رکعت کولو سره به د نذر غاړي نه خلاصيږی. او که سړي نذر کړه چې زه به څلور رکعته لمونځ په دوه سلامه کوم. نو بايده څلور رکعته په يوه سلام وکړه د نذر غاړی خلاصی سوی. نو بيا ابن همامؒ وائی چې نو مونږ د دی سببه حکم کوو چې مراد د مثنیٰ څخه مقابل د تاك دی يعنی يو رکعت بيا دري رکعته. وهذا او د کمال الدينؒ سره موافق دی د ده شاګرد علامه قاسمؒ فافهم. قَالَ المصنفُ

## وَصَلوٰةُ اللَّيلِ اَفضَلُ مِن صَلوٰةِ النَّهَارِ

او د شپې نفل افضل د ي ترنفلو د وَرُځی. ولې د شپې لمونځ خصوصًا په دريمه حصه کې او په دغه خوب ډير سخت دی پر نفس» او د ريا څخه ابعد دي. او خصوصی منا جات دی د خدای پاك سره، او حواس ډير سليم وي. خدای جل سلطانه په بيان کې د دغو لمونځ کوونکو وائي. تَجَافىٰ جُنُوبُهُم عَنِ المَضَاجِعِ» الآية وقال الشاعر

*بقدر الكد تكتسب المعالي ؛ ومن طلب العلى سهر الليالي ؛ تروم العز ثم تنام ليلًا ؛ يغوص البحر من طلب اللآلی ؛*

قَالَ المصنف

## وَطُولُ القِيَامِ اَحَبُّ مِن كَثرَةِ السُّجُودِ

او اوږد ولاړه په لمانځه کې په سبب د طول القرائت محبوب دی و خدای جل شانهٗ ته تر ډيرو سجدو يعنی په سبب د سپک قرائت او ډير رکعتو. يعنی که د شپې وی او که د وَرُځی لقوله عليه الصلوٰة وَالسلام: اَفضَلُ الصلوٰة طُولُ القنوتِ، ای القيام» او بل دليل دا دی چې په طول القيام سره قرائت القرآن ډيريږی. او په ډير والی د رکوع او سجود تسبيحات ډيريږی او شك نسته چې قرائت القرآن افضل دی تر تسبيح وَيلوه مصنفؒ په مراقی کې وائی چې په مجتبیٰ کې د امام محمدؒ څخه روايت دی چې كثرة السجود افضل دی. ولې چې عليه الصلوٰة والسلام ويوه سائل ته وو ويله. عَلَيكَ بِكَثرَةِ السُّجُودِ: تر ځان لازم وګرځوه ډير والی د سجدو، او په بل صحيح حديث کې راغلی دی چې يو سړي د عليه الصلوٰة وَالسَّلام څخه سوال وکړی چې زه ستا مرافقت او ملګرتيا په جنت کې غواړم: عليه الصلوٰة وَ السَّلام

ورته وَوَئیله یا بل شئ یعنی د بل شئ سوال وکړه سائل ورته وَوَئیله : هُوَ ذَاكَ ، یعنی
زما سئوال هم دا غږدی. نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وَوَئیله : اَعِنّی عَلٰی نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ
السُّجُود : یعنی زما سره ته کمک وکړه په تحصیل کی د دی مسئول ستا په ډیر والی سره د
سجدو ؛ قوله علیه الصلوٰة والسلام : اَقْرَبُ مَا یَکُوْنُ الْعَبْدُ مِنْ رَّبِّهٖ وَهُوَ سَاجِدٌ و
او بل دا چی په سجده کی غایة خضوع او تذلل دی. او امام احمد په دی مسئله کی توقف
کړی دی. لتعارض الادلة ، او امام مالك دواړه سره برابر بولی. لتساوی الدلیلین»
درویش وائی : که سړی د شپی ولمانځه ته تعیین د رکعتو کړی وی مثلاً چی زه به د شپی
۸ رکعته لمونځ کوم نو طول القیام افضل دی. او کی تعیین د زمانی کړی وی مثلاً چی زه
به یو ساعت نفلونه کوم نو هغه د پاره کثرة السجود افضل دی» وَاللّٰهُ اعلم بالصّواب
درویش مُحَمَّد عبیدُ الله ، ایوبی ، قندهاری ، سلیمانخیل ، سنی ، حنیفی ، نقشبندی
وائی چی د دی فصل په مناسبت هغه ابیات چی عارف بالله خواجه عبد الله انصاری
رحمة الله علیه : چی د افغانستان د هرات په ښار کی په مزار یی انوار دی وَئیلی دی ډیر موزون
او مناسب دی ، تا چی اهل الله وَ خلکو ته معلوم سی. او په دی خلک پوه سی چی مقصد اصلی
د علم نځ عمل دی نه مجرد قال وقیل» هغه د معنی او اسرار و ډك بیتونه دادی.

حبذا قومی که داد بندگی را داده اند ؛ ترک دنیا گفته اند واز همه ازاده اند
روزها با روزها در گوشه ها بنشسته اند ؛ باز شبها در قیام بندگی استاده اند
نفس خود را قهر کرده روح خود را پرفتوح ؛ زاد تقوی برگرفته بهر مرگ اماده اند
طرفة العینی نبوده غافل از حضرت ولی ؛ سیلها این همه از دیده ها بکشاده اند
یکزمان از نوحه همچون نوح فارغ نیستند ؛ همچو یحیی گوئیا از بهر زاری زاده اند
زآب ناب تب الی الله غسل کرده آن کسان ؛ روی خود بر خاک پای اسجدوا بنهاده اند
ربّنا گوئیدا زان لبیک عبدی بشنوند ؛ جمله سرمست الست از جرعه این باده اند
راحتی دیدند وذوقی یافتند از انس وجان ؛ روز وشب در کنج خلوت بر سر سجاده اند
تا بدنیا آمدند از کلبهٔ کتم عدم ؛ سوی حضرت جز نیاز و نا زنفرستاده اند





پیر انصاری تو میدانی که ایشان کیستند ؛ فقر بی کروفر زمرهٔ دل ساده اند

درویش باگناه بحضرت بی همتا خود چنین عرض مینماید گر قبول افتد زهی عز و شرف ؛

الهی یا الهی یا الهی ؛ ندارم جز امیدت تکیه گاهی
ز کن موجود کردی جمله عالم ؛ مرا از ذنب خود کن عذر خواهی
ندارم طاعت مقبول درگاه ؛ بجز اشک ندامت آه آهی
ندارم توشهٔ راه قیامت ؛ بجز شرمندگی و روسیاهی
شفیع آورده ام روی محمد ؛ مرا از ذنب خود کن عذر خواهی
بحق حرمت فرقان اعظم ؛ کرم کن بر من گم کرده راهی
اگر دورم مراز دیک دانی ؛ فراموشی مکن ای مهربانی
عبید را خاتمه بالخیر گردان ؛ بروی چار یار آن مصطفائی

او دا هم وایم

احب الصالحین ولست منهم ؛ لعل الله یرزقنی صلاحًا
تا نگرید ابر کی خندد چمن ؛ تا نگرید طفل کی جوشد لبن
هر کجا آب روان سبزه شود ؛ هر کجا اشک روان رحمت شود
نقصان رقابل است وگرنه علی الدوام ؛ فیض سحاب وتش همه کس برابر است
صبا مدینے میں مصطفیٰ سے ہم غریبوں کا سلام کہنا ؛ نہیں ہے کوئی بجز تمہارا میرا آشنا پیام کہنا

اللهم اختم لنا بالخیر والسعادة والبشارة من الایمان.

کتاب ــــــــــ پښتو نور الایضاح جلد دوم
مصنف ــــــــــ الحاج ابو الفضل ایوبی قندهاری مدظله العالی
کتابت ــــــــــ ادنیٰ خوشه چین فضل الحق حقانی القاری
ناشر ــــــــــ مکتبة القراءة والتجوید کانسی روڈ کوئٹہ

## فصل فِی تَحِیَّةِ المَسۡجِدِ وَصَلٰوةِ الضُّحٰی وَاِحۡیَاءِ اللَّیۡلِ

فصل دی په بیان کی د تحیة دمسجد لیعنی تحیة رب المسجد ولی تحیه خو صاحب دمکان لری نه وه مکان ته" ملا علی قاری وائی ځوك چی داخل سی و مسجد حرام ته لا یشتغل بالتحیة ای بصلاة التحیة" ولی تحیه د مسجد حرام طواف دی. چی پر چا طواف لازم وی لکه معتمر یا چی د طواف زیارت د پاره راسی. او یا داغسی راسی لکن د طواف اراده لري. نو طواف دی وکړي دغه به تحیه ده. او که چا اراده د طواف نه درلوده یا خو به اراده وه لکن یو گړی کښېنستی. نو هغه سړي دی نه کښېنی ترڅو چی د تحیة المسجد لمونځ نه وی کړي. او بل دغا بنت لمونځ او بل شپه رونړول په عبادت سره. قال المصنف

## سَنَّ تَحِیَّةَ المَسۡجِدِ بِرَکۡعَتَیۡنِ قَبۡلَ الۡجُلُوۡسِ

سنت گرځول سوی دی پیښ کښ د مسجد په دوه رکعته سره د مخه تر ناستی. لکن که ئی د دخول په وخت مکروه کی نه وي. لقوله علیه الصلوة و السلام: که یو ستاسی داخل سو و مسجد ته نو تر هغو پوري دی نه کښېنی چی دوه رکعته لمونځ به نه وی کړي. درویش وائی که څه هم څلور رکعته هم روادی په تحیة المسجد کی لکن افضل دوه رکعته دی لاجل الحدیث القولی والفعلی" کذا قال القهستانی"

**مسئله**: که سړي مسجد ته ورغلی وروسته د سحار د لمانځه یا وروسته د ماز دیگر تر لمانځه چی نفل نه دی روا. نو سُبحَانَ الله، لَا اِلٰهَ اِلَّا الله، او درود پر نبی علیه الصلوة و السلام و وائی: چی په دې سره حق د مسجد پوره کیږی "تمرتاشی" **مسئله** که سړي مسجد ته ورغلی او اوس به نه درلودی نو داځاوِ کلمی دی څلور واره ووائی. سُبحَانَ اللهِ وَالحَمدُ لِلّٰه، وَلَا اِلٰهَ اِلَّا الله، وَاللهُ اَکبَر" در، عن ض عن ق"

**پوښتنه**: چی قبل الجلوس صرف د بیان دا ولی دئ. ور نه بعد الجلوس هم تحیة المسجد نه ساقطیږی" امام طحطاوی وائی چی دا قول د عامه وو دی وَهُوَالصحیح او بعض فقهاء وائی چی یو وار دی سړی کښېنی او بیا دی تحیة المسجد ادا کړي. درویش وائی





چی دا حکم د صریح حدیث مذکور سره منافی دی. قَالَ المُصنف

## وَاَدَاءُ الۡفَرۡضِ یَنُوۡبُ عَنۡهَا وَکُلُّ صَلٰوةٍ اَدَاهَا عِنۡدَ الدُّخُوۡلِ بِلَا نِیَّةِ التَّحِیَّةِ

او اداء کول د فرضی لمانځه هم به ځای کی د تحیة المسجد دریږی او دغه رنگه په ځای کی د تحیة المسجد دریږی هر لمونځ چی اداء یې کړي په وخت کی د دخول المسجد بیله نیت د تحیة المسجد" ولی چی مقصود د تحیة څخه احترام او تعظیم د مسجد دی هغه په دغه سره پر ځای سُو. **مسئله** که څوك مسجد ته ورځلی نوبه دوه ځی یوه تحیه کافی ده" حموی د اشباه څخه نقل کوی چی هره پیلا تحیة المسجد کول حرج دی. او بعض علماء وائی چی د هر دخول دپاره جلا جلا تحیه غواړی. قیاسًا علی تحیة الانسان بالسلام فانه کلما هیئه سلمه وان کرر الملاقات بینهما کذا فی السراج والفتوی علی الاول خصوصًا فی الطلباء والعلماء"

**مسئله**: مندوب ده چی په وخت کی د دخول د مسجد دی داسی و وائی: اَللّٰهُمَّ افتح لی اَبوابَ رَحمَتِكَ" او په وخت کی د وتلو د مسجد څخه دی دعا کوی. اللّٰهُمَّ انی اسئلك مِن فَضلك لامر النبی صلی الله علیه وسلم بذالك" م قَالَ المُصنف:

## وَنُدِبَ رَکۡعَتَانِ بَعۡدَ الۡوُضُوۡءِ قَبۡلَ الۡجَفَافِ

او مستحب دی دوه رکعته نفل پسله اودا سه د مخه تر وچ والي. دا ندامو. قَالَ عَلَیهِ الصلوة وَالسلام: مَا مِن مُسلِمٍ یَتَوَضَّأُ فَیُحسِنُ وُضُوئَهُ ثُمَّ یَقُومُ وَیُصلی رکعتین یقبل عَلَیهِمَا بقلبه اَلَّا وَجَبَت له الجنة" رواه مسلم نسته داسی مسلمان چی اودس تازه کی او ښه پوره اودس تازه کړي او بیا ودریږی. او دوه رکعته نفل وکړی چی زړه یې متوجه وه هغه لمانځه نه وی مگر واجب دی ده لره جنت" او د سید نا ابو هریره رض څخه روایت دئ چی علیه الصلوة وَالسلام و بلال رض ته وَوَیل ای بلاله ته ما ته بیان که هغه ډېر ښه عمل چی تا په اسلام کی کړي دی" ولی چی ما اوریدلی تر اوږ د چو تهو ستا زما د مخه په جنت کی لیعنی په عالم خوب کی" بلال رض ور ته وَوَیل

چې ترڅو عمل چېرې امید زما په عقیده مانه دی کړی بیله دی چې زه دوزخی او دَ شپې ننیم بې او د سه سوی مګرما اودس تازه کړی دئ. او ما په هیڅ وخت کې دَوَزَخې یا دَشپې اودس نه دی تازه کړی مګر نه ما په هغه اودا سه سره نفل کړی هغه ما ته نوشته سوی وَه. یعنی په تقدیر الهی کې قال صلی الله علیه وَ سَلم هُوَذَاكَ ،، هم دا غه ارجی عمل دی رواه البخاري

**مسئله:** په شرح کی دمشکوٰة په کتاب الطهارة کې وائی که سړی ورسته تر اودا سه متصل پر فرضی لمانځه ودریدی ثواب د تحیة الوضوء ورته حاصل سو کما مر چې د تحیة المسجد ثواب په فرضی لمانځه سره هم حاصلیږي. قَـالَ المُصنفُ:

**وَاَرْبَعٌ فَصَاعِدًا فِى الضُّحٰى** الراجح من الروايَة ،، اودغه رنګه مندوب دی د څابنت لمونځ علی او بعض علماء وائی چې جائزی غیر مندوب دی: او هغه څلور رکعته یا با لاتر څلور په وخت کی د ضُحیٰ. په دلیل د هغه حَدیث چې عائشه رضی الله تعالیٰ عَنها یه روایت کوی. او دا وائی چې عَلیه الصلوٰة والسلام دَڅابنت لمونځ کاوَه څلور رکعته او ګاهی بې زیا تَوَل مَاشَاءَ ،، نو د دی وجی څخه مونږ صلوٰة الضحیٰ مندوب وَبا له. او امَام حاکم په خپل کتاب کې چې مستدرک په نوم دی. داسی وَاېئ ما صُحبت کړی دی د ډیرو امامانو سره د حَدیثو چې هغه هم حفاظ او هم محکم خلګ وه په حَدیثو کې نو ویٔ د څابنت لمونځ څلور رکعته خوښاوه لتواتر الاخبار الصحیحة فیها. او بعض مفسرینؒ د دی آیت تفسیر: وَاِبْرَاهِيْمَ الَّذِیْ وَفّٰی ،، د علیه الصلوٰة والسلام څخه داسی نقل کړی دی. چی علیه الصلوٰة وَالسلام وویل یعنی وصحابه ؓ وو ته: اَتَدْرُوْنَ مَا وَفّٰی ،، آیا تاسی پوهیږی چې څه مراد دی دَ الذی وَفّٰی. وَفِی عمل یومه باربع رکعات الضحیٰ ،،

**پوه سه:** چې څه وخت چې لمر دوئ نیزې راپورته سی یعنی وخت د کراهة الصلوٰة تیر سی دوه رکعته نفل سنت چې صَلوٰة الاشراق یه بُولي: او بیا چې بیته لمر راپورته سی چې په پښتو یې څابنت بولي. او تقریبًا لمر د مشرق د خوا څلرمی حصی ته داسمان راورسیږی. هغه وخت د صلوٰة الضحیٰ دیٔ.





**فائدة مُجَرَّبَة عِندَ اهلِ الله:** پوه سه: چې اهل تجربه داولياء الله الكرام رح وائی چې صَلوٰة الضحیٰ علاوه تر ثواب اخروی د فراخی د رزق دپاره هم تیر بهدف دی. لکن دوی د هغه دپاره دا ترتیب ښا ئلی دی. په اول رکعت کې ورسته تر الحمد لله، سورة وَالشمسِ وَضُحٰهَا الخ او په دوهم رکعت کې متصل سورة په هغه پوری یعنی وَ اللّیلِ اِذَا یَغْشٰی آه. او په دریم رکعت کې ورسره جوت سورة والضحیٰ آه او په څلورم رکعت کې د هغه مُتصل اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ ،،

**اختلاف:** بعض علماء وائی چې مداومت یعنی همیشه توب پر صَلوٰة الضحیٰ بدعت دی دا فرقه داسی ډېر عبادات مشهوره، قَولیه، عملیه، مَالیه، ورته بدعت وائی. او باید د دی خلکو قول ته غوږ ونه نیسی بلکه خپل د مذهب حنیفی د فقهاء کرامو خبره عملی کړي. او د هغو مذهب دا دی چې مداومت یعنی همیشه توب په مندوب دیٔ.

ولی چې په حدیث صحیح کی راغلی دي. اَحَبُ الاَعْمَالِ اِلَی اللهِ مَا دَاوَمَ عَلَیْهِ صَاحِبهُ وَاِنْ قَلَّ ،، یعنی خوښه عمل و خدای جل سلطانهٗ ته هغه عمل دی چې دوام وکړی صاحب د عمل پر هغه که څه هم لږ وي. **قَوْلُه فَصَاعِدًا الخ پوه سه،** چې زیا توب تر څلورو رکعتو تر ۱۲ پوری مروی دیٔ. امام طبرانی رح د ابی الدرداءؓ څخه داسی روایت کړی دیٔ چې علیه الصلوٰة والسلام وو ئیل که چا د څابنت لمونځ دوه رکعته وکړی. دی به په غافلانو کی نه نوشته کیږی. او کی څلور رکعته وکړه په عابدینو کی به نوشته سی. او که شپږ رکعته وکړی د هغه ورځ یه کافی دَه، او کی اته رکعته وکړه خدائ به ئې په قانتینو کی نوشته کړي. او کی دوولس رکعته وکړه خدای جل شانه به ورته یو کور په جنت کی جوړ کړي. م وفی الدر عن المنیة: اقل مَرتبهٔ صَلوٰة الضحیٰ ۲ رکعته دی. او اکثر یه ۱۲ رکعته دی. او اوسط یه ۸ رکعته دی وهوافضلها کما فی الذخائر الاشرفیة، او درویش وائی چې زما په نیز یه افضل مرتبه ۴ رکعته دی. ولی څلور رکعته هم په حَدیث فعلی دَعلیه الصلوٰة والسلام ثابت دی کما فی حَدیث عائشة رض. او هم په حَدیث قولي دعلیه الصلوٰة

والسلام كما في حديث الطبراني". او بل داهل الله اولياء الله اتفاق هم پر څلور ركعته دي كما مر عنقريب» قَالَ المُصنفُ:

## وَنُدِبَ صَلٰوةُ اللَّيلِ

او مندوب دي دَشپې لمونځ. په مَراقي كې وَائي چې كم مرتبه د صلوٰة الليل چې تهجد يې بولي اته ركعته دي كما في الجوهرة» **فَائِدَهْ**: فضائل د صلوٰة الليل بيخي ډيري آنحضرت صلى الله عليه وسلم په يو جامع حديث كې وَائي: عَلَيْكُمْ بِصَلٰوةِ اللَّيْلِ» تاسي پر ځان لازم وګرځوئ دَشپې لمونځ. فَاِنَّهُ مِنْ دَأْبِ الصَّالِحِيْنَ قَبْلَكُمْ» ولې صَلٰوة الليل عادَت وو د صالح بنده ګانو د خداى تر تاسي د مخه، يعنې په نورو اديانو كې. وَقُرْبَةٌ اِلٰى رَبِّكُمْ او صلوٰة الليل تاسي نږدي كوي وخداى جل شانه ته» وَمَكْفَرَةٌ لِلسَّيِّئَاتِ» او صلوٰة الليل رَژوونكې دي دګناهو ستاسو. وَمِنْهَاتٌ عَنِ الْاِثْمِ او منع كوونكې دي ستاسو ګناهو څخه. قَالَ اللهُ تَعَالٰى: قُمِ اللَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا» په تفسير كې د ابن عباس رض راغلي دي په تفسير د ايت مذكوره قُمِ اللَّيْلَ كُلَّهٗ اِلَّا قَلِيْلًا. نو په دي ايت عمل كول ګران سوه پر عليه الصلوٰة والسلام او پر صحابو رضي الله تعالى عنهم باندي. ولې دوى ته اندازه او مقدار دقليل نه معلوميدى. نو دوى به احتياطًا ټوله شپه په لمانځه تيره كړه. نو خداى جل شانه بيا دا ايت نازل كړى» نِصْفَهٗ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا. اَوْزِدْ عَلَيْهِ» يعنې نيمې دَشپې تهجد كوه او يا تر هغه كم يعنې تر ثلث پورې. او يا زيات تر نصف يعنې تر ثلثين پورې دشپې او د امر الهي هم پر عليه الصلوٰة والسلام او پر اصحابو رض مشقت وو. ولې چې اندازه د نصف الليل يا ثلث الليل او يا دوى برخې د شپې هم دوى ته نه معلوميدى چې په هغه عصر كې ساعتونه نه وه چې په هغو سره دا مقادير ثلثه پيژندلې واى. نو بيا هم د احتياط د سببه ټوله شپه بې لمانځه كې تيره كړه حتى چې د ډيرې ولاړې څخه پښې و پړسيدلې، نو رب جل وعلا د هغه ناسخ نازل كړ وقال» عَلِمَ اَنْ لَنْ تُحْصُوْهُ: خداى علم لري چې تاسي طاقت د ضبط د نصف الليل او ثلث الليل او ثلثي الليل نه لري. فَتَابَ عَلَيْكُمْ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ» نو رجوع وكړه خداى دقبلي مقاديرو څخه نو او س تاسي





لمونځ كوئ په شپه كې چې تاسي ته آسان وي: وَلَوْ قَدْرَ حَلَبِ شَاةٍ» تر دي وخته پورې خو صلوٰة الليل واجب وُو. او بيا نَسله يو كاله په وجوب منسوخ سُو په پنځو لمونځو سره د فرضو نو تر ما بين دواجب او تخفيف يو كال تير سُو. او په ما بين كې وجوب او نسخ د ٥ ساله تير، كذا في العيني شرح البخاري لبدر الدين العيني الحنيفي رح» ط»

قَالَ المصنفُ

## وَنُدِبَ صَلٰوةُ الْاِسْتِخَارَةِ

او مستحب دي لمونځ د استخارې **پوښته**: چې معنا د استخارې طلب د خير دى د خداى جَل جلاله څخه او استخاره د پاره د راتلونكى كار پكار ده، چې خداى وسره په دغه كار كې چې سړى اراده ورته كړېده د خير جانب ور ته معلوم كي.

**فَائِدَهْ**: د صلوٰة الاستخارة بيان په حديث كې د جابر رض په دغو الفاظو راغلى دى: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُعَلِّمُنَا الْاِسْتِخَارَةَ فِي الْاُمُوْرِ كُلِّهَا كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْاٰنِ» ترجمه وو عليه الصلوٰة والسلام پر دى قول چې مونږ ته يې راښووله: طريقه د استخارې په ټولو كارو كې لكه چې مونږ ته به ئې يو سورة د قرآن راښووى يعنې په ښه تحقيق او مكرر ښوونه سره.

**پُوښتَنَه**: چې په بل صحيح حديث كې داسې راغلى دى. قَالَ عَلَيْهِ الصلوٰة والسلام مِنْ سَعَادَةِ الْمَرْءِ اَىِ ابْنِ اٰدَمَ اِسْتِخَارَةُ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ يعنې د نيك بختې څخه د ابن آدم داده چې طلب د خير د خداى څخه كوي. قَالَ جابر رض يقول يعنې رسول الله صلى الله عليه وسلم: اِذَا هَمَّ اَحَدُكُمْ بِالْاَمْرِ چې قصد وكي يو ستاسي ديو كار **پُوښتَنَه**: چې د كار څخه مراد كار د مستقبل دى چې دَخير او شر دَواړو احتماله پكښې وي. او سړى په خير او شر نه پوهيږى يعنې يو مبهم كار وي. نو په دودي خوړلو يا په اوبو څښلو او په نورو عادي كارو كې د استخارې كولو ضرورت نشته» فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيْضَةِ» نو دى دوه ركعت لمونځ وكي ماسوا د فرضي لمانځه څخه. يعنې صرف نفل دي وكړي. علماء وائي چې په اول ركعت كې دي الكافرون سورت ووائي او په دوهم ركعت كې دي سورة الاخلاص ووائي. او بعض فقهاء وائي چې په اول ركعت كې دا قول دخداى ووائي. وَرَبُّكَ يَخْلُقُ.

مَا يَشَآءُ وَ يَخْتَارُ تر يُعْلِنُوْنَ پورې. او په دوهم رکعت کې دا قرآني ايتونه ووائي: وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ» تر مُبِيْنًا پورې: **بنـهـانه او اسانه فـائـده:** که يو سړي ته صلوٰة الاستخارة او د استخارې دعا تکليف وه. نو په ترمذي کې په اسناد ضعيف سره د ابوبکر الصديق رضي الله تعالیٰ عنه څخه روايت دی. اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اذا اراد امرًا قال اللّٰهم خِرلي واخترلي» د جابرؓ د حديث وخواته ځو:

## اِسْتِخَارَه

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ اى خدايه زه ستا څخه طلب د خير کوم يعني په دې کار کې چې زما ورته اراده ده، په سبب د علم ستا» يعني په سبب د دې چې ته په خير او شر خبر يه» وَ اَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ، زه طلب د قدرت د تا څخه کوم په سبب د دې چې ته قادر يه پر شئ. وَاَسْئَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ: او زه ستا څخه سوال کوم د بعض فضل عظيم ستا. کلمه د مِنْ د تبعيض د پاره ده، ط، فَاِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا اَقْدِرُ وَ تَعْلَمُ وَلَا اَعْلَمُ وَاَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ، ولې چې ته قادر يه او زه نه يم قادر. او ته خبر يه او زه نه يم خبر او ته په ټولو غيبو خبر يه (او امورو) اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ خَيْرٌ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ، اى خدايه که ته خبر يه چې دغه کار يعني چې ما يې اراده کړې ده خير دی ما لره په دين کې او په ژوندکې او په اخير کار کې:

**فـائـدة:** دعا کوونکی دې په عوض کې د لفظ د هٰذَا الْاَمْرَ» هغه خپل کار ذکر کړي چې ده اراده ورته کړې وه. **پـوښـتـنـه،** اِنْ كُنْتَ آه چې کلمه د شك ده په علم کې د خدائ جل جلاله په خير والي او شر والي د دې کار څرنګه صحيح کيږي. **جـواب:** امام طحاوی وائي چې شک راجع دی وه داعي ته يعني چې داعي په دې کې شک دی چې دا کار په علم د خدائ کې ما ته خير دی او که شر دی او شک وه علام الغيوب ته نه دی راجع فافهم» او قال فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَاٰجِلِهٖ: کلمه د او د پاره د شک د راوي ده. فَاقْدُرْهُ لِيْ وَيَسِّرْهُ لِيْ ثُمَّ





بَارِكْ لِيْ فِيْهِ، پوښتنه: چې لفظ د اَقْدُرْهُ په ضمه د دال د باب نَصَرَ يَنْصُرُ دی او په کسره د دال د باب د ضَرَبَ يَضْرِبُ دی او معنا يې پر دواړو تقديرو دا ده چې دا کار ما ته آراسته کړي يعني ما ته قدرت راکړي پر هغه او ما لې آسانه کړي او بيا ما ته برکت په کښې راکړي وَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ وَقَالَ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَاٰجِلِهٖ» ترجمه د دې عبارت د هغه ما سبق په شان ده. فَاصْرِفْهُ عَنِّيْ وَاصْرِفْنِيْ عَنْهُ وَاقْدُرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ رَضِّنِيْ بِهٖ» ترجمه: نو بيا زما مخ واړوي د هغه کاره څخه او هغه کار زما څخه لرې کړي. او ما ته آراسته او آسانه کړي خير هر چيرې چې وي او ما په هغه راضي وګرځوي. ثُمَّ يُسَمِّيْ حَاجَتَهٗ: او بيا دې حاجت بيان کړي يعني په ځاي د هٰذَا الْاَمْر کما سبق. قوله صحاح ستته وو د دې حديث روايت کړي دی مګر مسلمه وفي المراقي» بنده کار دا دی چې دا دواړه روايته دې سره جمع کړي يعني دا سې دې ووائي: وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ وَعَاجِلِهٖ وَاٰجِلِهٖ» وقال ط چې مستحب دا ده چې د مخه تر دعا دې درود ووائي.

**مسـئـلـه:** استخاره په هغه کارو کې مندوب ده چې بنده يې په خير او شر نه پوهيږي لکه نکاح ديوې ښځې سره يا سفر تجارت و يو خواته. او نور د دې قسمه څخه کارونه، او هر چې هغه کارونه دي چې خير والی ئې په شريعت کې معلوم وي لکه عبادت، او يا يې شر والی معلوم وي لکه معاصي نو هغه و استخارې ته حاجت نه لري. نو ځکه په فارسي ژبه کې وائي: در کار خير حاجت استخاره نيست،، نَعَم: استخاره په بعض امورو کې د خير لکه حج يا جهاد، د پاره د تعين د وخت کولای سي.

**فـائـده،** استخاره به تر اوو ورځو مکرره وي کما جاء في حديث انسؓ **فـائـده** په استخاره کې د خوب ليدل شرط نه دی. او که خوب هم ووينې تعبير دې د يوه عالم متقي څخه وپوښتي بلکه اصلي فائده د استخارې دا ده چې د سړي د زړه تردد دفع سي. يا په کولو کې د هغه کار او يا نه کولو کې. يعني په زړه کې مصمم او ټينګه اراده پيدا سي د کولو د هغه کار» او يا يه زړه کلک منکر سي د هغه کار څخه، او بيا يه پر زړه سره ورګرځي. او ځکه چې د خوب په تعبير نه پوهيږي تعبير د خوب دې نه کوي؛ وهـذا تمام البيان في الاستخارة»

قال المصنف **وَصَلٰوةُ الْحَاجَةِ** اود غه رنګه مندوب دی دحاجت لمونځ، او صلوٰة الحاجت دوه رکعته دي، او بعض والئ شلور رکعته دي او په حاوي کې یوه ډیره نادره خبري کړیده. چې وائي صلوٰة الحاجت دولس رکعته دی او بعض وائي څلور رکعته دی. او دا دولس چې وائي هغه هم په یوه سلام سره.

دروېش وائي چې اعتبار هغه مقدار لره دی چې د صحیح حدیث سره موافق وي. هغه حدیث دادی. په روایت د عبد الله بن ابي اوفیٰ رضي الله تعالیٰ عنه ده ویلی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیله: کهچا لره یو حاجت وي دخدای پاك په دربار کی" ویوه بنی آدمؑ لره. نو دی اودس تازه کړي او بنه اودس دی تازه کړي یعنی که څه هم روب اودس یې وي خو بیا هم دی اودس نوي کړي. او بیا دی دوه رکعته لمونځ وکړي یعنی نفل، او بیا دی حمد وثنا دخدائ ووائی. او بیا دی درود پر نبی علیه الصلوٰة والسلام ووائي یعنی هر درود چې وي او بیا دی ووائي لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِیْمُ الْکَرِیْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ، اَسْئَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ" زه ستا نه غواړم هغه شیان یعنی که اقوال وي او که اعمال وي چې اسباب د رحمت او احسان وي. وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ" او هغه شیان غواړم چې ستا دمغفرت د ګنهوقوي اسباب وي. وَالْغَنِیْمَةَ مِنْ کُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ کُلِّ اِثْمٍ، یعنی خیر مندا چې ماته غنیمت راکړي هر خیر او ساتنه له ټولو ګناه نه، لَاتَدَعْ لِیْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهٗ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهٗ، ماته مه پرېږده ګناه مګر او یې بخښه، او مه یو غم او پریشاني پرېږدی مګر هغه رالخه زایل کړي. وَلَا حَاجَةً لَكَ فِیْهَا رِضًا اِلَّا قَضَیْتَهَا یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ، وروسته تر هغه دعاء دي بیا خپل حاجت د خدای نه وغواړي که په دنیائي امورو کی وي او که داخروي امورو څخه وي. خدای پاك به حاجت د سره کړي، دروېش وائي: چې هر څو چې د سړي عقیده او اعتقاد پر قول د علیه الصلوٰة والسلام ټینګ وي. هغو نه ژر به ئې خدائ کامیاب کړي. او په مراقي کې په یوه بله مختصره [illegible] ناء حاجت د باره راوړیدې ده" او دا دعاء رسول کریم صلی الله علیه وسلم یو ړوند [illegible] ته چې پر سترګو ړوند وو. او وعلیه السلام ته راغی او ورته وی ویل چې یا رسول





الله صلی الله علیه وسلم ماته دعاء وکړه چې ما خدائ د ړوند والی نه صحت راکړي. نو علیه الصلوٰة والسلام وهغه ته وویله که ستا خوښه وي دا دعاء وځنډوم. په دې کې به خدائ تا ته لوی ثواب درکړي یعنی پر ړوند والی صبر وکه. او زما نه د دعاء مه غواړه. او که دی خوښه وي زه به دعا درته وکړم. هغه سړي ورته وویل چې ماته دعاء وکړه. نو علیه الصلوٰة والسلام هغه ړوند امر کی چې ورسره اودس تازه کړه او بنه اودس وکړه. او دوه رکعته لمونځ وکړه او بیا دغه دعاء وکړه. اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ وَاَتَوَجَّهُ اِلَیْكَ بِنَبِیِّكَ مُحَمَّدٍ نَبِیِّ الرَّحْمَةِ صلی الله علیه وسلم: یَا مُحَمَّدُ اِنِّیْ تَوَجَّهْتُ بِكَ اِلٰی رَبِّكَ فِیْ حَاجَتِیْ هٰذِهٖ لِتُقْضٰی لِیْ اَللّٰهُمَّ فَشَفِّعْهُ فِیَّ"

**یوه سـه**: چې امام طبراني د دی حدیث ډیری طریقې ذکر کړي دي. او په اخیر کې ویلی دی چې دا حدیث صحیح دئ **سـوال**، بعض علماء وائي چې داسي ویل مکروه دئ. اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ بِاَنْبِیَائِكَ" یعنی یا الله زه ستا نه خواست کوم په ربوی ستا د نبیانو **جـواب**، ابن امیر حاجؒ وائي چې په دی کی هیڅ حرج نشته. ولی چې عمرؓ عباسؓ و خدائ ته شفیع وګرځاوه په استسقاء کی. او دغه د له علماء چې اوس هم په جامعه کی دا سلام موجود دی چې داسی دعاء کول خو نهایت مکروه ده. چې اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ بِحَقِّ مُحَمَّدٍ صَلَّی اللّٰهُ علیه وسلم او بحق الانبیاء علیهم السلام او بحق الصلحاء والشهداء الی غیر ذالك. د دوی دلیل د کراهت دا وائي چې بنده لره پر خدائ حق نشته" **جـواب** هو انبیاء علیهم السلام او نورو مخلصانو بندګانو لره خو پر خدائ په استحقاق ذاتي حق نشته" لکن خدای جل سلطانهٗ خپلو نیکانو مخلصانو، بندګانو ته حق ورکړي دی پر خپل ځان فضلًا وکرمًا ولا عاشبة فیه" قال المصنفؒ:

**وَنُدِبَ اِحْیَاءُ لَیَالِی الْعَشْرِ الْاَخِیْرِ مِنْ رَمَضَانَ** او مستحب ده په روژه ولو نیرول د لسو اخیرو شپو د میاشتی د روژی یعنی په عبادت سره" که لمونځونه کوي، که تلاوت د قرآن کریم کوي، که تسبیح او تهلیل او تکبیر وائي. الی غیر ذالك من انواع العبادات"

**یوه سَله**: چې دا احیاء د پاره د طلب د لیلة القدر ده چې هغه شپه په دغو لسو شپو کې یوه شپه غیرمعلومه ده، او په نص د قرآن عبادت د هغې یوې شپې خیر دی تر عبادت د زرو میاشتو چې د لیلة القدر څخه خالي وي. د سید تنا عائشه رضی الله تعالیٰ عنه روایت دی چې نبي علیه الصلوٰة والسلام چې د غه لس شپې اخیرې به د روژې داخلې شوې أَحْيَا اللَّيْلَ، شپه بې تهوله په ویښه تیروله، اوکور والا بې هم راویښول یعنې د عبادت د پاره، وَشَدَّ الْمِئْزَرَ اولنګ بې ټینګ تړلو وو چې دا کنایه ده د اجتهاد في العبادة څخه، کذا في حواشي البخاري، په یوه روایت کې راغلي دي چې علیه الصلوٰة والسلام ذکر کړې یو سړی د بني اسرائیلو څخه سلاح د جنګ په في سبیل الله زر میاشتې وګرځوله نو مسلمانانو تعجب وکړې، یعنې د دی سړي ودې لوی عبادت ته نو خدای پاک سورة القدر نازل کړې. نو د دی معنا داده چې عبادت د لیلة القدر خیر دی تر زر میاشتې عبادت چې په هغو کې هغه اسرائیلي سلاح اخستی وه في سبیل الله،،

د روایت وائي اګرچه په دی کې اختلاف سته چې لیلة القدر په نورو اُمتو کې هم وه او که خاص د دی امت ده، لکن امام نواوي په شرح کې د مسلم وائي چې مشهور او صحیح داده چې لیلة القدر خاصه د امت محمدي صلی الله علیه وسلم او د غه نو موړی امام داهم وئیلي دی چې په اجماع د مجتهدینو د امت دا لیلة القدر به تر اخیر الزمان پورې به موجود وي. للاحادیث المشهورة، او دا شپه حقیقةً معلومیږي وه. مَنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰی، ته په هره میاشت کې د روژې کما تظاهرت علیه الاحادیث النبویة، **مسئله**: هغه سړي چې دا شپه صراحةً ووینی باید او مستحب داده چې پټه یې وساتي. اقتداءً بالنبي علیه الصلوٰة والسلام

**حکمت الهي** د دی شپې په پټ ساتلو کې حکمت د رب العزت دادی چې مسلمانان په طلب کې د دی شپې ډیرې شپې عبادت سره روڼې کړي. وهکذا الحکمة في اختفاء اسم الله الاعظم، وفي اختفاء الخضر. وروی احمد: مَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا، غفرله مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذنبه وَمَا تَأَخَّرَ وقال علیه الصلوٰة والسلام تحرّوا لیلة القدر في





العشر الاواخر من رمضان **اختلاف**: اکثر ائمه پردې دي چې دعوت او تاک نسته، او بعض علماء وائي چې په تا کو شپو کې ده. او ډیر ملایان پردې هم دي چې لیلة القدر د ۲۷ شپه ده وهو قول ابن عباس وهذا هو الشائع في الناس الیوم. او ډیو جماعت د صحابه وو هم دی، بلکه بدر الدین عیني وائي چې دا مذهب د یارانو هم دی، ط، او په مراقي کې وائي چې دا ابن مسعود مذهب دادی. چې لیلة القدر په کال کې یوه شپه ده، وهو قال الامام الاعظم في المشهور یعنې لیلة القدر په کال کې بدلیږي داسې چې یو کال په روژه کې وي او بل کال په بله میاشت کې وي. وهکذا قال قاضیخان.

لکن تحقیق دادی چې په مبسوط کې وائي چې د امام اعظم مذهب دادی چې لیلة القدر خو په روژه کې ده لکن ګاهي په یوه روژه کې د مخه شپه وي او په بله روژه کې بیا وروسته شپه وي، وهکذا قال في المتقدم والمؤخر او د یارانو مذهب دادی چې لیلة القدر تقدم او تأخر نه لري په تهوله عمر کې او په روژه کې دوی هم بولي. او د دی اختلاف نتیجه په دی مسئله کې ښکاره کیږي چې مثلاً لس شپې د روژې تیرې شوي وي. چې یو سړي و ماینې ته وویل چې ته پر ما په لیلة القدر کې طلاقه یې، نو د یارانو پر مذهب چونکه لیلة القدر معینه شپه ده او تغیر او تبدیل نسته پکښې نو په دغه موجوده رمضان کې خو دراک نه معلومیږي چې لیلة القدر په تیرو سوو لسو شپو کې وه او که په راتلونکو ۲۰ شلو شپو کې وي. نو پر دی سړي هلته ماینه طلاقیږي چې د بل کال د روژې لس شپې تیرې شي. تا چې بالیقین معلومه سي چې لیلة القدر خواه مخواه پیدا سوې ده. او د امام اعظم په نیزد اینځه نه طلاقیږي څو بل کال مکمل د روژې میاشت تیره سوې نه وي. په دی سبب چې لیلة القدر خو نقل کیږي. نو شاید په موجوده کال کې به لیلة القدر په هغو لسو شپو کې تیره سوې وي چې میړه په هغو کې طلاق نه وو ورکړې، نو هر وخت چې بله روژه مکمله تیره سي نو هلته لیلة القدر په یقین سره پیدا سوه نو هغه طلاق چې معلق په لیلة القدر پورې وو هغه هم واقع شو

**دعوو خرافات** دوی وائي چې لیلة القدر یو ګړی دی چې یو خواست په کښې قبلیږي فقط دا خبره د صریح قرآن څخه مخالفه ده ولې چې لیلة شپې ته وائي

اوشپه د لمرلویدو څخه شروع کیږی تر سپیدو پوری او په قرآن شریف کی هم داسی راغلی دی حَتّٰی مَطْلَعِ الْفَجْرِ حقیقت خو دادی چی عوام طلب د لیلة القدر د دنیاد پاره کوی لکن دا شپه په شریعت کی د عبادت د پاره ده یعنی چی د دی شپی عبادت تر زرو میاشتو عبادت خیر دی. البته د خواست یه هم په کښی قبلیږی" دُر" قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَاِحْيَاءُ لَيْلَتَيِ الْعِيْدَيْنِ

اود غه رنگه مندوب ده ژوندول د دوو شپود اختر و چی کښنی اولوی اختر یه بولی. لقوله علیه الصلوٰة والسلام که څوك ژوندۍ کړی شپه د اختر یعنی په عبادت سره نو ندی به کی خدای پاك زړه دده په هغه ورځ چی زړونه مړی.

**پوهسه**: چی مراقی په مندوبا توکی زیات کړی دی. استغفار ویل په سدس اخیر کی د شپی لانه تعالی مدحهم بقوله: وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ، او د ټولو استغفار و سید دغه استغفار دی اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبِّیْ. لَااِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ خَلَقْتَنِیْ وَاَنَا عَبْدُكَ وَاَنَا عَلٰی عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ، اَبُوْءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَیَّ وَاَبُوْءُ بِذَنْبِیْ فَاغْفِرْلِیْ فَاِنَّهٗ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ ه ترجمه: ای خدایه ته رب یه زما نشته بل مستحق د عبادت بیله تا. پیدا کړی یم تا زه، او زه بنده ستا یم، او زه ستا پر هغه عهد چی ما تا ته کړی دی یعنی عبادت قائم یم او پر هغه وعده چی ما ده تا سره کړیده چی زه به امتثال د امر کومه ثابت یم چی زما په طاقت پوری وی. او زه اقرار کوم ستا په نعمت سره پر ما باندی نو ماته و بخښه ټول گنهونه زما. ولی چی گنهونه نشی بخښلای د تا څخه ماسوی هیڅ څوك" قَالَ الْمَرَاقِی.. والدعاء فیهما مستجاب ه قَالَ الْمُصَنِّفُ؛

## وَلَيَالِیْ عَشْرِ ذِی الْحَجَّةِ

اود غه رنگه مستحب دی ژوندول په عبادت سره د لسو شپو د مخه تر لوی اختر قال علیه الصلوٰة والسلام: مَا مِنْ اَيَّامٍ اَحَبَّ اِلَی اللّٰهِ تَعَالٰی ان يَّتَعَبَّدَ فِيْهَا مِنْ عَشْرِ ذِی الْحِجَّةِ يعدل صيام كل يوم بصيام سنة وقيام كل ليلة منها بقيام ليلة القدر۔

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولمن سعى فيه امين"





قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَلَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ

اود غه رنگه مندوب ده ژوندول د برات د میاشتی د نیمایی شپی ولی چی د دی شپی په احیاء سره گنهونه دیوه کال بخښل کیږی. او د جمعی د شپی په احیاء سره د یوی هفتی گنهونه بخښل کیږی. او د لیلة القدر په احیاء سره د ټول عمر گنهونه بخښل کیږی. او بل په دی شپه د ټولو ارزاق او آجالو او عدد د حاجیانو او د عزت او ذلت او د غنا او فقر وغیرها. تقدیر په دغه شپه کیږی **سوال**: تقدیر الٰهی خو ازلی دی نو څه معنا چی په دی شپه کی تقدیرات الٰهیه کیږی **جواب**: بیله شکه تقدیرات الٰهیه خو ازلی دی. لکن ملائکه وو ته په دغه شپه تقدیرات دیوه کال معلومیږی. او ټولی ملکی تر بل کاله پوری پر خپلو کارو گمارل کیږی. درولیش واڼی چی په فضیلت کی د احیاء د لیلة النصف من شعبان ډیر حدیثونه راغلی دی او تفصیلی بیان یه په روح البیان کی و گوره: قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَيُكْرَهُ الْاِجْتِمَاعُ عَلٰی اِحْيَاءِ لَيْلَةٍ مِّنْ هٰذِهِ اللَّيَالِیْ فِی الْمَسَاجِدِ

او مکروه ده اجتماع د خلگو پر احیاء د یوی شپی د دغو شپو یعنی چی تیری سوی په مسجدو کی. بلکه په نورو ځایو کی لکه یوسرای چی خلگ سره وټ کی هم اجتماع مکروه ده. لکه بعض اما مان او یا بعض پیران چی کوی ولی دا اجتماع نه نبی علیه الصلوٰة والسلام کړیده او نه اصحابو کرامو کړیده. او اکثر علماء د حجاز چی یو د هغو څخه عطاء دی. او ابن ابی ملیکة، او فقهاء د اهل مدینی او اصحاب ده مالك ټول دا اجتماعات بدعت بولی: او د نبی علیه الصلوٰة والسلام څخه او ده د اصحابو څخه نه دی نقل سوی لمونځ په جماعت سره په شپه کی د اختر، او علماء د اهل شام پر دوه قوله دی. اوزاعی چی امام او لوی فقیه د اهل شام دی هغه دا اجتماع په مساجدو کی مکروه بولی. او بعض معتبر علماء د تابعینو څخه لکه خالد بن معدان او لقمان بن عامر وائی چی په احیاء کی د لیلة النصف من شعبان دی خلگ په مساجدو کی نفلی لمونځونه په جماعت کوی۔ والله اعلم بالصواب؛

**پوښتنه**: که بعض کسان د دغو شپو لمونځونه پرځان نذر کړي په جماعت سره نو د کراهت نه به جماعت نه خلاصیږي. باید خلاص شي. ولې چې په دې سره نذر نه خو نفل خالص نه سو پاتې بلکه واجب سوله او جماعت خو په نفلو کښې مکروه دی، ؟

**جواب**، په دې حیله سره کراهت د جماعت نه دفع کیږي. ولې چې اعتبار د اصل ته دی لما نځه دی اصل خو یې نفل دی. هو، د دغه نذر نه بیله جماعته کولو خلاصیږي نه :. لکن جماعت په دې شرط روا دی چې امام به ناذر نه وي. ولې چې دیوه ناذر په بل ناذر پسې اقتداء نه ده صحیح.

**سوال**: چې امام ناذر نه وي نو د مقتدي ناذر اقتداء څرنګه پسې روا ده، ولې چې بناء د قوي چې د مقتدي لمونځ چې به نذر سره واجب سو پر ضعیف باندي جوړ د امام لمونځ چې نذر کړی یې نه دی. بلکه صرف نفل دی خو نه ده روا کما في کتب الفقه.

**جواب**: اقتداء او بناء د قوي پر ضعیف باندي هلته نا روا ده چې قوت د قوي ذاتي وي لکه اقتداء د مفترض په متنفل پسې. په ما نحن فیه کې خو قوت د صلوة المقتدي په سبب د نذر عارض دی. ورنه په اصل کې خو دواړه نفل دي.

**فائده**: لمونځ په اصل الوضع کې مشروع دی پر صفت د انفراد نو اقتداء په لمانځه کې سره ده کراهت روا ده لکه نفل په جماعت پر طریقه د تداعي. والله اعلم وعلمه اتقن و احکم:







# فصل فِي صَلٰوةِ النَّفْلِ جَالِسًا وَالصَّلٰوةُ عَلَى الدَّابَّةِ

وزاد في المراقي وصلوة الماشي، فصل دی په بیان کې د نفلي لمانځه په ناستي او بل په بیان کې د لمانځه پر دابه باندي. او په بیان کې د لمانځه په حال کې د تګ" په مراقي کې وائي چې مصنف تعبیر په نفلو وکړی تا چه سنن مؤکده هم تر لاندي سي چې هغه هم په ناستي صحیح دی. قَالَ المُصَنِّفُ :

**وَيَجُوزُ النَّفْلُ قَاعِدًا مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ** او روا دی نفل یعنې په شمول د سنن مؤکده وو. په ناستې سره د قدرت نه پر ولاړي باندي. او په کتابو کې د فقهی شریفي پر دې باندي اجماع د علماوو نقل کړه سوېده، او بعض غیر معتمدو قولو کښې سنة الفجر په مستثنی کړي دی، لما قیل بوجوبها وقوة تاکدها، او په بعض غیر صحیح روایتو کې تراویح هم استثناء کړي دي یعنې هغه هم سره د قدرت پر ولاړه په ناستي نه دی روا. والاصح جوازها قاعدًا من غیر عذر، فالحاصل چې ټوله نوافل بلا مثنویة شئ منها روا دی په ناستي بیله عذره **سوال**، په خلاصه کې وائي چې سنت د سحار په اجماع سره بیله عذره په ناستي نه دی روا کما روی الحسن عن الامام فبین دعوی الاجماع عین تضاد، **جواب**" دعوی د اجماع د خلاصي غلط ده، بلکه اجماع صرف پر تنا کد د هغوده کذا قال الطحطاوي ص ۲۳۶

**پوښتنه**: چې په جواز کې د نفلو په ناستي سره د قدرت پر ولاړي باندي هیڅ کراهت نشته، دلیل دا دی، چې علیه الصلوٰة والسلام بیله وتر و دوه رکعته نفل په ناستي کوله. او دغه رنګه په اکثر صلوة اللیل کې په ناستې لمونځ کاوه د پاره د تخفیف" او د عائشه رضی الله تعالیٰ عنها څخه روایت دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم بیله هغه چې بدن مبارک یې درووند سو نو د تهجد لمونځ به ئې په ناستي کاوه. نو څه وخت چې د رکوع اراده به یې وکړه نو به ولاړ سو بیو خوا ایته به یې په ولاړي ووئیله او بیا به یې رکوع وکړه. او سجده به یې وکړه. او په بل رکعت کې بیا قرائت په ناستي شروع کړي وهکذا الی اخیر الصلوٰة"

**مسئله**: په معراج الدرایة کې وائي چې هر نفل چې سړی په ناستې کوي مستحب داده چې یوڅو آیتونه دې په ولاړې ووائي او بیا دې رکوع وکړي موافقةً للسنة، او که ولاړ سو لکن قرائت یې نه وو وایه او بیا یې رکوع او سجده وکړه بیا هم کفایت د استحباب کوي. او که سم ز سو ولاړ او رکوع او سجده یې وکړه هغه کفایت نسي کولای. ولې دا د ولاړې څخه رکوع نه ده، قال المصنفؒ:

## لکن له نصف اجر القائم الا من عذر

لکن د غه سړي لره چې سر د قدرت ته لمونځ یعني نفل په ناستې کوي نیمې ثواب د ولاړې د لمانځه دی مګر نه که په عذر سره وو، ولې چې معذور وه ته پوره ثواب ورکړه کیږي. لقوله علیه الصلوٰة والسلام: من صلی قائمًا فهو افضل ومن صلی قاعدًا فله نصف اجر القائم ومن صلی نائمًا ای مضطجعًا فله نصف اجر القاعد

**پوهسه**: چې د دې حدیث څخه صاحب الشرع یعني علیه الصلوٰة والسلام مستثنیٰ دی ولې چې د علیه الصلوٰة والسلام لمونځ یعني نفل په ولاړې او په ناستې کې ثواب یو دی لهذا من خصوصیاته صلی الله علیه وسلم وقد ورد فی الحدیث ذالک، **فائده**: په دغه حدیث کې چې من صلی قائمًا ... روایت شاذه دی. ولې چې نفل سره د قدرت ته پروت لاړي مضطجعًا نه دی روا صرح فی البحر عن الشارق بذالک، او په دغه روایت یې حکم د شذوذ کړی کما نقل عنه الامام الطحطاویؒ، قال المصنفؒ:

## ویقعد کالتشهد فی المختار

او سړی چې په ناستې لمونځ کوي نو داسې دې کښېني لکه په التحیات کې د نورو لمونځو په مختار روایت کې. **پوهسه**: چې په دې عبارت کې اشاره ده ته چې مصلي جالسًا دی لاس راسته پرېږده لاس نه ایږدي لاندې تر نامه لکن عمل پخلاف د دې دې په ټولو ښو والو کې. یعني د غه مصلي قاعدًا د قرائت په وخت کې به لاسونه تر نامه لاندې راسته پرېږده ایږدي. او حق هم داغه ده تا چې د وخت د قرائت او د التحیات په کیفیت کې د ناستې فرق راسي. په دغه سره تصریح کړه سویده په کتاب





سیاسة الدنیا والدین کې. او د فقهاءؒ په دې عبارت کې چې، قعود د مصلي قاعدًا لکه قیامه ده. هم و دغه طریقې ته اشاره ده، **فائده**: د حضرت الامام الاعظمؒ څخه په ناسته کې د مصلي قاعدًا درې روایت دي. یو روایت دا دی لکه مصنفؒ چې اشاره ورته کړېده بقوله کالتشهد آه د دې معنا داده چې که عذر نه وي نو چې پښه دې بېرې باسي او پر هغه دې کښېني او راسته پښه دې جګه ودروي. مصنفؒ دا مختار ګڼلی دی. او په مراقي الفلاح کې وائي وعلیه الفتوی، او دې روایت ته امام زفرؒ تللی دی وهو المعمول فی دیارنا. لکن شیخ الاسلامؒ وائي چې افضل داده چې د ولاړې په زمانه کې د امصلي قاعدًا پر کُنه کښېني زنګنونه او پنډۍ دې جګې ونسي او د واړه لاسه دې پر پنډیو تاوکړي چې دې ته په عربۍ کې احتباء وائي. شیخ الاسلام نقلي دلیل داوائي چې د علیه الصلوٰة والسلام عمومي نفل لمونځونه په احتباء سره وه. او عقلي دلیل داوائي چې په احتباء کې ډېرا ندامونه د قبلې پر طرف کیږي مثلًا ساقان یې لکه د ولاړې د لمانځه ګرځي. او دا دوهم روایت دی د امام اعظمؒ څخه: وبها اخذ ابو یوسفؒ: او دریم روایت د امامؒ څخه دا دی چې چارزانو دې کښېني وبها اخذ محمدؒ: قال فی النهر په دې کې شک نسته چې د غه مصلي قاعدًا ته ناسته په هر ډول روا ده. ولې چې د غه مصلي ته ترک د قیام روا دی لو ترک د صفة القعود په طریق اولیٰ ورته روا دی. لکن خلاف په افضل کې دی یعني کم کیفیت د قعود افضل دی.

**مسئله**: د مریض چې په ناستې د مرض د وجې لمونځ په ناستې کوي په هیڅ کیفیت مقید نه دی بلکه د ده لره د هر ډول ناستې اختیار دی قال المصنفؒ

## وجاز اتمامه قاعدًا بعد افتتاحه قائمًا بلا کراهة علی الاصح

او روا دی پوره کول د نفلو په ناستې پس له دې چې شروع یې په ولاړې کړي وي بېله کراهته په صحیح مذهب، **پوهسه**: چې ضمیر د اتمامه و نفلو ته راجع دی او مراد نفل د هغه سړي دی چې قادر پر ولاړه هم وي. او دا هم مذهب دی د ابو حنیفهؒ دلیل یې دا دی چې قیام رکن په نفلي لمانځه کې نه ده فجاز ترکه اخیرًا کما جاز اوّلًا، او د یارانوؒ

مذهب دادی چې داسې نه ده رَوا ولې چې د شروع په ولاړې وکړه نو ولاړه پر ده لازم سوه لکه نذر، **والجوابُ**: چې نذر خو پر سری صَلاة مطلقه کاملةً لازموی سره د ټولو ارکانو چې یو یې قیام دی، او شروع په نفلو خو صرف پر سری ساتنه د نفلو لازموی. دا فتاد څخه.. ولایوجب الشروع القیام؛ او بل دلیل د امام اعظمؒ دا دی چې بقاء د فعل آسانه ده تر ابتدا فاذا لم یکره ابتداءً جالسًا فالتجأ اولیٰ» مر» وفی حدیث عائشة رضی چې علیه الصلوٰة والسلام چې به نفل کول د ولاړې څخه به ناستی ته نقل کیده او د ناستی څخه به ولاړی ته کما مر عنقریب» **فَـائِـدَه**: د حضرت الامام الاعظمؒ او دده شاګردانو اختلاف په یوه شفعه کی دی چې اول یې په وَلاړې وی او اخیر یې په ناستی وي. او که یو سَړی د څلورو رکعتونو نفلو نیت وکړی او چې اول شفعه یې په وَلاړې وکړه او د التحیات د پاره کښینستو او بیا شفع ثانی په ناستی وکړه هغه اتفاقا رَوا دی» ولې چې د نفلو هره شفعه جَلا لمونځ دی. قَالَ

## وَيَتَنَفَّلُ رَاكِبًا خَارِجَ الْمِصْرِ مُوْمِيًا اِلٰى اَيِّ جِهَةٍ تَوَجَّهَتْ دَابَّتُهٗ

اوروا ده سړی ته چې نفل کوی په حال کی د سپرتیا پر دابه باندې. بلکه بعض علماء وائی چې نفل پر دابه مندوب دی. ولې چې علیه الصلوٰة والسلام دا عمل کړی دی لکن د باندی تر مصره»

**پـوهـسـه**: چې د مصر څخه معنا مصطلح مراد نه ده یعنی ښار بلکه مراد څخه دی آبادی ده ولو قریةً» نو خارج القریه نفل روادی پر دابه» که په نیت د سفر وتلی وی او که دیو کار د پاره وتلی وی. وعلیه الفتوٰی. وقیل چې یو میل به وتلی وي. وقیل چې دوه فرسخه وتلی وي، والا فلا یجوز، او امام ابویوسفؒ څخه روایت دی چې په مصر کی هم صلوٰة علی الدابة روادی» وعندمالکؒ شرط د صحت د صلوٰة الدابة دا دی چې دی به حقیقةً مسافر وی. او لمونځ به په اشاره کوی، نو که پر ځین د دابې او یا بل شی باندې چې پر دابه وو سجده وکړه عبث کار یې وکړی. نو مکروه خو دی لکن لمونځ یې نه فاسدیږی. ولې چې په ضمن کی د دغې سجدې خو ایماء هم پید اسوه مع زیادة مګر هغه وخت یې لمونځ فاسد دی که هغه شی چې ده سجده پر وکړه نجس وُو. بر. در»





وهرجهت ته چې متوجه وه دابه دده که څه هم د قبلې وخواته نه وی روانه» او بعض فقهاء وائی چې دا هلته روادی چې راکب قادر نه وی پر دَ ولو د دابه په قدر د تحریمې مخ پر قبله والا فلا یجوز»
لکن په ظاهرالروایة کی دا شرط نه غواړی. لکن په عمدة الاحکام کی وائی چې په نیز د امام اعظمؒ او ابی ثورؒ مستحب دا ده چې دابه دی په وخت کی د تحریمې مخامخ وقبله ته کړی: ثم یصلی کیف شاء» وبه قال احمدؒ والشافعیؒ ویشترط استقبال القبلة فی افتتاح الصلوٰة **پوهسه** چې مصنفؒ مؤمیًا په مفرد صیغه سره وویل اشاره یې ودی ته وکړه. چې په جماعت سره لمونځ پر دابه نه دی رَوا. او چا که جماعت کاوه د امام لمونځ خو صحیح دی او د نورو فاسید دی. لکن دا حکم هلته دی چې پر مختلفو دوابو سپاره وی او که یوه دابه دوه کسه سپاره وه او لمونځ یې په جماعت کاوه بیا روادی کما فی البحر» د ظاهرالروایت دلیل دا دی چې هغه حدیث د جابرؓ چې وائی: رَاَیتُ رَسُولَ اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم: یُصَلی النوافِل علیٰ راحلتهِ فی کل وَجهٍ یؤمی ایماءً لکن یخفض السجدتین من الرکعتین» رواه ابن حبان فی صحیحه» مر» ترجمه: حضرت جابرؓ وائی چې ما ولیدی علیه الصلوٰة والسلام چې نفلی لمونځونه یې کول پر اوښ باندې پر هر طرف او اشاره به ئې کوله لکن د سجدې د پاره به ئې سر تر رکوع کښته کاوه»

**مسـئـلـه**: که دابې در اکب و پښو ښورولو ته حاجت درلودی او یا وهلو ته. نو په لمانځه کی پروا نه لري. لکن که فعل کثیر نه وُو. م قال المصنفؒ» **وَيَبْنِىْ بِنُزُوْلِهٖ** یعنی کی شروع د نفلو په سپرتیا کی وکړي په اشاره سره او بیا د دابې څخه راکښته سو، نو پر هغه لمانځه دی بناء وکړی یعنی هغه لمونځ چې وړ ته پاته وو کښته دی په رکوع او سجده پوره کړي. قَالَ المُصنفُ: **لَابِرُكُوْبِهٖ** او بناء به نه کوی پر سپرتیا کی» معنا دا چې که پر ځمکه نفل په رکوع او سجده سره شروع کړي او بیا سپور سو پر دابه باندې بناء پر هغه لمانځه دی نه کوي. **مسـئـلـه**: کی نزول په عمل قلیل سره وو یعنی چې صرف یې پښه راواړه وَل راکښته سو، نو څو بناء روا ده او که په عمل کثیر سره وو بیا بناء نه ده رَوا» مر» فرق د نزول او رکوب دا دی چې راکب چې د رکوب په وخت کی احرام د لمانځه

وتاره دهغه دپاره ایماء رخصت ده او عزیمت یه رکوع او سجده پر نزول سره، او چې مصلی احرام دلمانځه پر ځمکه وتاړه دا احرام به مستلزم دی تولو شرطو لره. نو چې بیا دی سپور سی نو استقبال القبلة فوت شو. او یو والی دځای دلمانځه هم فوت شو. ولې چې دابه خو روانه وه. او طهارة المکان هم فوت شو، او حقیقة رکوع او سجده هم پاته سوه. نو دی کښله بناء نه ده روا. وهو ظاهر الروایة» هذا محصل ما فی العنایة علی الهدایة ه

**سوال**: یو سړی چې مریض وی د رکوع او سجودی توان نه لري او لمونځ په اشاره کوی لکن نا ببره یه لمانځه کې جوړ شو او بیا رکوع او سجده قادر سو نو به مقتضیٰ د مسئلی د نزول باید دغه مریض ته بناء د لمانځه په رکوع او سجده سره روا اسی. لکن فقهاء وائی چې بناء د مریض نه ده روا»

**جواب**: د راکب احرام خو رکوع او سجدی ته شامل وو. ولې چې نزول د ده په طاقت پوري دی. بخلاف احرام المریض ولې هغه رکوع او سجدې ته شامل نه دی ولې چې رکوع او سجده خو په اختیار کې د مریض نه دي لکه نزول د راکب»

**سوال**: د نزول په صورت کې خو بناء دقوی چې رکوع او سجده والا لمونځ دی پر ضعیف چې د اشاري لمونځ دی لازمیږی. نو څرنګه بناء صحیح ده کما فی المریض إذا صح. **جواب**: ایماء د راکب لکه رکوع او سجده ده په قوت کې او د ده ایماء خلف د رکوع او سجدې نه دی. نو ددی وجهی نه ده ته روا ده ابتداء د لمانځه په ایماء سره مع قدرت ته علیهما بالنزول» که ایماء د ده خلف وای د رکوع او سجدی نه نو باید ده ته دا ایماء سره د قدرت نه نه وای روا» اذ الخلف عند الفقهاء» ما لا یصار الیه الا عند تعذر الاصل کالتیمم الذی هو خلف عن الوضوء بخلاف المریض» ولې چې د ده ایماء د رکوع او سجدی نه ده، نو ځکه چې مریض ته قدرت د سجدی او رکوع وی ابتداء د لمانځه په ایماء سره نه ده ورته روا. فلا یصح الجمع بینهما وبین الاصل» یعنی چې لمونځ دی په حال کې د عجز په ایماء وکړی او عند الصحة دی باقی لمونځ په رکوع او سجده وکړي. وهذا هو السر فی عدم صحة البناء فی المریض المومی اذا اصح فی الصلوٰة» وصحة بناء النازل عن الدابة الصلوٰة بالرکوع والسجود علی ما مر من صلوته بالایماء فی حالة الرکوب هکذا قالوا فافهم»





قال المصنف **وَلَوْ كَانَ بِالنَّوَافِلِ الرَّاتِبَةِ** که څه هم دا نفل چې پر دا بې باندی کوی قسمه د نوافلو محکمه وو څخه وی چې هغه ته سنن مؤکده وائی او یا سنن زوائد وائی. حتیٰ چې سنة الفجر هم په دی حکم کې د نورو سنتو سره شریك دی» قال المصنف:

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى عَلَيْهِ إِنَّهُ يَنْزِلُ لِسُنَّةِ**

او د حضرت الامام الاعظم څخه خدای تعالیٰ دی پر ده رحم وکړي دا سی روایت راغلی دی چې راکب د دابه دی د سنة الفجر د پاره دی دا بې

**الْفَجْرِ لِأَنَّهَا آكَدُ مِنْ غَيْرِهَا** څخه راکښته کیږي. ولې چې سنة الفجر تر نورو سنن مؤکده وو ډیر ټینګ دی. **پوښتنه**: چې دا روایت دامام اعظم څخه یا خو مبنی پر بیان دا فضل دی یعنی افضله د سنة الفجر د پاره نزول دی. تا چې په ما بین کې د سنت مؤکد او د اکد فرق راسی. کذا فی العنایه، او یا مبنی پر روایت د وجوب د سنة الفجر دی. دامام اعظم څخه داسی روایت راغلی دی چې سنة الفجر واجب دی نو حکم د ینزل پر هغه روایت بناء دی» وهذا مختار المصنف فی المراقی» قال المصنف

**وَجَازَ لِلْمُتَطَوِّعِ الْإِتِّكَاءُ عَلَى شَيْءٍ إِنْ تَعِبَ بِلَا كَرَاهَةٍ**

او روا ده نفل کوونکی ته تکیه پر شی لکه لکړه یا دیوال او یا خادم، که دی ستړی سوولی دا عذر دی لکه چې قعود ورته روا ده چې

**وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ عُذْرٍ كُرِهَ فِي الْأَظْهَرِ لِإِسَاءَةِ الْأَدَبِ**

ستړی سی بیله کراهت والی» او که چیری دا تکیه بیله عذره وه نو دا تکیه کول مکروه ده ولې چې د لمانځه سره بې ادبی ده، لکن مکروه تنزیهی ده، ط، بخلاف القعود بغیر عذر فانه لا کراهة لانتفاء سوء الادب کما یحکم به العرف» د ر م

**وَلَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الصَّلٰوةِ عَلَى الدَّابَّةِ**

او نه منع کوی صحت د لمانځه پر دابه باندی -

قال المصنف: نجاسة كثيرة عليها ولو كانت في السرج والركابين في الاصح

ډېر نجاست يعني تر قدر معفو بالا که څه هم دا نجاست په ځين کې وي او يا په رکيبو کې وي په اصح روايت کې، وهو مذهب اکثر مشائخنا للضرورة او بل په دليل د دې چې مصلي على الدابة څخه چې ساقط سوه ارکان اصليه د لمانځه لکه رکوع او سجده، او قيام نو شرط د طهارة المكان په طريق اولىٰ ساقط دی. ط، قال المصنف:

## ولا تصح صلوة الماشي بالاجماع

اونه دی صحيح لمونځ د تګ کوونکي په اتفاق زمونږ د امامانو که فرض وي او که واجب او که نفل وي. ولې چې اتحاد د مکان ديوه لمانځه شرط لازم دی او په صورت کې د تګ هغه مختلف کيږي، **فـائـده** که او باز په او بوکې او بازي کوي هم يه لمونځ نه دی صحيح لاختلاف المكان فيه ايضًا او بله خبره دا ده چې تګ يا اوبازي منافي د لمانځه سره دی والعبادة مع المنافي لا تصح»







# فصل في صلوة الفرض والواجب على الدابة

دا فصل دی په بيان کې د فرضي لمانځه او د واجب لمانځه پر دابه باندې.

قال المصنف:

## لا تصح على الدابة صلوة الفرائض والواجبات كالوتر

نه دی صحيح پر دابه باندې فرضي لمونځونه او نه واجب لمونځونه لکه وتر او نذر کړی

## والمنذور والعيدين ولا ما شرع فيه نفلا فافسده

لمونځ او د اخترو لمونځونه. او دغه رنګ نه دی صحيح قضا راوړه د هغه لمانځه چې شروع يې په نفلي طريقه کړي وي او بيا يې فاسد کړی وي. **فـائـده**: کې څه هم اولًا په ناستې شروع کړی وي او بيا يې فاسد کړی وي. او د جنازې لمونځ هم نه دی روا» م قال

## ولا سجدة تلاوة تليت على الارض

او هم نه دی روا پر دابه هغه سجده تلاوت چې آيتونه يې پر ځمکه ويل سوي وي. او کې آيتونه هم پر دابه ويل سوي وه بيا سجده تلاوت پر دابه روا ده» د ر» قال المصنف:

## الا لضرورة

مګر د ضرورت د وجهې چې په هغه ضرورت سره په دې آيت کې تصريح سويده: وَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا، الآية: دا آيت که څه هم په فرائضو کې نازل سوی دی لکه واجب په حکم کې د فرضو دی، په خلاصه کې وائي چې فرضي لمونځونه پر دابه باندې روا دي» هغه داسې چې دابه دې ودروي مخ پر قبله او تحريمه دې وکړي او لمونځ دې په اشاره وکړي. او کې دابه نه سواى درولاى نو دی لمونځ کوي هر جهت ته چې دابه روانه وي که څه هم شايه وقبلي ته وي. د روئش وائي چې په نن زمانه کې موټر هم حکم د دابې لري نو که روان وو لمونځ دې په اشاره په کښې کوي. کې په درولو کې خوف وو؛

قَالَ المصنفؒ **لِخَوْفِ لِصٍّ عَلىٰ نَفْسِهٖ اَوْدَابَّتِهٖ اَوْثِيَابِهٖ لَوْنَزَلَ**

لکه بیره دَغله څخه یعنې قطاع الطریق پرځان باندې یعنې چې ما به مړ کړي یا ټپي، او یا پر دابه بیریږي چې هغه به راسه بوزي. او یا پر کالو او غنټه باندې بیریږي په دې توګه کې دابیره په ددې سببه وه چې که زه ددابې څخه کښته شم، په مراقې کې وائي چې اندېوالان هم نه ورته درېږي. لکن دابناء پر غالب ده، ولې چې اندېوالان ورته ولاړي نو غل به حمله ونه کړي لکن داهم عیني ممکنه ده چې سره دَولاړي ددوي دے هم غل حمله پر وکړي، نو که داسې بیره موجوده وه نو بیا هم لمونځ پر دابه وکړي. **مَسْئَلَه**: که دموټر دسورلیانو دا بیره وه چې که موټر وَدَرَوو دَپاره دلمانځه نو غله به حمله وکړي نو موټر دې نه دَرَوي بلکه لمونځ دې په رَوان موټر کې په اشاره وکړي، د، قَالَ المُصَنفؒ:

**وَخَوْفُ سَبُعٍ وَطِيْنُ الْمَكَانِ** او د غرونګه که بیره دحملې ددرنده، لیوه پړانګ وَغیره وَه. او یا باران سوی وُو مثلاً او لاندې ځمکه تولوه خټې وې. چې مَخ یې په کښې ډوبیږي او یا په خټو ککړیږي او کې پټو مثلاً آوار کړي وای هم دَغسې کیږي. او یوصرف لندوالې دځمکې دې هغه په دابه لمونځ نه رَوَا کوي **مَسْئَلَه**: که دسرې دابه نه وه لکن ځمکه ډېره خټې وه نو لمونځ دې په وَلاړې او په اشاره اداء کړي، م، قَالَ المُصَنفؒ:

**وَجُمُوحِ الدَّابَّةِ وَعَدَمِ وِجْدَانِ مَنْ يَّرْكَبُهٗ لِعُجْزِهٖ**

او یا راکب بیریږي که زه ددابې څخه تاسم دابه به بیا سَرکښي وکړي او زه به نه سم پرې سپریدای او بل داسې خوک هم نه وو چې دی پرې سپور کړي، نو دی هم لمونځ پر دابه په اشاره وکړي. ولې چې دی عاجز دی دنزول څخه، او کې لمونځ په اشاره وکړي او یا عذر نې ائیل سو یعنې کومکی پید اسوده لمانځه راګرځیده نسته پر ده باندې **مَسْئَلَه**: که سپورې پر دابه مریض وو او دې بیریدی که زه کښته سم او لمونځ وکړم او بیا سپور سم نو به مې مرض





زیات سي. او یا به مې جوړیده وځنډیږي. نو رواده وده ته لمونځ پر دابه په اشاره پرته دی مستقبل القبلة وَدَرَوي ته تمام دَلمانځه. کې امکان وو او که نه وو بیا دې پر روانه دابه لمونځ په اشاره اداکړي، م، ط، **مَسْئَلَه**: که سپور دَدابې چې رااکښته سوی وای ده بیرته سپریدو کې مکی یې دَرلودی. په دې کې دَامام اعظمؒ او دده دَ شاګردانو اختلاف دی. او دا مسئله مشهوره په قادر بقدرة الغیر ده، په دې مسئله کې دحضرت الامام الاعظمؒ مذهب دَادی چې قادر دَبل ځاپه قدرت سره فی الحقیقة عاجز دی. او یاران وائي چې په قدرت سره دَغیردی دعجز څخه وزي. او احکام دَقادر پر جاري کیږي، درویش وائي چې کافي کتاب د مذهب قول ته دیارانو ترجیح ور کړیده. لکه څنګه چې قدرت نه لري پر نزول ده دابې څخه مګر په محرم سړي یا میړه سره، قَالَ

**وَالصَّلٰوةُ فِي الْمَحْمِلِ عَلَى الدَّابَّةِ كَالصَّلٰوةِ عَلَيْهَا**

او لمونځ په کجاوه کې چې هغه کجاوه پر دابه باروي لکه لمونځ دې پر دابه باندې په هغه کې چې

**سَوَاءٌ كَانَتْ سَائِرَةً اَوْوَاقِفَةً** وَرباندې تیر سو. خواه دابه روانه وي او که وَلاړه وي.

**وَلَوْجُعِلَ تَحْتَ الْمَحْمِلِ خَشَبَةٌ حَتّٰى بَقِيَ قَرَارُهٗ اِلَى**

او که وکړ څوله لاندې تر کجاوې یو لرګی یعنې یا مثل دَلرګی لکه د او سپنې پیپ څنګه چې پاته سو

**الْاَرْضِ كَانَ بِمَنْزِلَةِ الْاَرْضِ فَتَصِحُّ الْفَرِيْضَةُ فِيْهِ قَائِمًا**

ارام دمحمل تر ځمکې پورې نو د غه کجاوه لکه ځمکه داسې ده نو فرضي لمونځ په ولاړې په کښې رَوَادی. حاصل ددې مسئلې دادی چې اول یې دابته ودَرَوله او بیا یې کجاوې ته لرګی یا مثل د هغه تنبه وَر کړه چې کجاوه تر ځمکې پورې آرامه سوه یعنې نه ښوریده نو دغه کجاوه حکم د ځمکې لري نو لمونځ فرضي په وَلاړې په کښې روادی"

**پوښتنه:** چې مصنفؒ داسې عبارت وواېه فتصح آه او سره ددې چې په عين ځکه خو فرضي لمونځ بيله ولاړې روانه دى، نو بايد چې په دغه ځاى کې هم لمونځ فرضي په ولاړې لازم واى.

ددې سبب دا دى چې علماء د نحوې او معاني واېي چې ټول احکام د مشبه به په مشبه کې لازم نه دى بلکه شراکت صرف په وجه کې د شبهې غواړي. مثلاً زيد کالاسد يعنې په شجاعت کې. دلته وجه د شبه په مابين کې د ځاى او ځکې صرف صحت د لمانځه دى په ولاړې نه لزوم د لمانځه په ولاړه ولې چې ځاى امکان لري چې په ځنګواله دى دومره نه وي چې سړى دى په ولاړې لمونځ په کښې وکړي» ځکه امام طحطاويؒ په دې ځاى کې داسې واېي: وَاِنْ لَمْ يمكنه القيام ولا النزول صلّٰى قاعدًا، کماهو مفاد کلامهم او هغه خبره چې چې سيد شارح کړيده چې مصنفؒ عبارت مطلق وواېه يعنې چې لمونځ په ولاړې صحيح دى لکن محمول پر هغه دى چې قيامه په کښې ممکنه وي. څه نوى خبره نه ده بلکه د کلام څخه د مصنفؒ دا غه خبره مفهومه ده، ولې چې صحت د لمانځه په ولاړې په ځاى کې خو مبنى پر دې دى چې قيامه به ممکنه وي.







# فَصْلٌ فِى الصَّلٰوةِ فِى السَّفِيْنَةِ

دا فصل دى په بيان کې د لمانځه په کښتۍ کې. قَالَ المصنفؒ

## صَلٰوةُ الْفَرْضِ فِيْهَا وَهِىَ جَارِيَةٌ قَاعِدًا بِلَا

يعنې فرض لمونځ په کښتۍ کې په داسې حال کې چې هغه روانه وي په ناستې بيله عذره . .

## عُذْرٍ صَحِيْحَةٌ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ

صحيح دى په نيز د امام اعظمؒ په رکوع او سجده سره. او يارانو واېي نه دى صحيح،

## وَقَالَا لَا تَصِحُّ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ وَهُوَ الْاَظْهَرُ

مګر د عذر د سببه. او دا مذهب د يارانو اظهر دى» بيله عذره دا دى چې دى د کښتۍ څخه وتلاى شي. قال فى المراقى چې غالب په ولاړه کې د کښتۍ سر ګرځيده او غالب لکه متحقق دى نو ګويا عذر شته لکن سره ددې مذهب د امام اعظمؒ خو صحت د لمانځه وو خو بيا هم که ولاړه ممکنه وه په ولاړې دې لمونځ وکړي تا چې د شبهې څخه د خلاف لمونځ ووزي او مصلى ته تسکين د زړه پيدا شي.

**فَائِدَه:** د مذهب د يارانو د ليل دا دى چې په حديث شريف کې چې روايت په ابن عمرؓ کړي دى داسې راغلى دى چې د عليه الصلٰوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه د لمانځه په کښتۍ کې ده مبارک ورته ووېل چې ته لمونځ کوې په کښتۍ کې په ولاړې الا ان تخاف الغرق» وقال مثله جعفر بن ابى طالب»

او بل دليل يه دا دى چې قيام خو رکن د لمانځه ده، نو په عذر محقق سره پاتې نه په عذر موهوم سره.

**پوښتنه:** چې مذهب د امام اعظم لره هم دلائل شته، يو حديث د ابن سيرينؒ دى چې دى واېي چې مونږ لمونځ وکړى سره د انسؓ په کښتۍ کې په ناستې، او که مونږ غوښتاى وکناره ته يعنې وچه ته هم وتلاى شواى. او مجاهدؒ واېي چې مونږ لمونځ وکړى سره د جناده رضى الله تعالىٰ عنه په کښتۍ کې په ناستې، او که زمونږ خوښه واى په ولاړې هم

کولا ی سَوای یعنی سرښکته نه وه، نو دی حدیثو جمعه: زاهدیؒ داسی کړیده چی حدیث دابن عمرؓ او جعفرؓ چی یار انو دلیل دعدم صحت کړځولی وو محمول دی پر ندب یعنی ولاړه مندوبه ده، او حدیث دانسؓ او د جنادهؓ محمول پر بیان د جواز دی، او بیا هم ترجیح د قول د امام اعظمؒ څندی ثابتیږی، ولی چی د دوو تـا بعینو ابن سیرینؒ او مجاهدؒ په بخلی کړی دی.

**پوښتنه:** چی کښتی حکم دد ابی لری من وجهٍ، ولی چی کښتی مرکب البحر دی. او دابه مـرکب البر دی. نو څکه په دواړو کی لزوم دقیام ساقط دی. او بیا هم کښتی من وجهٍ حکم د محکلی لری چی سړی په آرام په کښی ناست وي. نو د دی سببه استقبال القبله او رکوع او سجده په لمانځه کی د کښتی لازمه ده» قـال المُصنفؒ:

## وَالعُذرُ کَدَوَرانِ الرَّأسِ وَعَدَمُ القُدرَةِ عَلَی الخُرُوجِ وَلَا

او عذر لکه سرګرځی یعنی چی ولاړ سړی پر لاځرځی، او یل عدم قدرت دی پر وتلو د کښتی څخه

## یَجُوزُ فِیهَا بِالإِیمَاءِ اِتِّفَاقًا

او نه دی روا لمونځ په کښتی کی په اشاره سره په اتفاق ولی چی رواکونکی دایماء نه حقیقةً او نه حکمًا سته، لکه په مریض کی او حکمًا لکه په دابه کی،» مراد» قال

## وَالمَربُوطَةُ فِی لُجَّةِ البَحرِ وَتُحَرِّکُهَا الرِّیحُ شَدِیدًا

او هغه کښتی چی دروَل سوی وي لیعنی په لنګر، او ریشو په لویه حصه کی د دریاب او ښوروی

## کَالسَّائِرَةِ وَاِلَّا فَکَالوَاقِفَةِ عَلَی الاَصَحِّ

دهغه په باد ښوروي په سخت ښورېدو

هغه کښتی لکه روانه کښتی داسی ده. یعنی حکم یه د روانی کښتی دی لکه چی تیر سُو، او که باد ډیره نه ښوروَل نو هغه کښتی لکه ولاړه پر کناره د دریاب پر اصح روایت باندې،

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولجمیع المؤمنین آمین





قال المصنفؒ

## وَاِن کَانَت مَربُوطَةً بِالشَّطِّ لَا تَجُوزُ صَلَاتُهُ قَاعِدًا بِالاِجمَاعِ

او که یه کښتی د ر ولی وه پر کناره د دریاب په لنګرو وغیره سره نو نه دی روا لمونځ د سړی په دغه کښتی کی په ناستی په اتفاق لکن پر صحیح روایت او لبعض ولی چی په دی کی هم اختلاف سته، مر، قـال المُصنفؒ:

## فَاِن صَلَّی قَائِمًا وَکَانَ شَیءٌ مِنَ السَّفِینَةِ عَلَی قَرَارِ الاَرضِ

او که چیری لمونځ وکړي په دغه کښتی کی چی پر شط البحر وو او یوه حصه د کښتی څخه پر قرار د محکلی وه نو لمونځ

## صَحَّتِ الصَّلوٰةُ وَاِلَّا فَلَا تَصِحُّ عَلَی المُختَارِ

یه صحیح دی یعنی لکه پر سر یا ندی چی پر محکله پر نه وی او کی قرار نه در لودی یوه حصه د کښتی پر محکله باندی نو لمونځ یه په ولاړی نه دی صحیح، ولی چی دغه کښتی په دغه صورت کی دابه ده، یعنی لکه د ابی څخه چی ولاړوی تاکیدا ای سی د دی کښتی څخه خوهم و تای سی نو پر محکله لمونځ کول ممکن دی مګر هغه وخت بیا په ولاړه کښتی کی په ولاړی لمونځ روا دی که ممکن نه وو وتل د دې څخه و سړي ته،» مصنفؒ مختاره روایه ده ولی په دی کی اختلاف سته، مصنفؒ هغه روایت نقل کړی دی چی محیط او بدائع کی دی، لکن ظاهر کلام د بدایه او نهایه او اختیار دا دی چی لمونځ په ولاړی په هغه کښتی کی چی مربوطه وی پر کناره د دریاب روادی مطلقًا خواه پر محکله قرار لري او که نه. او د ته خروج ممکن وی او که نه» ط» قـال المصنفؒ

## وَیَتَوَجَّهُ المُصَلِّی فِیهَا لِلقِبلَةِ عِندَ اِفتِتَاحِ الصَّلوٰةِ

او مخامخ دی در یږی لمونځ کوونکی په کښتی کی یعنی چی روان وی و قبلی ته په شروع کی د لمانځه، ولی چی استقبال القبلة فرض دی او راکب قدرت هم پر لري،

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولجمیع المؤمنین آمین یا رب العلمین،

قَالَ المصؒ **وَكُلَّمَا اسْتَدَارَتْ عَنْهَا يَتَوَجَّهُ اِلَيْهَا فِي خِلَالِ الصَّلٰوةِ**
او هر وخت چې کښتي د قبلې نه وګرځيدله يعنې چپه سوه لمونځ کوونکی دی ورسره ګرځي وطرف د قبلې ته په مابين کی د لمانځه **حَتّٰى يُتِمَّهَا مُسْتَقْبِلًا** حتی چې لمونځ پوره کوی مخامخ و قبلې ته، په مراقی کی وائی که سړی عاجزه سو د استقبال القبلہ نه يعنې ديو عذر په سبب چې اميد د زوال د هغه عذر وُو، نو دی دې لمونځ بند کړي تر زوال د عذر پوري، او مراقی زيا ته کړيده که مُصلی د کښتي استقبال القبلة پر يښنو يعنې يا ابتداء او يا په خلال کی د لمانځه لمونځ يې دی رَوا په اتفاق د ائمه ثلاثه وو»

**فَائِدَهْ**: طياره که پر محکه ولاړه وه او ځای د ولاړي د لمانځه په کښی وو نو په هغه طياره کی لمونځ په ولاړه په رکوع او سجده وکړي. او که چيري د ولاړي د لمانځه نه وو پکښې نو که چيري تاکيد ای سوای يعنې ځينه د تاکيد و موجوده وه او محافظينو د ميدان هوائی د ته اجازه د کښته کيدو ورکوله. خو تا دی ښی او لمونځ دی پر محکه وکړي، او که ځای د ولاړي د لمانځه په طياره کی نه وو، او اجازه د کښته کيدو هم محافظينو نه ورکوله نو لمونځ په د [illegible] کی د طيارې په اشاره وکړي، دا خو حکم د ولاړي وو او که طياره روان وه نو حکم يې دا دی که ځای د ولاړي د لمانځه په کښی وی او که نه لمونځ په اشاره کوی» هذا ما حصل لی من عبارات الفقهاءؒ»

**فَائِدَهْ**: ټوله احکام چې ذکر سوه په باره کی د کښتيو هغه د هغو کښتيو وه چې په پخوا زمانه کی به آب بازانو چلولی او لنګرونه او بنډي پنډی رسی به ورسره وی د پاره د دريدو او يا کښيدو، او يا په اوسنی زمانه کی هغه کشتی کښتي چې قائق يې بولی او په ذريعه د مشينانو په دريياب کی چليږی، او هر چې هغه لوئی کښتي دی چې په سلوو انسانان په کښی سپاره وی سره د دوی بسترو او سره د ډيرو مالو چې په اصطلاح يې آب ګوټونه بولي، په هغو کی خو که روانی وی او که ولاړي وی لمونځ په ولاړه په رکوع او سجده سره په ښه اسانی په کښی کيږی، نو په د غسی کښتيو کی حتما لمونځ په ولاړه کوی په اشاره نه دی رَوا.





مګر هغه وخت بيا روا دی که هوا د درياب طوفان سوه او د غه لويه کښتي په حرکت کی خپل په اضطراب سوه او د ولاړي لمونځ د ستونځو سره مخامخ سو» هذا ما حصل لی من عبارات الفقهاءؒ والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب»

## فَصْلٌ فِي التَّرَاوِيْحِ

دا فصل دی په بیان کی دَ لمانځهٔ دَتراویحو، مراقی الفلاح. چې تراویح جمع دَ ترویحة ده او ط وائی چې دَ ترویحة معنا یو وار راحت ته وائی. او په شرعه شریفه کی دَ څلورو رکعتونو دَ پاره ولی ورسته تر څلورو رکعتو چې خلگ یو گړی کښینی څه نا څه استراحت ورته پیدا شوه نو دا تسمیه مجاز دی چې څلور رکعت یه په نامه دَ هغه یه چې ورو سته ناسته ده مسمی کړه او دا هم امکان لری چې خودی دا څلور رکعت دی راحت وی. لکه په حدیث شریف کی راغلی دی، اَرِحْنَا بِالصَّلوٰةِ يَا بِلَالُ، یعنی اقامت وکړه چې لمونځ اداء کړو چې کوله دَ لمانځه راحت دی دَ زړه ترا نتظار دهغه. او یا په دی سبب یه ترویحه بولی چې په دی کی راحت دجنت سری ته رسیږی.

**پوښتنه:** په هر لمانځه راحت د جنت سړی ته رسیږی، نو بیا ید هر لمونځ ترویحه ونه بلل شی **جواب** علماء یه یوه خوله وائی چې په وجه کی تسمیه اطراد شرط اولازم نه دی، کذا فی المستصفی، در، قال المصنف:

**اَلتَّرَاوِيْحُ سُنَّةٌ لِّلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ** او تراویح سنت دی دَ پاره دَ نرو او ښځو، او دا روایت دحسنؒ دی دامام اعظمؒ څخه، كما فى الخلاصة، وَهي سنة مؤكدة كما فى الاختيار، م، او په روایت کی د اسد بن عمروؒ عن ابی یوسفؒ دی وائی چې ما سؤال وکړی دابو حنیفهؒ څخه په باره کی دَ صلوٰة التراويح چې امیر المؤمنینؓ هغه په جماعت کښی سره مشروع کړی دی. نو حضرت الامام ووَیل چې تراویح سنت مؤکد دی. او امیر المؤمنینؓ په هغو با ندی باعثه کوله په جماعت سره د ځان دخوانه دی کړی. او نه عمرؓ په دی کار کی مبتدع وو. بلکه دعمرؓ په نیز اصل موجود وو. چې هغه دَ علیه الصلوٰة والسلام دخوا وصیت وده ته په جماعت کولو کی دَ تراویح، او سنت یه په فعل دَ علیه السلام ثابت دی لکه عنقریب به راشی. او په دی قول دَ علیه الصلوٰة والسلام یه هم سنت والی ثابتیږی: عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وسنة الخلفاء الراشدين من بعدي، او همیشه والی کړی دی پر تراویح عمر عثمان علی رضی الله تعالیٰ عنهم،





وقد ورد فی حديث، افترض الله عليكم صيامه وسنة لكم قيامه، والمراد بالقيام التراويح. او روافض وائی چې تراویح سنت دی نرو لره نه ښځو لره، او بعض بی دانش علماء وائی چې تراویح سنت عمر دی. بلکه صحیح دا ده چې سنت نبوی دی، م، در،

**تبصره** سره ددی چې توله کتابونه د فقهی شریفی تراویح سنت عین بولی د نرو او ښځو، لکن واعظان او امامان د مساجدو په باره کی سنت والی د تراویح ښځو لره ډیره کم تینگ او سخت بیان کوی په دی باره کی. او د دی سببه یه اکثرو کورو کی ښځی تراویح نه کوی منکر یوسپین سری په کور کی او د سرسایه په باره کی نرو ښځی لوی او کشنی گروه په تفصیل یا دوی. وفی البرهان، اجمعت الامة على مشروعية التراويح وجوازها ولم ينكرها احد من اهل القبلة الا الروافض، قاله علامه نوحؒ،

دروائی: چې ددی عبارت څخه د نوحؒ دا معلومه شوه چې روافض یه مطلقاً دمشروعیت څخه منکر دی، او هغه دمخه خبره چې دَ ښځو په باره کی سنت نه بولی قول دمصنفؒ وو په مراقی کی، قال فى المضمرات: التراويح سنة باجماع الصحابة رض ومن بعدهم من الامة ومنكرها فعال مبتدع مردود الشهادة، **سؤال:** مصنفؒ تراویح سنت بولی او قدوری وائی چې مستحب دی. فكيف التوفيق بينهما **جواب** د قدوری عبارت دا سی دی: ويستحب ان يجتمع الناس آه. نو ددی عبارت حاصل دا دی چې اجتماع دَ خلگو پر تراویحو مستحب ده وهو كذلك، او په دی دَلالت نه کوی چې خودی تراویح مستحب دی والی هذا ذهب بعض الفقهاء یعنی چې تراویح سنت دی او جماعت یه مستحب دی.

در وائی: چې دَ تراویح د لمانځه شروع د دی ځایه څخه شویده چې په حدیث نبوی صلی الله علیه وسلم کی په روایت د بخاری او مسلم دَ عائشه رضی الله تعالیٰ عنها څخه دا سی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یوه شپه یعنی په روژه کی په مسجد کی دَ تهجد لمونځ کاوه نو په مسجد نبویؐ کی بعض صحابهؓ چې حاضر وه هغوی په علیه الصلوٰة والسلام پسی اقتداء وکړه او د ده سری لمونځ په جماعت وکړی. او دو همه شپه یه هم لمونځ دَ تهجد په جماعت وکړی او صحابهؓ ترا ولی شپی ډیر وه، ولی هغه دَ بلی شپی څلگو

نورخبرکړي وه. او په دریمه شپه خلګ بېخي ډېر راغلي وه. قالتْ فلم یخرج الیهم رسول الله صَلی الله علیه وسلم: نو دا وائي چې دریمه شپه نبی علیه السلام ورو نه وَتی یعنی دهغه بوریا دحجرې څخه چې علیه الصلوٰة وَالسلام داعتکاف دپاره په مسجدنبویؐ کی جوړه کړي وَه، حتی چې دبعض خلګو ګمان داسُو چې علیه الصلوٰة والسلام بیده دی نوبعض بوریا په کشتی تسکوویشتله، اوبعض خلګوبه غاړي تا زه کولی، خو په هرصورت چې شپه تیره سوه نوآنحضرت صلی الله علیه وَسَلم چې دسحار لمونځ وکړی نوخلګوته یې وَوَیَله: چې ماولیده ستاسی اجتماع (ونو) کار چې تاسی کاوه، لکن زه دراوتو څخه وتاسی ته منع نه کړم مګرنه دی خبري چې زه وبیریدَم چې پرتاسی به دالمونځ فرض سي»

وایضاوَرَدفی بخاري ومسلم بروایة عائشة رضی الله تعالیٰ عنها» چې عَلیه الصلوٰة وَالسلام په روژه کی او په غیرکی دروژی تریوولس رکعتهٔ بالا لمونځ نه دی کړی وتر په کښې کذافی صحیحی ابن خزیمہؒ وابن حبّانؒ **سَوَال**: په حدیث کی چې روایت یې ابن ابی شیبه ؒ اوطبرانی ؒ وبیهقیؒ دابن عباسؓ داسی رَاغلی دي. چې علیه الصلوٰة والسلام شل رکعته نفل بیله وترو په رُوژه کی کول **جَوَابْ**: محدثانو ؒ داحدیث ضعیف ګنړلی دی بلکه شل رکعته په مواظبت دخلفاء راشدینؓ سوی دابوبکرۃ الصدیقؓ ثابت دی کذا قال الامام الطحطاویؒ» وفی البخاری ترهغه وخت چې رسول الله صلی الله علیه وَسَلم وفات کیدی کار د تهجد دلمانځه پرهغه ډول وو، یعنی پرانفرادی طریقه یا ته وو او په خلافت کی دابوبکرصدیق رضی الله تعالیٰ عنهم پرهغه ډول پاته وو، او په اول کی دخلافت دعمرؓ هم داغسی پاته وو خو چې عمرؓ خلګ سره جمعه کړه پرجماعت په دغه لمانځه کی په امامت دابی بن کعبؓ فکَانَ ذالک اول اجتماع النـاس علی قـاری واحدٍ فی رمضان کذا فی فتح الباری» حاصل دادی چې صَلوٰة التراویح په جماعت سره په حقیقت کی سُنت دی دنبی علیه الصلوٰة والسلام او دعمرؓ سنت نه دی،

**سَوَال**، بعض فقهاءؒ وائی که چاوویله چې تراویح سنت دعمرؓ دی لکه روافض چې وائی هغه کافر دی نوداحکم صحیح دی اوکه نه **جَوَابْ**: په ډیرو معتبرو کتابو کی راغلی دی چې تراویح سنت دی دعمرؓ په دی معنیٰ چې همیشه توب یې اوشل ۲۰ رکعت وَالی یې سنت دعمرؓ دی





او دا دی سره منافات نه لري چې اصل دتراویح سنت ده علیه الصلوٰة والسلام دی نوحکم دکفر بې معنا دی، بلکه په حدیث کی دا بونعیمؒ من حدیث عروبة الکندیؓ داسی راغلی دی چې علیه الصلوٰة وَالسّلام وویله» چې ترما وروسته به ډېر شیان نوي پیدا سی فاحبّها الیّ ان تلزموا ما احدثه عمرؓ» او امام طحطاویؒ وائي چې بحرالرائق دخلاصی څخه داسی نقل کړي دی چې دمشا ئخو ؒ اختلاف وو په دی کی چې تراویح سُنت دی او که مستحب دي، لکن دا اختلاف دفع سو په روایت دحسنؒ دابوحنیفهؒ څخه چې تراویح سنت دی کذافی المراقی، قال

**وَصَلاتُهَا بِالْجَمَاعَةِ سُنَّةُ كِفَايَةٍ** او کول دتراویحو په جماعت سره سنت کفائی دی. پوه سه، چې دتراویحو په جماعت سره کولو کی دری قوله دي، اول دا چې جماعت د تراویحو سُنت عین دی دنرو دپاره حتیٰ که یو سړي بیله عذره تراویح یوازی وکړی که څه هم په مسجد کی وکړی ګناه کار دی، ولی چې مخالفت دسُنت یې وکړی،

**مسَئَله**: بناء پردی چې وخت دتراویح بعدالعشاء دی که یو سړي دماختن لمونځ وکړی او تراویح یې هم وکړی او وتر هم، وروسته دا ور معلومه سوه چې دماختن لمونځ دی فاسد اداء کړي وو او تراویح او وتر دی صحیح کړي دي. نو حضرت الامام الاعظمؒ مذهب دادی چې د ماختن لمونځ دی را وګرځوی په سبب دفساد» او تراویح دی هم راوګرځوی. ولی تراویح یې بیا ثمایه وکړی، نو هغه تراویح چې ده دمخه وکړی هغه نفل خالص دی او وترو راګرځیده نه غواړي وَهُوَالصّحیح ط»

**پُوه سَه**: چې په وخت کی دتراویح دری قوله دی: اَول دادی، چې شپه ټوله وخت دتراویح دی که دمخه دماخستن ترلمانځه، او که وروسته دمخه تروترو وی او که وروسته، او دي مذهب ته بعض احنافؒ تللی دی چې یو هغو څخه اسمٰعیل الزاهدی دی، په بحرالرائق کی وائي چې ددی مذهب تصحیح چا نه ده وَیَلی، او دوهم مذهب دادی چې وخت دتراویح دلمانځه په مابین کی دماختن دلمانځه او وترو دی، الثالث دریم مذهب ما اختاره المصنفؒ فی نورالایضاح»

د دی خلاف فائده په دی کی ښکاره کیږی که یوسړی تراویح د مخه د ماخستن نږلمانځه وکړی، نو پر اول قول دغه تراویح صحیح دی او تراویح دي، او پر دوهم او دریم قول دا دغه لمونځ نفل صرف دی د تراویح د سنتو ځای نه نیسی، او یا یوسړی تراویح پسله وترو وکړی نو پر دوهم قول لمونځ تراویح نه دی، او پر دریم قول تراویح دی. او پس اول قول خوښ طریق اولی تراویح دی کما لا یخفی او یا دیوه سړی څخه یوه ترو یحه تیره سی په سبب د یوه عذر، نو چې وخت د وترو راورسیدئ، دده دا خیال وی که زه دا ترو یحه راګرځوم وتر په جماعت راڅخه تیریږی. نو پر اول قول دی وتر په جماعت وکړی او ترو یحه چې پاته سوی وه پسله وترو دی وکړی. او پر دوهم او دریم قول دی ترو یحه فائته ترو ترو د مخه وکړی که څه هم وتر بې جماعته کیږی، کله ذالک ظاهر لمن تفکر فی المذاهب الثلاثة، قال

## وَيَسْتَحِبُّ تَاخِيْرُ التَّرَاوِيْحِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ اَوْنِصْفِهٖ وَلَا يُكْرَهُ

او مستحب دی ځنډول د تراویح تر دریمی د شپی، او یا تر نیمی د شپی او تر نیمی شپی وروسته

## تَاخِيْرُهَا اِلٰى مَابَعْدِهٖ عَلَى الصَّحِيْحِ

ځنډول هم مکروه نه دئ. پر صحیح روایت"

**مسئله**: که یوه شپه تراویح د سړی څخه قضاء سوی صحیح مذهب دا دی چې بیایه قضاء نسته، او که څوک قضاء راوړی هغه نفل صرف دی" درمختار" او بعض فقهاء وائی چې د روژی د میاشتی تر تیریدو پوری قضاء سته، او بعض وائی چې د دوهمی شپی د تراویح تر وخت د مخه یې قضاء سته،

**او پوښتنه**: چې مراد د مصنفؒ د لا یکره څخه دا دی چې مکروه تحریمی نه دی ورنه خلاف الاولی خو یقیناً دی، نو ددی سبب مصنفؒ په مراقی کی وائی چې بنه کار دا دی چې تراویح دی تر اخیر اللیل پوری نه ځنډوی چې خوف ددی سته چې یک لخته به فوت سی په سبب د خوب: قال المصنفؒ:

## وَهِيَ عِشْرُوْنَ رَكْعَةً بِعَشْرِ تَسْلِيْمَاتٍ

او دا تراویح شل رکعته دی یعنی په اتفاق د صحابه کرامو په دوه





**فائده** رکعت دی سلام اړوی. او دا د قدیمی زمانی څخه تر ننی ورځی په میراث پاته ده، دری شل سره رکعته سره جوړ کړه یعنی سلام یې په اخیر کی د شلو رکعتو واړوه منګر یې دوه رکعته یې نا سته کوله نو کفایت د ټولو تراویحو خو یې کیږی لکن په قصد د اسی کول مکروه دی لکونه خلاف السنة" او هغه خبره چې منیة المصلی کړیده چې په دی کی کراهت نسته ولی چې تکلیف یې لا ډیردئ، کمال غلطه بللی ده چې ډیر مشقت په عبادت کی هلته سبب د مزید ثواب دی چې د شریعت پاکه سره برابری او ده سُنت سره موافق وي،

او دوهم مذهب دا دی" چې مستحب دا ده چې سړی دی تراویح په کور کی کوی، ولی چې د ریاء څخه لیری دی منګر نه هغه څوک چې لوی فقیه او عالم وی" چې په ده پسی خلک اقتداء کوی هغه دی په مسجد کی په جماعت کوی د پاره د ترغیب د خلکو، ولی چې په صورت کی د نه حضور ده تقلیل د جماعت راځی او عوام خو یې بیا کور هم نه کوی. او دریم مذهب دا دی" چې کول یې په جماعت سره سنت کفائی دئ، یعنی کی بعض کسان په جماعت وکړی. او بعض یې په کور کی وکړی هغه نه دی ګناه ګار، او که ټوله اهل مسجد د جماعت لمونځ پریښودیعنی تراویح ټوله ګناه ګار ه دي،

هذا احاصل ما فی البحر الرائق"

**تفریع** په اوسنی زمانه کی په سبب د سستی د مسلمانانو رواج دا سی دی چې په اکثر مساجدو تراویح د" اَلَمْ تَرَ كَيْفَ" آه په سورتو سره کوی، او بعض خلک چې د ختم القرآن سره ډیره علاقه لری هغه یوڅو کوره اتفاق سره وکی، او یې یو کور وی چې د لمانځه نفر یې ډیروی نو حافظ راولی په سراچه کی د ختم تراویح کوی، په دی کار هغوهیڅ حرج او ګناه نسته بلکه ښه کار دی، ولی چې په مسجد کی هغه دی جماعت کیږی، او بعض علماو د عصر حاضر چې حکم د ګناه کار پر د غو خلکو کړی دی او حواله یې و "رد محتار" ته کړیده هغه پر خطاء دی او، د رد محتار د عبارت معنا هغه ده چې ټوله اهل مسجد یې پریږدی یعنی جماعت په تراویح کی" بلکه درویش وائی که په مسجد کی د ختم القرآن تراویح کیدلی او یو سړی د خپلی کهالی په سبب تراویح یوازی کور کولی هغه هم نه دی ګناه کار" اګرچه فضیلت د جماعت په تراویحو کی دی خصوصاً په ختم القرآن سره، فتامل ولا تلتفت الی الشهرة"

**مسئله**: یوامام دوه ځایه په تراویح کی امامت نسی ورکولای وعلیه الفتوی، ولې چې سنت په یوه وخت نسی مکرر کیدلای، اودوهم تراویح به صرف نفل ګرځي او د قوم اقتداء د سنت التراویح پسې کړیدَه، **مسئله**: داسی سړاده کراهت فسته په کښې چې یوسړی یو وار په یوه امام پسی تراویح وکړی او بیا په بل امام پسی، ددی مثال دادی لکه یوسړي چې د ماپښین یا ماخستن لمونځ یواځې وکړي او بیا جماعت ورته پیدا ي دی هم اقتداء پسی وکړي. **سوال**: په حدیث شریف کی راغلی دی: وَلَا يُصَلّٰى بعد صلوة مثلها **جواب**: دادوه لمونځونه خوسره مثل نه دي، ولې چې یو منفرد دی او بل په جماعت دی، نو محمل د حدیث دادی چې یوسړي یو وار لمونځ په یو مسجد کی په جماعت وکړي او بیا په بل مسجد کی هم په جماعت پیښ سُو، بیا یې په جماعت کوی دا مکروه دَه، او یا یو سړی یواځې لمونځ اداء کړي، او بیا هغه لمونځ یوګړي وروسته بیا انفرادًا کوي،

**پوښتنه**: چې تراویح په جماعت سره افضل دی تر یوازې کولو، بعض فقهاءُ وائي چې جماعت په تراویح کی داسی دی لکه جماعت په فرضی لمانځه کی یعنی ثواب یې په (۲۵) درجې یا ۲۷ درجې تر یوازې کولو بالا دَی، او بعض علماءُ وائي چې جماعت د تراویح صرف افضل دی تر یوازې نه په قید د عدده ۲۵. یا ۲۷، وهذا هُوَ الصَّوَابُ: او افضل چې پر وجه د تداعی نه وی هم په جماعت افضل دی تر یواځي، **مسئله**، که سړی د تراویح لمونځ او یا فرضی لمونځ په کورکی په جماعت وکړي یو فضیلت خو پر ځای سُو چې جماعت دی او بل فضیلت فوت سو، فان الاداء فی المسجد له فضیلة زائدة علی الجماعة فی البیت، قَالَ المُصَنِّفُ

## وَوَقْتُهَا بَعْدَ صَلٰوةِ الْعِشَاءِ وَيَصِحُّ تَقْدِيْمُ الْوِتْرِ عَلَى التَّرَاوِيْحِ

او وخت د تراویح په اداء کولو د ماخستن د لمانځه دی، قال فی المراقی ملی الصحیح الی طلوع الفجر آه، او صحیح دی دغه

**وَتَاخِيْرُهُ عَنْهَا** کول د وترو پر تراویح، او وروسته کول تر تراویح، ولی چې تراویح تبع د ماخستن د لمانځه دی د وترو طبع نه دی. لکن بیا هم تاخیر د وترو افضل دی، وهو المعمول فی جمیع بلاد المسلمین »





**مسئله**: که سړي څلور رکعته تراویح په یوه سلام وکړي او په مابین کی نه کښینستی نو دغه څلور رکعته پر دوه رکعته حساب کیږی فی الصحیح، مر،

**سوال**: دفقه شریفې په کتابو کی وائي چې د میانځ ناسته په څلورو رکعتو کی د نفلو واجب دَه او په سجده سهوه سره ئې جبیره کیږی نو په مقتضی د دغی مسئلی باید څلور رکعته حساب سی او سجده سهوه پر لازمه سی که چیری دا کار سهوًا وي **جواب**، تراویح که څه هم اصلًا نفلی دی لکن پر نورو نفلو نه قیاسیږی، ولی چې تراویح پر هیئت مخصوصه مشروع سوي دي چې پر هر دوه رکعته به سلام ګرځوی، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَيَسْتَحِبُّ الْجُلُوْسُ

## بَعْدَ كُلِّ اَرْبَعٍ بِقَدْرِهَا وَكَذَا بَيْنَ التَّرْوِيْحَةِ الْخَامِسَةِ وَالْوِتْرِ

او مستحب ده ناسته پسله هر څلور رکعته په قدر د هغه څلورو رکعتو او دغه رنګ مستحب ده ناسته په مابین کی د پنځمی ترویحې او د وترو په قدر د څلورو رکعتو **مسئله**: پسله دوو رکعتو ناسته مکروه ده» ط» وفی الکافی: مکروه ده قعدهٔ استراحت پر پنځه سلام باندی په نیز د جمهورو وجه د استحباب مذکور داده چې توارث پر دغه دَول با ندی راغلی دی وهذا هو المروی عن ابی حنیفةؒ **مسئله**: خلک په جلسة الاستراحة کی اختیار لري که تسبیح وائي او که قرائت وائي او که یوازې یوازې نفل کوی او که ساکت کښینی،

**فائدَهٔ**: په اکثرو مسا جدو کی امام تسبیح وائي او خلګو غوږ ورته نیولی وی. په نیت د دی چې مونږ ته به په سبب د سماع دَ تسبیحا تو خدائ ثواب را کړي، ولې چې سامع کالتالی» لکن دا غلطه خبره ده چې سامع کالتالی» سامع کالتالی خاصه د قرآن مبارک دَه، البته د مقتدیانو غاړی نه دی بندی وَلی چې ساکت خونا ست دی. او که یو قاری قرائت ووائي جهرًا او نورو غوږ ورته نیولی وي ټولوته خدائ ثواب وَرکوي.

**دَامامانو غفلت** **پوښتنه**: چې ملایا نسره ددی چې دفقه شریفې په کتابو کی دا مسئله وینی چې مستحب ده تاخیر د تراویحو تر ثلث اللیل پوری

خوبیادوی په روژه کی د تراویحو تلوار د سببه د ماخستن اذان په ډیرو مسجدو کی د مخه تر د اخلید وو وخت د ماخستن کوی، او بیانو په ډیر تلوار په تراویحو کی هغه لنډ لنډ سورتونه وائی چې سامع ته د حروفو تمییز نسی کولای، خو میږه هغه ملادی چې د ماخستن لمونځ او دوه رکعته سنت او شل رکعته تراویح سره د جلسانو او سره د ده دری رکعت وترو او سره د قرائت د تبارک الذی آه په نیم ساعت کی سره ورسوی، او چې بخوا ښي د ماخستن لمونځ او سنت او وتر کوله هغه وخت د اټول معامله سره خلاصه کړي، او په جلسة الاستراحت کی صرف دری واره سبوح قدوس، آه تسبیح وائی فابس. نو ته فکر وکړه چې دغه دری واره تسبیح به په قدر د څلورو رکعتونو وی او که څرنګه!

او د اختر په ورځ به نو جدید کالی اغوستی وی او عطر به هم لګولی وی او د سرمایه په باب کی ډیر او ږد بیان کوی تا چې د روژی د تراویحو محصول ورته ملاو سي. برین عقل و دانش باید گریست

چې د احال د ملایانو دی نو د امیانو څه ګله ده» قال المصنف:

## وَسُنَّ خَتْمُ الْقُرْاٰنِ فِيْهَا مَرَّةً فِى الْاَشْهَرِ عَلَى الصَّحِيْحِ

او سنت ګڼل سوی دی ختم د قرآن مبارک په تراویحو کی یو وار په میاشت کی د روژی په اشهر روایت کی پر صحیح مذهب د امام اعظمؒ، قال فی المراقی وهو قول الاکثر» نو په هر رکعت کی لس ایت وائی. یا مثل د هغه په ایاتو طویله وو کی، **مسئله**: یو وار ختم د قرآن خو سنت دی او دوه واره فضیلت دی، او دری واره یعنی په هرو لسو شپو کی یو وار سی افضل دی. کذا فی

**پوښتنه**: چې په صحیح تاریخ کی د امام اعظمؒ رحمة الله علیه راغلی دی چې ده د روژی په میاشت کی یو شپیته واره ختم د قرآن مبارک کاوه. په هره شپه کی یو ختم چې دیرشی، او په هره ورځ کی یو ختم چې داهم دیرش سی او مجموع شپیته سی، وفی جمیع التراویح یو ختم کاوه چې یو شپیته سی، وروی عنه، چې ده په دوه رکعته کی په داخل کی د بیت الله الشریف یو وار قرآن پاک ختم کړی » واشتهر، چې امام اعظمؒ څلویښت کاله د ماخستن په او د اسه د سحار لمونځ کړی دی، او د امام اعظمؒ د دښمنانو چې په سر کی خطیب بغدادی دی





او د نورو وهابیانو د ندان شکن جوابونه په تفصیل سره لیکلی دي او په شرح کی د قدوری می هم تفصیلی بیان کړی دی، او که مستاد امام اعظمؒ سره محبت سته او غواړی چې د ده مبارک تاریخچه په تفصیل سره او پر صحیح د ول زده کړم، نو د درویش شرح پښتو پر فقه اکبر باندی په غور مطالعه کړه او د خپل زړه تشفی په وکړه»

**مسئله**: که امام د مسجد دیوقوم ختم القرآن نه کاوه نو ده ته روا ده چې بل مسجد ته ورلاړ سي کذا فی فتح القدیر» **فائده**: فی فتح القدیر و التبیین کی داسی راغلی دی: که خلکو قرآن مبارک په تراویح کی تراخیره د روژی د مخه ختم کړي بعض فقهاء وائی چې د غو خلکو ته مکروه نه ده چې د پاته شپو تراویح پرین دی، ولی مقصود خو ختم القرآن وو هغه خو سو او اکثر فقهاء وائی چې د پاته شپو تراویح به کوی او کم سورتونه چې په کښی وائی د ده خوښه ده، درویش وائی چې په دی مذهب باید سړي فتوی ورکړي. ولی بعض خلک په لس شپی کی ختم القرآن کوی. نو پر اول مذهب شل شپی د روژی مبارکی میاشتی به بیله عبادت د تراویحو پر ده تیریږی، بلکه بعض قاریان په درو شپو کی خلکو ته د ختم القرآن تراویح ورکړی

**مسئله**: که قاري د ختم القرآن تراویح خلکو ته ورکولي. او یو سورت او یا یو ایت ته هیر سو، او ورو سته سورت یا ایت یه وو ایه ورو سته ور یاد سوه نو مستحب داده چې هغه متروک سورت یا ایت دی بیرته ووائی او ورو سته هغه وئیلی سورته یا ایت دی بیا ووائی تا چې ترتیب د قرآن برابر سي. ط

**فائدة جليلة**: ټول رکعتونه د تراویح په میاشت کی د روژی که میاشت پوره وی شپږ سوه رکعته دي. او که میاشت کمه وی نو به شل کم شپږ سوه رکعته کیږی نو نر لس ایت دی په هر رکعت کی څه بالا وائی که څه هم میاشت پوره وی، ولی د قرآن مبارک ایتونه تر مجموع هغو ایتو چې ده په کامل میاشت کی په هر رکعت کی لس لس ایته وئیلی دی پر هغو بالادی شپږ سوه شپیته ایت. **فائدة سنية**: ټول ایتونه د قرآن مبارک په نیز د حنفیانو شپږ سوه او شپږ شپیته ایت دي. ۶۶۶۶ په دی ایتو کی زر ایته د وعد الجنة دی، او زر ایته د وعید بالنار دی، او زر ایته امرونه دی، او زر ایته

د نهی دی، او زر آیته د قِصو دی، او زر آیته اِخبارات دی، او پنځه سوه آیته حلال او حرام دی او سل آیته دعاء او تسبیح دی. او شپږ شپېته ناسِخ او منسوخ دی، کذا قال الشعبی ناقلا عن الکشاف» قَالَ الْمُصَنِّفُ»

## وَلَوْمَلَّ الْقَوْمُ قَرَءَ بِقَدْرِ مَالَايُؤَدِّيْ اِلٰی تَنْفِيْرِهِمْ فِي الْمُخْتَارِ

او که چیری ستړی کیدله مقتدیان د اوږده قرائت څخه او یا د ختم قران څخه، نو امام دی هغه قدر قرائت وائی چی سبب د دوی د نفرت ونه ګرځی. او یک لخته تراویح پرې نږدی، په مختار مذهب کی، یعنی د متأخرینو، په مراقی کی وائی چی افضله زمونږ په زمانو کی بلکه په تولو زمانو کی دومره قرائت ویل پکار دی چی سبب د تنفیر د قوم او د تقلیل الجماعت و نه ګرځی او په محیط کی وائی چی ډیر والی د قوم افضل دی په جماعت کی تر تطویل د قرائت و غیره» او زاهدی وائی چی په تراویح کی دی لکه د ماښام په لمانځه کی قصار مفصل سورتونه وائی پس الحمد لله څخه او مکروه دی تحریمًا کم تر دری آیته قصار او یا یو آیت طویله لترک الواجب»

**فَائِدَهْ:** هغه خبره چی ابی الفضل الکرمانی او وبری کړیده چی په او س زمانه کی چی سرې تر الحمد لله وروسته یو آیت یا دوه آیته ووائی هیڅ کراهت نشته، او په بای کی ویئیلی دی: وَمَن لم یکن عالمًا باهل زمانه فهو جاهل» انتهی» ددې روایت په باره کی امام طحطاوی وائی چی مراد دیوه آیت څخه یو آیت طویله دی، او د آیتونو څخه دوه آیته متوسط دی، ورنه پر ظاهر دا قول ډیر ضعیف دی چی په دی کی تفریط په ترک د واجب آه قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَلَايَتْرُكُ الصَّلٰوةَ عَلَی النَّبِيِّ صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اونه دی پرېږدی درود پر علیه الصلوٰة والسلام په هره تشهد کی د تراویح که څه هم قوم

## فِيْ كُلِّ تَشَهُّدٍ مِنْهَا وَلَوْمَلَّ الْقَوْمُ عَلَی الْمُخْتَارِ

خوابدی کیږی - پر مختار قول باندی،



ولی درود زمونږ په نیز سنت مؤکد دی. او په نیز د حضرت الامام الشافعی فرض دی فلا یصح الصلوٰة عنده بدونه، نو ترک یه مکروه تحریمی دی» قوله علی المختار ای علی المذهب المختار، ولی چی دا عین کسل دی په عبادت کی، او په مراقی کی وائی چی ند رمته چابک چابک ویل د قران دی هم نه کوی. چی ودی ته ترک د الترتیل وائی لکه بعض ملا چټک اخند چی کوی» قَالَ اللهُ تَعَالٰی: وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا» او تعدیل الارکان دی هم نه پرېږدی یعنی سمه رکوع او سمه ولاړه د رکوع څخه، او ناسته په مابین د دوو سجدو او سمه سجده» ولی دا کار د هغو امامانو دی چی د خدایه څخه نه بیریږی، په حدیث شریف کی راغلی دي چی بد غل هغه سړی دی چی د لمانځه غلا کوی» یعنی په ترک د تعدیل الارکان وغیره، او دا عین سستی ده په عبادت کی د خدائ: قَالَ اللهُ تَعَالٰی: وَاِذَا قَامُوْا اِلَی الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰی، او ط وائی چی اَعُوْذُ بِاللهِ پریښل ځای کی او بِسْمِ اللهِ په هر رکعت کی او جلسة الاستراحة دی هم نه پرېږدی کی څه هم کراهت تنزیهی دی. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَلَايَتْرُكُ الثَّنَاءَ وَتَسْبِيْحَ الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ

اونه دی پرېږدی سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ په ابتداء کی د هری شفع، او نه دی پرېږدی تسبیحات د رکوع او سجدی: ولی چی دا تسبیحات سنت مؤکد دي په مشهور روایت کی دامام اعظم څخه، او فرض دی په روایت کی دابو مطیع بلخی چی د امام اعظم شاګرد دی. او بعض فقهاء وائی واجب دی، نو پریښول یه مکروه تحریمی دی **پوښتنه**، چی درود ویلو په باب کی دومره قدر کفایت کوی: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ»، ولی چی دا هغه قدر په نیزد امام شافعی فرض دی، حتی که مانځه په ناسته کی د فرضی لمانځه یا د سنن رواتب د هغه قدر سهوًا ووائی سجده پر لازمیږی» دا» او سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ به امام هم وائی او مقتدی بی هم وائی او منفرد بی هم وائی»

**دَ نُن صَبَا شِکَایَت»** امامان د تراویح دومره چټک دی چی تکبیر تحریمه وائی دوی بیا په قرائت شروع وکړی نو وَ اللهُ اعلم چی دوی سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وائی او که څه نګه! چو کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلمانی،

سه که څنګه یې د دنیا په کار څټک سه :: په خدائی کارو کی سعیه کړه زهریه»

قال المصنف: **وَلَا يَأتِي بِالدُّعَاءِ إِنْ مَلَّ الْقَوْمُ** او را تګ دی نه کوی په دعا سره که چیری قوم په ملال کی واقع کیدله، پوه سه چی مراد د دعا څخه هغه دعا ده چی وروسته تر درود ویئیله کیږی. لکن مراد دلته دعاء طویله ده صرح به الطحطاوی، او اما مانو دا فهمولی ده چی اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا دی هم نه وائی بس فقط چی لنډ درود یې وواییه سلام دی ګرځوی لکن دا فهم غلط دی» ولی چی مصنف په مراقی کی وائی: وَلَا یترکه بالمرة» او دعا دی نه پریږدی یک لخته بلکه یو تر ټولو لنډه دعا مثلاً اَللّٰهُمَّ اغفرلنا چی ووائی هم سنت پرځای کیږی» در، ط، م، قال المصنف:

---

## وَلَا تَقْضِى التَّرَاوِيحَ بِفَوَاتِهَا مُنْفَرِدًا وَلَا بِجَمَاعَةٍ

او قضا نه او ره کیږی د تراویح چی قضاء سی نه یواځی او نه په جماعت سره، او کی څوک قضاء را ورې هغه نفل او مستحب دی تراویح نه دی، د عدم قضاء دلیل یه دادی چی تراویح ټینګ سنت نه دی تر سنتو د مابنام یا ماخستن او هغو قضاء په فوات کی نسته، نو تراویح قضاء په طریق اولیٰ نسته، ولی قضاء د فرائضو او واجباتو خاصه ده، **پوه سه** چی تراویح د سنتو څخه دوخت دی یعنی شپی د روژی د میاشتی، او د سنتو څخه د روژی نیولو نه دی، قال علیه الصلوٰة والسلام: و سُنَّتُهٗ لکم قیام لیله، حتیٰ چی مریض او مسافر چی روژه یې خوړلی وی یا حائض او نفساء، چی پاکه سی شپی ته او یا کافر مسلمان سی د شپی تراویح به کوی. وفی القنیة» لَوْتَرَكُوا الجماعة فِي الْفَرْضِ لَيْسَ لَهُمْ اَنْ يُصَلُّوا التراويح بجماعة لانها تبع له آه فافهم»

---

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولمن سعىٰ فيه ولجميع امة النبى صلى الله عليه وسلم

كتبه بقلم احقر الوراء فضل الحق حقانى بكوئته بلوچستان. ۲۵-۷-۲۰۰۱ء





# بَابُ الصَّلٰوةِ فِي الْكَعْبَةِ

باب دی په بیان کی د لمانځه په کعبه شریفه کی. یعنی په داخل کی د بیت الله شریفی او د باندی او سر بیره پر بام د بیت الله شریفی **فَائِدَه**: په ډیرو شروحو کی د فقه د کتابو داسی راغلی چی کتاب هغه مبحث ته وائی چی مشتمل پر ډیرو بابو وی. او باب هغه مبحث ته وائی چی په ده کی ډیر فصلونه وی. او فصل هغه مسائل متعدده دی چی دیوی نوعی څخه وی د روښن وائی چی دا تفصیل شاید پر غالب بناء وی. ورته دا فرق په باب الصلوٰة فی الکعبة، باب صلوٰة المسافر وغیره سره منقوض دی، ولی چی دی بابو کی هیڅ فصل نسته» نو صحیح فرق دا دی چی هغه مباحثو ته چی اجناس مختلفه په کښی موجود وی. کتاب وائی لکه نور الایضاح چی کتاب دئ

او هغه مباحث د هغه ده ما قبل او ما بعد څخه جلاوی هغه ته باب وائی. که فصول په کښی وی او که نه لکه باب الصلوٰة فی الکعبة وغیره، او هغه مباحث چی ډیری مسئلی وی او متحدة النوع وی هغه ته فصل وائی، کما مر من الفصول فی هذا الکتاب» فافهم واحفظ فانه سانح جدیده

**فَائِدَه**: پوه سه چی د غه معروفی شریفی خونی ته کعبه وائی: بعض علماء یه وجه د تسمیه چار کنجه والی وائی. او بعض علماء وائی وجه د تسمیة ډیر جګ والی دئ. ومنه الکاعب لمن ارتفع ثدیها» او د غه خونه بیت الله هم بولی. او اضافت د بیاره د تشریف د مضاف ده، او حقیقت دا دی بیت عبادة الله» او بیت الحرام یې هم بولی، د دی سببه چی قتل وقتال په دی کی حرام دی، او بیت عتیق یې هم بولی. یعنی قدیمه خونه قال الله تعالیٰ: اِنَّ اَوَّلَ بَیْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِیْ بِبَکَّةَ» الایة، او قبله یې هم بولی ولی چی مسلمانان د لمانځه په وخت کی دې ته مخامخ دریږی. **پوه سه** چی په لمانځه کی استقبال د قبلی ته شرط دی، نو د استقبال القبلة معنا څه ده! په عنایه کی وائی چی شرط د لمانځه مخامخ والی دی ویو جزء ته د کعبی شریفی یا هواء ته د هغی

مبارکی خونې ترآسمان پورې. اوخودې دا محدوده خونه فقط قبله نه ده، ولې چې صحابه کرامو په زمانه کې دموقت حکومت دعبد الله بن الزبیر چې داخونه ونړوله نوی بناء دپاره لمونځ یې وهواء ته دکعبې کاوه، اوهیڅ چا دا نقل نه دی کړی چې دخولې مبارکې پرځای یوه پرده واچول شوه. اوبله خبره داده چې څوک چې پرجبل ابی قبیس لمونځ کوی نوخو هیڅ جزء دکعبې د ده ومخته نه دی فقط هواء دکعبې د ده ومخته ده او اجماعًا یې لمونځ روا دی. قال المصنف:

صَحَّ فَرْضٌ وَنَفْلٌ فِيهَا صحیح دی فرضی لمونځ اونفلی لمونځ په دننه کې دکعبې وهره خواته چې مخ وي: لقوله تعالیٰ فی قصة بناء ابراهیم وابنه اسمٰعیل علیهما الصلوٰة البیت الشریف: أَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ، الآیة، مراد د رکع السجود څخه لمونځ کوونکی دی، نو دې امر الهی څخه دا ظاهره شوه چې لمونځ په کښې روا دی. قال

وَكَذَا فَوْقَهَا وَإِنْ لَمْ يَتَّخِذْ سُتْرَةً اودغه رنګه لمونځ روا دی پربام دکعبې شریفې که څه هم لمونځ کوونکی د مخ وخواته پرده نه وي اچولې، ولې چې په دې صورت کې که خونه لا ندې پاته شوه. هوا خویې ترآسمان پورې قبله ده نو استقبال القبله خونه پاتې نه شي. قال المصنف

لَكِنَّهُ مَكْرُوهٌ لِإِسَاءَةِ الْأَدَبِ بِاسْتِعْلَائِهِ عَلَيْهَا لکن دغه کار مکروه دی په سبب د بې ادبی یعنی ظاهرًا لان حقیقة سوء الادب بها کفر، ط دکعبې سره په لوړ والی کې پردې بانديې، په حدیث کې دبلال څخه راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په خونه دکعبې کې داخل شو. اولمونځ یې په کښې وکړې، اود لمونځ دعلیه الصلوٰة والسلام که څه هم نفل وه، لکن د نفلو او فرضو په شرط والی کې داستقبال القبلة فرق نشته کې څه هم په ارکانو کې فرق شته،

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه آمین





قال المصنف وَمَنْ جَعَلَ ظَهْرَهُ إِلَىٰ غَيْرِ وَجْهِ إِمَامِهِ فِيهَا أَوْ فَوْقَهَا اوکه چا وګرځول شاه خپله وما سواته دمخ دامام په دننه کې دکعبې شریفې اویا پربام دهغې

صَحَّ وَإِنْ جَعَلَ ظَهْرَهُ إِلَىٰ وَجْهِ إِمَامِهِ لَا يَصِحُّ نو اقتداء یې پسې صحیح ده اوکه شاو مخته دامام و اقتداء یې نه ده پسې روا،

پوهه سه: چې مصنف په مراقی کې په شرح کې ددې قول: وَمَنْ جَعَلَ ظَهْرَهُ آه دا صورتونه بیان کړي دی ۱ چې د مقتدی مخ وشاته د امام وي، ۲ د مقتدی مخ وبغل ته دامام وي، ۳ د مقتدی شا وبغل ته د امام وي، ۴ شاه د مقتدی وشاته دامام وي، ۵ بغل د مقتدی وبغل ته دامام وي، ۶ بغل د مقتدی وبغل ته د امام وي په داسې حال کې چې مقتدی متوجه وي وغیرته د جهت دامام، اودا قید ددې دپاره دی که په جهت کې دامام وي څو په طریق اولی یې اقتداء پسې صحیح ده، ۷ یا مخ د مقتدی ومخته دامام وُو، په دې اوو صورتو کې اقتداء په دغه امام پسې صحیح ده، مګرکې مخ ومخته دامام وو نو مکروه تحریمي دی، ولې چې مشابهت د عبادة الصور سره لازمیږي،

اوداهلته کراهت دی که په مابین کې د مقتدی اوامام پرده وغیره نه دی، اوکه پرده وغیره وه بیا کراهت نشته، ولې چې تشبه دعبادة الصور سره نه لازمیږي، اوپه هغه صورت چې د مقتدی شا ومخته دامام وي اقتداء یې نه ده پسې صحیح، ولې چې په دې صورت کې مقتدی ترامام د مخه ولاړ دی، اوپه هغه اوو صورتو کې که څه هم مقتدی و دیوال ته دکعبې شریفې ترامام نژدې ولاړ وی لمونځ په دې سبب صحیح دی چې تقدم پرامام چې ناروا دی هلته دی چې جهت به یو وي، اوپه هغو صورتو کې خو جهت مختلف دی، قال المصنف

وَصَحَّ الْاِقْتِدَاءُ لِمَنْ كَانَ خَارِجَهَا بِإِمَامٍ فِيهَا وَالْبَابُ مَفْتُوحٌ اوصحیح ده اقتداء دهغه چا چې دباندې ترخونې دکعبې ولاړ وي په هغه امام پسې چې دننه په خونه

کی وَلاړوی اودروازه دَخونی خلاصه وي، **پـوه سـه**: چی داحکم عام دی که دامام سَره ېـ ونه کی نور مقتد یان وَلاړوی اوکه نه! ولی چی داداسی دی لکه په نورو مسجدوکی چی امام یوازی په محراب کی ولاړوي. **فـائـده**: داخبره چی دروازه به خلاصه وی اتفاقی ده، ولی که مقتدی خارج البیت تکبیر ونه وغیره دامام داخل البیت اوریده بیا اقتداء یی صحیح ده که څه هم دروازه تړلی وي. قَـالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَاِنْ تَحَلَّقُوْا حَوْلَهَا وَالْاِمَامُ خَارِجَهَا صَحَّ اِلَّا لِمَنْ كَانَ

او که شاوخوا خلگ پر کعبه شریفه راوګرځید له، اوامام هم دبا ندی ولاړوو د ټولو اقتداء

## اَقْرَبُ اِلَيْهَا فِيْ جِهَةِ اِمَامِهٖ

پسی رواده مګر دَ هغه چا اقتداء نه ده پسی رَوا چی وکعبی شریفی ته نژدی وي ترامام په جهت کی دامام، وَلي هغه نژ امام د مخه ولاړدی، اوپه نورو جهتوکی که څه هم بعض مقتدیان وه دیوال دکعبی شریفی ته نژدی وي ترامام لمونځ او اقتداء یی رواده، وَلي چی تقدم اوتأخر په نیزد اتحاد الجهة معلومیږی، **مسـئـله**: خلګ چی پر کعبه شریفه راتاوېږی ده هغه چا لمونځ نه دی صحیح چی یو جزء دکعبی د ده پر مخ نه وي برابر که څه هم پر جهت دکعبی وي، ولی چی په اتفاق دَټولو مذهبو څوك چی لیدونکی دکعبی وي هغه لره شرط دَصحت د لمانځه برابر والی دی پر عین دکعبی او ده ته جهت اصابت په کافی نه دی. حاصل دادی چی په صورت مذکوره کی دمتن که یوه چا مخ وديوال ته وی او دبل مخ پر کنج دکعبی برابر وي او دبل مخ وبل دیوال ته وي یا بل کنج ته وي وهکذا د ټولو لمونځ روادی او اقتداء یی په امام پسی صحیح ده» الالمن کان آه

**مسـئـله**: چی امام په دننه کی دخونی دکعبی وی او نور څوك نه وي ورسره ولاړ لمونځ مکروه دی په دوه سببه یو خو امام پر لوړ ځای ولاړدی، ولی چی تخت دَخونی دکعبی پرده باندی محکه لوړدی، او بل داچی امام یوازی ولاړدی لکه په نورو مساجدوکی چی امام په داخل کی د محراب یوازی ولاړوی» کذا قال الامام الطحطاوی».





# بَابُ صَلٰوةِ الْمُسَافِرِ

داباب دی په بیان کی دَ لمانځه دمسافر، **پـوه سـه**: چی اضافت د صلاة ومسافر ته اضافت د فعل ده وفاعل ته اوپه بل عبارت اضافت دَحال دی ومحل ته، اوهغه خبره چی مراقی زیاته کړی ده چی دا اضافت دَشی وشرط ته، ط، وائی چی شرط خو سفردی مسافر خونه دی» درویش وائی که مراد دمراقی مسافر من حیث هو مسافروی نواعتراض د ط نه پر واردیږی» فافهم **پـوه سـه**: چی سفر په لغت کی مطلق قطع دیوی مسافه، که ډیره وی اوکه لږ، او په شرع کی قطع دمسافت مقدره یعنی معلومه په مخصوص تګ سره چی مصنف به اوس بیانوی» قَـالَ الْمُصَنِّفُ:

## اَقَلُّ مُدَّةِ سَفَرٍ تَتَغَيَّرُ بِهِ الْاَحْكَامُ

کمه مده دسفر چی په هغه سره آحکام دَشرعی بدلیږی لکه قصر د لمانځه وجوباً زمونږ په نیز او یا جواز دخوړلو د روژی الی غیر ذالک: قال الامام الطحطاوی چی سفردری قسمه دی: یو سفردی د طاعت دَپاره لکه سفرد حج، دَجهاد وغیر ذالک» اوبل سفر مباح دی لکه د تجارت دَپاره او یا سفرد سیاحت دَپاره وغیر ذالک، اوبل سفردی دمعصیت دَپاره لکه سفرد قطاع الطریق، او یا سفرد چا د وژلو دپاره وغیر ذالک» نو دوه اول خو سبب د رخصت دی په اتفاق د ائمه اربعه و»، او د ریم زمونږ حنیفیانو او امام اوزاعی دی د ده په نیز او د داؤد او امام مزنی په نیز هم، او د بعض مالکیانو په نیز هم سبب د رخصت دی» اوامام شافعی او امام احمد، او بخیله مالک وائی چی سفرد معصیت سبب د رخصت نه دی، دَلائل دَدواړو ډلو په نورالانوار او په فتاواوو کی د فقهی شریفی وګوره »

**فـائـده**: مسافر دَمقیم نه په دغو احکامو کی جلادی ۱: چی پر مسافر لازم دی قصرد لمانځه یعنی څلور رکعته فرضی لمونځ به دوه رکعته کوی، ۲ ومسافرته مباح دی خوړلو

د فرضي روژې ۳ مدة د مسح د موزو د مسافر دپاره درې ورځې ده، ۴ او فرضیت د صلوٰة الجمعة ځني ساقط دی، ۵ او وجوب د اخترو د لمونځو، او وجوب د اضحیه هم ځني ساقط دی»

## بنـهـانـه فـائـده

**پوهـسـه**: چې رخصت ضد د عزیمت دی، عزیمت هغه فعل ته وائي چې مشروع عیث یه په سبب د عذر نه وي، وهو معنی قولهم ما تقرر علی الامر الاول. لکه پنځه لمونځونه، روژه وغیره. او رخصت هغه کار ته وائي چې د سختی نه اساني ته رانقل سوی وي په سبب د یو عذر. او رخصت دوه قسمه دی یو رخصت حقیقی دی چې رخصت ترفیه یه هم بولي، ای تخفیف، هغه هغه رخصت دی چې عزیمت یه هم مشروع وي او موجب د ثواب هم وي لکن په سبب د بندگی د عجز او د عذر له کبله هغه سختی چې په عزیمت کې وه په یسر او ترفیه سره د شارح مهربان د خوا بدله سوی وي، لکه په زوره کلمه د کفر ویل د هغه چاچې بل سړي د قتل پیش رو ورکړی وي، نو د غه سړي په سبب د دغه عذر اجراء د کلمة الکفر روا ده. په شرط د دی چې زړه یـه مطمئن بالایمان وي،

او که دی په عزیمت عمل وکړی او هغه بل سړي مړ کړي شهید دی. او یا لکه خوړل د روژی په سفر کې چې د ده ته د اساني د پاره روژه خوړل روا دی، او که مسافر په عزیمت عمل وکړي او سره د مشقت روژه ونسي ثواب یه ډیر دی» او بل رخصت مجازی دی یعني چې مجازًا یه رخصت بولي، دا هغه رخصت ته وائي چې عزیمت یه بیخي مشروع نه وي او نه موجب د ثواب وي، لکه قصر لمانځه رباعی د پاره د مسافر نو رخصت یه په دی بولي چې دوه رکعته لمونځ نظر و مقیم ته کم سو، لکن په حقیقت د غه دوه رکعته د مسافر د پاره عزیمت دی حتی چې مسافر اختیار نه لري چې لمونځ پوره وکړي بلکه عمل بالرخصت یه لازم دی حتی که دی پوره پوره لمونځ وکړي هیڅ ثواب یه نشته، ولې چې ثواب په هغه کار کې دی چې بنده په امر سوی وي. نه په اعداد و کې د رکعتو، او د مسافر دوه رکعته تو له ما امر به دی، حتی چې د مقیم څلور رکعته او د مسافر دوه رکعته فرق نه سره لري په ثواب کې،





او یا یو سړي ته بل پیش رود مرګ ورکړی چې ته به شراب څښې، نو دی ته بخواه مخواه شراب څښي، ولې چې شراب خو په ابتداء کې د اسلام روا وه نو که دغه سړي شراب نه وڅښي او هغه بل سړي دی مړ کړي، دی ځپلو وژلو ګناه کاردی، هکذا اصح الفقهاء للمذهب الحنیفیؒ

**پوهـسـه**: چې رخصت ترفیه ګاهي په مابین کې د دوو کارو وي. چې یو یه نزیل آسانه وي. لکه د سړي چې موزي په پښو وي، نو ده ته اختیار دی که موزه نه کاږی او مسح پر کوي» چې دا آسانه دی، او که موزی کاږی او پښې پرې مینځي چې دا کار ګران دی. او دا غاړه نګه پوهسه چې که مسافر څلور رکعته لمونځ وکړي ثواب خو یه نشته کما مرّ بلکه ګناه کاردی په سبب د دی چې د لمانځه سلام یه وځنډاوه، او په دی عقیده هم ګناه کاردی چې دده په عقیده دا دوه رکعته زائد هم فرض دي ه

قـال المصنفؒ **مَسِيرَةَ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ مِنْ اَقْصَرِ اَيَّامِ السَّنَةِ** تګ دی د درو ورځو د هغه لنډو ورځو د کال چې ورځې د ژمي دي. قـال فی المراقي چې مصنفؒ تقدیر په ورځو وکړی، او تقدیر یه په مراحلو او یا په فراسخو یه نه وکړی وهُوَ الاصح، او د حضرت الامام الاعظمؒ څخه د اسي روایت هم راغلی دی چې سفر مقدر دی په درو منزلو سره، صاحب هدایه وائي چې دا روایت قریبٌ اول ته دی، ولې چې عادت د مسافرو دا دی چې یوه مرحله په یوه ورځ قطع کوي، لکن صاحب البحر الرائقؒ وائي چې زه تعجب کوم وهغه فقهاؤ ته د مذهب حنیفی چې دوی برخلاف د نص صریح د صاحب المذهب خپل فتوی ورکوی چې هغه تقدیر په درو منزلو وو، لکن په قول د صاحب الهدایه دا تعجب د صاحب البحر دفع سو کما مرّ، او بعض فقهاء د مذهب حنیفی مدت د سفر په پنځلس فرسخه سره اندازه کړیده. لکن درو یش وائي چې اندازه د فرسخ چې دوولس زره ګامه ده یا زراع دی وعمومي مسافرو ته ډیر ګرانه ده ولهذا لم یُفتیٰ به اَحَدٌ ممن یعتد به، قـال المصنفؒ

**بِسَيْرٍ وَسَطٍ** په میانه تګ سره یعني چې نه ډیر چابک وی او نه ډیر کراروی. لکن پوهسه چې تګ د ورځې معتبر دی ولې چې شپه وخت د استراحت دی،

**مسئله**: که یو سړی خارق العادة چابک وي او د بل چا د سیر وسط درو ورځو منزل دی په یوه ورځ قطع کړی قصر ورته روا دی، ط او صاحب التبین وائی چې د میانه تګ انداز په غلبة الظن سره معلومیږی یقین شرط نه دی لما فیه من الحرج الکلی، قال الله

## مَعَ الْاِسْتِرَاحَاتِ

سره د استراحت کولو، نو مسافر د پاره د خوړلو او لمونځو او قضائ حاجت د پاره کښته کیدای شی، **پوښتنه**: چې اکثر لره حکم د کل دی نو که مسافر اکثر حصه د لنډی ورځی په منزله تیره کړي او بیا ورته واړه وي، او دوهمه ورځ هم د غسی وکړی او دریمه ورځ هم هغه مسافر دی قصر ورته روا دی ط **فائده**: زوال اکثره وخت د نهار شرعی دی چې د سپیدو څخه شروع کیږی، تر لمر لویدو پورې چې د غه وخت د نصف النهار دریاضی دی،» قال المصنف:

## وَالْوَسَطُ سَيْرُ الْاِبِلِ وَمَشْيُ الْاَقْدَامِ فِي الْبَرِّ وَفِي الْجِبَالِ

او میانه تګ دی تګ دی د اوښ یعنی په قافله کی نه چابک مهاری اوښ

**بِمَا يُنَاسِبُهُ** لکه د بعض خانانو، او بل تګ دی د پښو په صحرا کی، او په غره کی چې سفر او تګ په کښی سخت دی او لوړی او ژوری لري، په موافق د هغه غره معتبر دی، حاصل دا چې په غره کی تګ د اوښ یا د پیاده سړی په تګ لږ مسافت قطع کیږي، تر او اري محکی نو د هغه دالبن والی اعتبار نه لري بلکه دی مسافر ګڼل کیږی، کی څه هم مسافت د تګ یې په غره کی تر مسافت د اواری محکی لږ وي،» قال المصنف:

## وَفِي الْبَحْرِ اِعْتِدَالُ الرِّيحِ

او په دریاب کی اعتدل د باد ته اعتبار دی، او دا مذهب دی مفتی بهٖ کما فی المراقی، نو که سړی په دریاب کی یعنی په کښتی کی اکثر د ورځی سره د اعتدال ده هوا منزل وکړي نو دا لکه تهوله ورځ منزل معتبر دی کی څه هم مسافت تر اواري محکی کمه وی»

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه امین





قال المصنف

## فَيَقْتَصِرُ الْفَرْضُ الرُّبَاعِي

نو مسافر دی قصر کوي د فرضی لمانځه چې څلور رکعت وي، **پوښتنه**: چې مراد د فرض څخه فرض عملی دی، یعنی چې فرضیت یې په یقین سره ثابت وي، نو په دی قید سره وتر خارج سوه۔ ولی وتر فرض عملی دی کما مر، او په قید سره د رباعی د ماښام لمونځ او د سحار لمونځ خارج سوه، ولی چې په هغو کی قصر نشته، او په قید د فرض سره سنن خارج سوه که څه هم رباعی وی۔ نو که مسافر څلور رکعتی سنت کول قصر به نه کوي»

**پوښتنه**: آیا مسافر به سنن راتبه کوي او که نه! **جواب**: اعدل د مذهبو او مختار مذهب دا دی که مسافر په حال کی د اره ولو یو ځای وو، او په امن کی هم وو، نو سنن راتبه دی ادا کوي۔ او که په حال کی د تګ وو او یا د خوف وو سنن دی پریږدي، او بعض فقهاء وائی چې مطلقاً کول د سننو افضل دی، تقرباً الی الله تعالیٰ: وقیل الافضل مطلقاً ترک د سننو دی. د رخصت الهی په واسطه په فرضو کی، او بعض علماء وائي چې سنت د ماښام او د سحار دی نه پریږدي»

د درویش وائی چې د بعض په قول کی افراط دی د سننو په باره کی، او د قیل په مذهب کی تفریط د سننو په باب کی: وخیر الامور التوسط بین الافراط والتفریط وهو المذهب المختار المذکور اولاً» **فائده**: په حدیث صحیح کی چې روایت یې عائشه رضی الله تعالیٰ عنها کوي داسی راغلی دي، فرضت الصلوٰة رکعتین رکعتین فزیدت فی الحضر واقرت فی السفر» لمونځونه په اول کی دوه دوه رکعته ورو وروسته په کور کی یعنی چې مسافر نه وی بالا بود وو سو یعنی د دوو رکعتو په ماپښین او ماخستن او مازدیګر کی» او د سفر لمونځونه د دغو درو لمونځو په سفر کی په هغه دوه رکعته پاته سوه، عینی په شرح کی د بخاري وائی چې دا زیادت په ورځ د سه شنبه ۱۲ د ربیع الاول وروسته تر راتګ د علیه السلام مدینې منورې ته یوه میاشت» مراقی وائی وائی الا المغرب یعنی د ماښام لمونځ د سره څخه هم دری رکعته وو او بیا نو بیا تو بیا هم نه په کښی وسو. او د سحار په لمانځه کی هم بالا بود و نه سو. ولی چې د سحار قرائت اوږد وو؛ او د جمعی په لمانځه کی هم بالا بود و نه سو، ولی چې په هغه کی دوی خطبی سنته چې په

ځای کی د دوو رکعتو ولاړ دي، دړو لیل وائي چې دا حدیث نص دی په مذهب کی د حنفیانو یعني چې دوه رکعته کول د دغو دړو لمونځو لازم دي، ولې چې دا غه دوه رکعته په فرض الوقت کی دی چې سفر دی نوا تمام یه خلاف دی د مَآ اُمِرَ بِهِ المُسَافِرُ» **پوه سه**: چې بعض اهل المذاهب د دغو دړو لمونځو پوره کول عزیمت بُولی او دوه یې رخصت بولی وهذ المذهب یخالف الحدیث المذکور» قَالَ المُصَنِّفُ:

**مَنْ نَوَى السَّفَرَ وَلَوْ كَانَ عَاصِيًا بِسَفَرِهِ** او دا قصر به هغه سړی کوي چې نیت یې کړی وی د سفر یعنې قصد جازم بیله تردده، او قصد یې هم تر لا ځنه د مخروی که څه هم دا سړی گناه کاروی په دی سفر کی لکه عبد ابق د مولی ځنه یا سفرد قاطع الطریق وغیر ذالک» وفیه رد علی من لم یجوز القصر للعاصی بالسفر کما مر» قَالَ المُصَنِّفُ:

**اِذَا جَاوَزَ بُيُوتَ مَقَامِهِ** هرکله چې دا مسافر تیر سی تر کورو د هغه ځای چې دی په کښی اوسیږی که څه هم خیمی وی لکن شرط تیریده د ده دی په هغه طرف کی چې دی د کوره وَوَتی که څه هم د بل طرف سره د ده کلی برابر وی یعنی تر هغه بل طرف نه وی تیر سوی» قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَجَاوَزَ اَيْضًا مَا اتَّصَلَ بِهِ مِنْ فِنَائِهِ** او دا غه رنگه شرط دی تیریده د ده تر هغو ځایو چې جوت وی د ده په ځای پوری چې فناء د ده د مقام بلل کیږی، لکه پر ښار اگر ځیدلی کورونه چې ربض المصریه بُولی. ولې چې هغه په حکم کی د مصر دی. او دغه رنگه تیریده غواړی تر هغو قریو چې په ربض المصر پوری متصلی وي فی الصحیح» م،

**مَسْئَلَه** په قصر کی د لا ځنه دا شرط نه دی چې مسافر به خپل کورونه نه وینې، د علی بن ربیعهؓ ځنه روایت دی چې موږ په سفر ووتلو سره د علی رضی الله عنه د کوفی ځنه او موږ لیدلی د کوفی آبادی او سرایونه چې د لا ځنه وخت سو حضرت علی رضی الله تعالی عنه دوه رکعته لمونځ وکړی»

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهِ وَلِكَاتِبِهِ اٰمِین.





قَالَ المُصَنِّفُ **وَاِنْ اِنْفَصَلَ الْفِنَاءُ بِمَزْرَعَةٍ اَوْ قَدْرِ غَلْوَةٍ لَا يُشْتَرَطُ مُجَاوَزَتُهُ** او که چیری جلاوه فناء د ښار یا د قریه ځنه په کښت سره یعنی په مابین کی د ښار او د فنا کښت وُو او یا فنا جلاوه د ښاره ځنه په خالی ځمکه سره چې مقدار یې یوه غلوه وه او د غلوی مقدار دری سوه گامه دی تر څلورسوه پوری نو شرط نه دی تیریده تر هغه فناء د پاره د اجراء د احکامو د سفر دړو لیل وائی چې په نهایه کی او په فتاوی» الولوالجیه» او په تجنیس کی او په مزید کی وائی چې مسافر دی قصر کوی چې صرف تر آبادی تو د ښار تیر سی او نه ده ملحقه فناء د ښار په ښار پوری په حق کی د سفر»

**سَوَال**: په فقه شریفه کی وائی چې په فناء د ښار کی د جمعی لمونځ روا دی یعنی فناء د ښار حکم د ښار لري. او مسافر ته قصر په فناء کی، د غو نو مورو کتابو را اکړیده. د دی مطلب دا چې فناء حکم د ښار نه لري، فما الفرق بین صلوة الجمعة والسفر» **جَوَاب**: فناء د ښار حکم لری په منافعو کی د ښار او دا ښکاره خبره ده چې د جمعی لمونځ د مصالحو ځنه د ښار دی نو د دی سببه چې د جمعی لمونځ په فنا المصر کی روا دی، او قصر د لا ځنه خود منافعو ځنه د ښار نه دي، نو د دی کبله فناء المصر د مصر حکم نه لري په باب د قصر د لا ځنه: قَالَ المُصَنِّفُ

**وَالْفِنَاءُ الْمَكَانُ الْمُعَدُّ لِمَصَالِحِ الْبَلَدِ كَرَكْضِ الدَّوَابِّ وَدَفْنِ الْمَوْتٰى** او فناء د ښار هغه ځای ته وائی چې آراسته وی د پاره د مصالحو د ښار لکه ځغلول د آسانو یا خرو یا سیکلانو وغیره، او د پاره د دفن د مړو، وزاد فی المراقی او القاء التراب، یعنی یا د ښار خاوری او کچری هلته غورځول کیږی.

**مَسْئَلَه**: باغونه که د خرما وی او که د انګورو مثلاً که څه هم متصل په ښار پوری وي، په حکم کی د ښار نه دي، که څه هم مالکان د دغو باغو په باغو کی اکثره کال یا ټوله کال او سیږی او او سیده د محافظینو د باغو یا د کښت کوو نکو په هغه ځای کی هیڅ اعتبار نه لري، په اتفاق» معنا چې قصر د مسافر په د غو باغو کی روا دی په قول د نامورو کتابو؛ او دد ي

کتابود حکم تائید هغه حدیث شریف هم چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم چې د مدینې منورې نه په سفر وَوَتی په ذو الحلیفه کې قصر دَ لمانځه وکړې، او ذو الحلیفه اتفاقاً د فناء نه د مدینې منورې ده: قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّةِ نِيَّةِ السَّفَرِ ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ اَلْاِسْتِقْلَالُ

او شرط دی د پاره د صحیح والی دَ نیت د سفر درې شیان، اول چې دی به مستقل وي په حکم کې

## بِالْحُكْمِ وَالْبُلُوْغُ وَعَدَمُ نُقْصَانِ مُدَّةِ السَّفَرِ مِنْ ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ

د خپل ځان، یعنې چې دلته سفر دی، مطلب دا چې تابع د بل چا به نه وي لکه مَاینه د میړه چې تابع ده یا مَرَئی چې د بادار تابع دی. دوهم شرط بلوغ یعنې چې کچنی نابالغ به نه وي دریم دا چې نه به وي کمه مده د هغه سفر چې ده یې نیت کړی وي نه درې ورځو، قَالَ

## فَلَا يَقْصُرُ مَنْ لَمْ يُجَاوِزْ عُمْرَانَ مَقَامِهِ أَوْ جَاوَزَ وَكَانَ صَبِيًّا

نو قصر به نه کوي هغه څوک چې تېر ا باتیو د خپل ځای نه وي تېر سوی. دا تفریع ده پر هغه خبره چې

## أَوْ تَابِعًا لَمْ يَنْوِ مَتْبُوْعُهُ السَّفَرَ كَالْمَرْأَةِ مَعَ زَوْجِهَا وَ

مصنف وړاندې کړې وه یعنې قوله اذا جاوز بیوت، او یا خو تر عمران تېر سوی وي لکن کچنی نابالغ وي

## الْعَبْدُ مَعَ مَوْلَاهُ وَالْجُنْدِيُّ مَعَ أَمِيْرِهِ أَوْ نَاوِيًا دُوْنَ الثَّلَاثَةِ

دا پر اشتراط البلوغ تفریع ده، او یا تابع وي د بل چې متبوع یې سفر نیت نه وي کړې لکه ښځه سره د میړه او مرئی سره د بادار. او فوجي سره د امیره، دا حکم پر هغه خبره تفریع دی الا ستقلال با الحکم، او یا یې نیت کړی وي د سفر کم تر درو ورځو، دا حکم تفریع دی پر هغه خبرې و عدم نقصان آه»





**مسئله:** هغه ښځه تابع د میړه ده چې وَلوَر معجل ور رسیدلی وي، او که مهر معجل نه وي ورکړې هغه تابع د میړه نه ده، کې څه هم وطي ورسره کړې وي. ولې چې وَدَغې ښځې ته روا ده چې میړه د بل وار وطیو څخه منع کړي، او د کوره ووزي د پاره د طلب د مهر محکمې ته ولاړه سي په نیزد امام اعظم رحمة الله علیه، او یاران وائی چې ماینې ته دَ دَغو کارو اجازه نسته» مر، ط، در»

**مسئله:** مَرَئی چې مکاتب وي چونکه هغه حُر دی یَدا. نو هغه تابع د بادار نه دی» او مدبر او ام الولد تابع دی، او فوجي هلته تبع د امیر دی چې تنخواه یا د امیر د خواوی او یا د بیت المال دَ خواوی، زیلعی، او نهر **مسئله:** مزدور د میاشتی یا د کال تبع دی د مستاجر او شاګرد تبع دی د استاذ، او مُکرَه» په صیغه د اسم مفعول تبع دی د مُکرِه په صیغه د اسم فاعل.

**پوښتنه:** څوک چې تر درې وَرځي کم د سفر نیت وکړي هغه مسافر شرعًا نه دی په باره کې دَ قصر الصلوٰة. او په باره کې دَ ترک د جمعې لمانځه او د جماعت او دَ تیمم پخپل شرط سره او د لمانځه پر دابه باندې مسافر دی شرعًا» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَتُعْتَبَرُ نِيَّةُ الْإِقَامَةِ وَالسَّفَرِ مِنَ الْأَصْلِ دُوْنَ التَّبَعِ

او معتبر دی نیت دَ اقامت او سفر د اصل د خوا چې متبوع دی، نه د تبع که چیرې نیت د

## إِنْ عَلِمَ نِيَّةَ الْمَتْبُوْعِ فِي الْأَصَحِّ

متبوع وده ته معلوم وي په اصح روایت کې، نو حاصل دا چې پر تابع باندې په نیت کولو د متبوع د اقامت، اتمام دَ لمانځه نه دی لازم تر هغو پورې چې نیت د اقامت د متبوع خبر نه ی، **مسئله:** پر تابع لازمه ده چې د متبوع نه سوال وکړي چې هغه یو ځای وارهوي چې تا نیت د اقامت کړی دی او که نه! اعزاز، ط قَالَ»

## وَالْقَصْرُ عَزِيْمَةٌ عِنْدَنَا

او قصر د لمانځه لازم دی پر مسافر زموږ په نیز خلافًا للشافعيؒ»

یوملک ته ورسیده او دوی دا یقین وو چې ۱۵ ورځې مونږ ته اجازه دخروج نه راکړه کیږی. نو دوی به لمونځ پوره کوی ولې چې دوی حکمًا نیت د اقامت کړې دی»

**فَائِدَه:** نیت د اقامت عام دی که تر لمانځه دمخه وي او که د لمانځه په اول کې وي او کې په مابین کې وی او کې په اخیر کې وي او عام دی لمونځ کوونکی چې نیت د اقامت په لمانځه کې کوی که منفرد وی او که مقتدی وی او که مُدرِک د اول د لمانځه وي او که لعض رکعتونه ځندی ترې سوي وي، قوله بِبَلدَةٍ اَوقَريَةٍ» دا دوه چې مصنف ذکر کړه ولې چې نیت د اقامت بیله دغو دوو بل ځای نه دی روا مثلاً په بیابان کی او په دریاب کی او په کښتی کی، هذا حاصل ما فی البحر الرائق،، قوله اولم ينوی وَبقی سِنين آه یعنی یو سړی مسافر وو او یو ښار ته ورغلی او قصد یې دا وو چې دوی ورځې ورو ستنه د دی ښار ونه، یا هفته وروسته مثلاً لکن کار یې نه سمیدی کلونه پر تیر سوه، نو دی به قصر کوی» ولې چې علقمة بن قیس پر دغه ډول په خوارزم کی دوه کاله تیر کړه او ده لمونځ په قصر کاوه»

**بنهانه فائِدَه** مهاجر د افغانستان چې پاکستان ته په هجرت وکړې او یا نورو مما لکو ته» او دوی دا قصد وو چې ۱۵ مثلاً ورځی او یا یو میاشت که څه هم افغانستان آزادیږی زه افغانستان ته نه ځم، او دوی ته دا هم یقین وو چې پاکستان مثلاً پر زوره په داسی لنډه موده کی څوک دخپل وطنه نه شړي، نو دوی به لمونځ پوره کوی دا خو حال وود هغو مهاجرینو چې په اول کی د انقلاب ثور پاکستان ته را مهاجر سوه خواه په ښارو کی د پاکستان او سیدله یا په باقاعده کیمپو کی او سیدله، چې تر دا او سه یعنی تخمینًا ۲۲ کاله دلته په پاکستان کی پاته دي، حتیٰ چې د کیمپو مهاجرو ځانته سرایونه جوړ کړي دی او مسجدونه او مدرسی یې بناء کړي دی او بازارونه یې کښلی دي، او د ښارو مهاجرینو کوټې جوړې کړې او دکانونه لري او تجارتونه کوي چې حکومت د پاکستان هم علم پر لري، نو د غه مهاجرین لکه بحرالرائق چې ووئیله مقیم حکمًا دي، او یو د غه قسم مهاجر د افغانستان دی چې هغه دا او س په سله ۲۲ کاله تخمینًا د شماله څخه د افغانستان او یا د نورو ځایو څخه





د سبب د وچ کالی او یا د سببه د جنګو پاکستان ته را مهاجر سوی دی او د پاکستان حکومت ورو ته دا اوله څخه دا اعلان کړی دی چې پاکستان تاسی ته پناه او ځای نه ورکوی نو دغه مهاجرین چې د حکومت سره د پاکستان په کش مکش اخته دی پر هغو که میاشتی تیری سی او که کلونه لمونځ به پوره نه کوی ولې چې دوی نه حقیقةً مُقیم دی او نه حکمًا» دولیشرہ

**فَائِدَةٌ مُهِمَّة** هغه خلګ چې په قاشاق سره بَردُو یُو مملکتو ته بیله ویزی او بیله پاسپورټه خواه د افغانستان وی او که د بل وطن وی خصوصًا چې سعودی عربستان ته په غلا داخل سی، چې د دوی دا یقین وی چې که حکومت را خبر یږي سمدستی می سفر کوی هغه سړی چې هر څو عمر که میاشتی وی او که کلونه د غلا پر ډول په هغه مملکت کی تیری کړی لمونځ به پوره نه کوی. چې د ده نیت د اقامت نه دی صحیح، البته که ده ته رسمي حکومت د خواد او سیدلو اجازه وسوه بیا نو د ده نیت د اقامت صحیح دی» در قَالَ المصنفُ

## وَلَاتُصِحُّ نِيَّةُ الْاِقَامَةِ بِبَلَدَتَيْنِ لَمْ يُعَيِّنِ الْمَبِيْتَ بِاَحَدِهِمَا

او نه دی صحیح نیت د اقامت په دوو ښارو کی په داسی ډول چې مسافر نه وی معلوم کړی شپه تیرول په یوه کی د هغو دوو»

**پُوښتنه:** چې مراد د مصنفؒ د بلدتینو څخه هغه دوه مستقل ځایونه دی چې یو د بل تبع نه وي، که ښارونه وی او که دوی مستقلی قریې وي. او که چیری یو ځای ښار وو او بل ځای قریه وه چې تابع د ښار وه. حتی پر او سیدونکو د هغی قریه د جمعې لمونځ په ښار کی لازم وو» نو په داسی دوو ځایو کی نیت د اقامت صحیح دی او که چیری مسافر خپل شپې تیرولو د پاره یو ښار تاکلی وو یعنی شپه بې په هغه ښار کی تیرول او ورځی به که څه هم هغه بل ښار ته ور تلی» نو نیت د اقامت یې صحیح دی» ولې چې په اقامت کی مُعتبر دی د شپې تیرید و ځای دی» نو هغه چې ده مُعین کړی دی نو ګویا د اقامت نیت په یوه ځای کی چې مبیت دی کړی دیٔ. د دی دلیل

دادی چې دیوسړی ځنې چې ته سوال وکړي چې ته چیرې اوسیږې دئ هغه ځای درښیي چې دی د ښار ی هلته وی که څه هم دوړځی دی په بازار کی وي، یا په بل ځای کی، قال المصنفؒ

## وَلَا فِي مَفَازَةٍ لِغَيْرِ أَهْلِ الْأَخْبِيَةِ

اودغه رنګه نه دی صحیح نیت داقامت په بیابان کی او دښت ماسوا لره دخیمه والو، اوکږدی والو، یعنی مالداران چې خوړځی یو ځای اوسیږی او څو ورځی بل ځای یعنی دځیلو، پسو، بزو، اوښانو، په څر ځای پسې روان وي، نو دغه مالداران که په یوځای ګاه نیت دپنځولسو ورځوکړي مقیم ګرځی، لمونځ به پوره کوي، ولې دوی لره دغه ځای لکه ښارونه او قریو د نورو کسانو د پاره دی، اوبیله دغو مالدارانو بیابان او دښت محل داوسید ونه دی. اودغه رنګه جزیرة او دریاب او کښتی، او کښتی چلوونکی مسافر دی کښتی دده وطن نه دی، نقله الطحطاویؒ عن البحر، لکن پوهه سه چې د جزیرة ځنی مراد ځوانی جزیری دی چې آبادی به نوی او خلک به نه وه پکښی، ورنه اوس چې په جزائروکی ښارونه جوړشوی دی او په زرو خلک په کښی ژوندکوی لکه بحرین، قطر، دوبئی، ابی ظهبی، وغیره په هغوکی نیت داقامت په اتفاق روادی، اودغه رنګه مراد دکښتیو ځنې هغه ځوانی کښتی دی چې ملاحانو به چلولې، اوهرچه اوسنی کښتی دی چې په دریا بوکی په میاشتو اوکلو ولاړې وی او د خوراک، لباس، اونور ژوندانه شیان دوی ته هلته مهیا وي او دیو ځای ځنې بل ځای ته په کلونه نقل کیږی، لکه دامریکانیانو بحری کښتی او یا دپاکستانیانو بحری کښتی او دنورو مملکتو په هغوکی نیت داقامت روادی اوچلونکی په مقیم دی بالاتفاق» قال المصنفؒ:

## وَلَا يَصِحُّ نِيَّةُ الْإِقَامَةِ لِعَسْكَرِنَا بِدَارِ الْحَرْبِ

اونه دی صحیح زمونږ دمسلمانانوعسکروته نیت داقامت په دارحرب کی یعنی دکفارو په وطن کی چې د مسلمانانو عسکر د جنګ دپاره هوری ورغلی وی،، که څه هم دوی یو ښار





په محاصره کی نیولی وي، ولې چې دوی دقرار اوفرار ترمابین دی نونیت داقامت خوعزم غواړی او دوی عزم نشی کولای»، ولې چې شاید وکافرانو ته به نوی کومک راورسیږی او مسلمانان به وفرارته مجبورکړی، اوعین ممکن ده چې دغولن کافران چې مسلمانانو محاصره کړیدی داسی یوچم به وکړي چې په هغه سره به قلیل برکثیرغالب سی. قال الله تعالیٰ: وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ،، قال المصنفؒ:

## وَلَا لِعَسْكَرِنَا فِي مُحَاصَرَةِ أَهْلِ الْبَغْيِ

اودغه رنګه نه دی صحیح نیت داقامت زمونږ عسکرو لره چې دوی باغیان دحکومت اسلامی محاصره کړي وی، که څه هم داباغیان په عین ښارکی وی، کذا فی العنایة والبحر الرائق

**پوهه سه:** چې امام طحطاویؒ ص۳۴۷ وائی چې بُغاة هغه قوم دی چې دا طاعت ځنې دامام حق وتلی وی او دوی عقیده داوی چې مونږ برحق یو. اودوی ته فاسقان نه ویل کیږی بالاتفاق» ولې چې ددوی په زړوکی شبهه سته که څه هم فاسده شبهه وی چې د هغې په سبب دوی ځان برحق بولي. اوکه دلیل یې نه وایه نوهغوته غله اوقطاع الطریق وائی تین مراقی وائی که څه هم ظاهرًا شوکت اوغلبه دعساکرو په جانب کی وی» للعلة المذکورة وهو التردد فی الفرار والقرار کما مر» قال المصنفؒ:

## وَإِنِ اقْتَدَى مُسَافِرٌ بِمُقِيمٍ فِي الْوَقْتِ صَحَّ وَأَتَمَّهَا

اوکه چیرې اقتداء وکړه مسافر په مقیم پسی په وخت د لمانځه کی یعنی په څلور رکعتیز لمانځه کی، صحیح ده

## أَرْبَعًا وَبَعْدَهُ لَا يَصِحُّ

اقتداء یې پسی، که څه هم په اخیره ناسته کی وي، او مقتدی دی چې مسافر دی لمونځ څلور وکړي په متابعت دامام خپل» قال المصنفؒ: وَبَعْدَهُ لَا يَصِحُّ» اوپسله وتو ځنې دوخت صحیح نه ده روا اقتداء د مسافر په مقیم پسی» دلیل یې دادی چې فرض د مسافر تغییر نه خوری پسله خروجه دوخته که مسافر په مقیم پسی اقتداء وکړی، پسله وتو ځنه وخت یعنی په قضائی لمانځه کی په شفع اول کی، نواقتداء د مفترض په متنفل پسی لازمیږی

په حق کې دَقعدې. ولې چې اوله ناسته پر مسافِر فرض دَه، پر مقيم نه دَه، او کې اقتداء په شفع ثاني کې پسې وکړه نو بيَا هم اقتداء د مفترض په متنفل پسې لازمېږي، په باره کې د قرائت، ولې چې قرائت د دغې شفعې پر مسافِر فرض دې، او د مقيم دا نفل دې» هـداية،

**پوهـنه** چې دا حکم هلته دې چې د امام او مقتدي لمونځ دواړه قضائي وي، او که چېرې د امام لمونځ قضائي وو او د مقتدي لمونځ په وخت کې وو، لکه چې مقتدي د ماپښين په لمانځه معتقد د قول د امام اعظمؒ وي چې وخت د ماپښين ترمثلينو پورې بولي، او امام معتقد و د مذهب ديارانوؒ، او د امام شافعيؒ چې د ماپښين وخت تر يک چندي پورې بُولي، نو څه وخت چې يو مثل تير سوي وي (او دوه مثله ته سَايه نه وي رسيدلې، نو څه وخت د امام لمونځ قضائي دې لِخروج الوقت في عقيد ته» او د مُسَافِر مقتدي لمونځ وقتي دې لبقاء الوقت عَلىٰ مذهبه فيصح الاقتداء به» کذافي السراج کما يأتي عنقريب» قَالَ

**وَبِعَكْسِهٖ صَحَّ فِيْهِمَا** او په عکس کې يعنې چې مقيم په مسافِر اقتداء وکړي اقتداء يې صحيح دَه، که په وخت کې وي او که بعد الوخت وي، ولې په حديث شريف کې راغلي چې عليه الصلوٰة وَالسلام چې مسافِر وو په مکه شريفه کې اهل مکه ته لمونځ ورکړي. او پر دوه رکعته چې سَلام وګرځاوه اهل مکه ته يې داسې وفرمائيله، اَتِمُّوْا صَلٰوتَكُمْ فَـاِنَّا قَـوْمٌ سُفْرٌ» تاسي خپل لمونځونه پوره کړي ولې مُونږ قوم يو مسافِر»

**وَاقِعَهْ** څه وخت چې حضرت الامام قاضي القضات ابويوسفؒ سره د هارون الرشيدُ په سَفر د حج تللي وو، امام ابويوسفؒ چې دوه رکعته سَفريا لمونځ پوره کړي او سَلام يې وګرځاوه نو اهل مکه ته يې داسې ووئيله: اَتِمُّوا صَلَاتَكُمْ فَاِنَّا قَوْمٌ سُفْرٌ، نو يو مکي وال ورته وَوَيل: نَحْنُ اَعْلَمُ بِهٰذَا مِنْكَ» مونږ په دې حکم تر تا ښه خبر يُو، فقال ابويوسفؒ: لَوْ عَلِمْتَ مَا تَكَلَّمْتَ فِي الصَّلٰوةِ» که ته علم والاوای نو دې په لمانځه کې ولې خبرې کولې» يعني ستا خود لمانځه مابين دې نو تا خبرې ولې وکړې»





فَقَالَ هَارون الرشيد لَوكَانَ مثل هذا الجواب بَدلاً عن الملک الذى اعطانيه الله لكنتُ اَسَر بذالك»، که مثل د دې پورې مَعقول جَواب عوض واې زما دَهغې بادشاهي چې خدائ ماته راکړې ده زه به ډير په خوشحاله سوی وای:

**مسئله:** څه وخت چې مسافِر امام سَلام وګرځوی نو مقيم مقتد يان دې ولاړ سي هغه خپل دوه رکعته دې بيله قِرائت اداء کړي په صحيح روايت کې. ولې چې دوی خو لاحق دي يعنې اول د لمانځه يې نيولې دې اخيرد لمانځه څنډې ګوياپاته سُوه. يعنې دوی لکه هغه سړي دې چې اول د لمانځه يې نيولې وي او بيا ورو سته حَدث ورپېښ سي چې دی او دس تازه کې نو دَ امام لمونځ ختم سوی وي نو هَغه چې خپل پاته رکعتونه کوي قرائت به نه وائي ولې چې حکمًا بعد الامام دی» د دې مقيم مقتدي خو فرض القرائت د مخه د امام مسافر سَره اداء سُو. نو قرائت دې احتياطًا نه وائي کذافي الهداية والوَافي»

او سجده سهوه پر دغو مقيمو مقتديا نو نسته که څه هم دوی چې پاته لمونځ کوي سهوه يې ولې چې د دوی حکم د لاحق دی کما مَرّ او پر لاحق هيڅ سجده سهوه نسته، او په دوی پسې اقتداء هم نه ده صحيح، ولې چې دوی که څه په پاته دوو رکعتو منفرد دې بايد اقتداء د بل پسې روادی. لکن دوی مقتديان دې از روی تحريمه چې په مسافِر امام پسې اقتداء کړېده. او دا خو فقهي مسئله چې په مقتدي پسې بَل څوک اقتداء نسي کولای «مَراقي طحطاوي» هـدايه، در» قَـالَ المُصنفؒ:

**وَنُدِبَ لِلْاِمَامِ اَنْ يَّقُوْلَ اَتِمُّوا صَلَاتَكُمْ فَاِنِّيْ مُسَافِرٌ**

او مندوب ده امام لره چې ووائي خلګوته چې خپل لمونځونه پوره کړي چې زه مسافر يم» څوک وائي چې پسـله يوه سَلامَه، لکن صحيح دا ده چې ورو سته تر دواړو سَلامو دې دا خبره وکړي، تا چې مقتديان په پاته لمانځه کې قرائت ونه وائي، او مندوب ولې دَه» د دې سببه چې امکان لري چې خلګو ته به حال د امام دَ مخه لامَعلوم وي. او يا بي د مخه سَوال څنډې کړي وي»

قال المصنف: **وَيَنْبَغِيْ اَنْ يَّقُوْلَ ذٰلِكَ قَبْلَ شُرُوْعِهٖ فِي الصَّلٰوةِ**

او ښه کار دی چې امام دی دغه تر شروع په لمانځه کې دغه خبره وکړي تا چې اشتباه د مقتدیانو د اول الامر څخه دفع شي، قال المصنف:

**وَلَا يَقْرَءُ الْمُقِيْمُ فِيْمَا يُتِمُّهٗ بَعْدَ فَرَاغِ اِمَامِهِ الْمُسَافِرِ فِي الْاَصَحِّ**

او قرائت به نه وائي مقتدي په هغو رکعتو کې چې دی لمونځ په پوره کوي وروسته تر فارغ والی د امام مسافر ده په اصح روایت کې، بلکه په قدر د الحمد لله دی ساکت ولاړ وي.
وجه د اصح روایت هغه ده چې قبلاً انفاً تیره سوه چې دی لکه لاحق دی حکماً او بعض مشائخ وائي چې دی به قرائت وائي لکه مسبوق چې اول د لمانځه څخه دی تیر سوی وي» لکن بینهما فرقٌ، ولې چې مقتدي مقیم خو تحریمةً مقتدي دی لکه لاحق» او ظاهراً خو منفرد دی لکه مسبوق، نو چې مونږ ودې ته وګورو چې دی مقتدي دی حکماً، نو دی ګویا خلف الامام دی» نو ده ته قرائت مکروه تحریمي دی، او چې ودې ته نظر وکړو چې ظاهراً خو منفرد دی نو ده ته د قرائت مستحب دی» ولې چې فرضي قرائت خو به د امام مسافر سره پوره سو، نو د غه مقیم قرائت په باته لمانځه کې دائر سو، په مابین کې د مکروه تحریمي او مستحب نو احتیاط دا دی چې قرائت و نه وائي چې مرتکب د مکروه تحریمي و نه ګرځي»
او مسبوق چې د امام سره دوه اخر رکعتونه پېژنیولي» نو د امام سره قرائت مندوب وه نيوی او فرضي قرائت پر پاته دی» نو ده قرائت په سبب د دې چې دی مقتدي دی ظاهراً مکروه تحریمي دی، او په دې سبب چې پر ده فرضي قرائت
پاته دی چې د هغه په پاته والي سره لمونځ فاسدیږي» نو ده یعنې د مسبوق قرائت په باته لمانځه کې دائر دی په مابین کې د مکروه تحریمي کې و وائي، او ده مفسد الصلوٰة کې نه و وائي نو لټه احتیاط په دې کې دی چې دی چې و وائي تا چه لمونځ یې فاسد نه شي، هذا محصل ما في البحر الرائق والرد المحتار والطحطاوي»





قال المصنف: **وَفَائِتَةُ السَّفَرِ وَالْحَضَرِ يُقْضٰى رَكْعَتَيْنِ وَاَرْبَعًا**

او قضائي لمونځونه د سفر او د کور دي دوه رکعته کوي یعنې د سفر د اکې لمونځ په کور کې قضاء راوړي او څلور رکعته دې کوي یعنې قضائي د کور که څه هم په سفر کې قضاء راوړي. ولې چې قضائي لمونځ په حضر او سفر سره تغییر نه پیدا کوي، وَلَا يَتَوَهَّمُ قِيَاسَهٗ عَلَى الْمَرِيْضِ وَالصَّحِيْحِ مثلاً د مریض څخه چې لمونځونه د مرض په وخت کې قضاء سوي وي هغه وخت چې ده په اشاره لمونځ کاوه، نو چې دی جوړ سي او هغو لمونځو قضاء راوړي په رکوع او سجده سره بې قضاء راوړي. په اشاره یې قضاء نه ده وروا، او یا یو سړي د صحت په وخت کې لمونځ په قضاء کړي وو، او س چې ناجوړي سوا و پر رکوع او سجده قدرت نه لري نو هغه د صحت د لمونځو قضاء په اشاره سره راوړي ولې په اول صورت کې خو عذر مسقط د رکوع او سجدې چې مرض وو زایل سو. نو قضائي لمونځ بیرته خپل کمال ته راسو، چې رکوع او سجده ده، او په صورت ثانیه کې قضائي لمونځ د خپل کماله څخه راسو په سبب د عذر په وخت کې د قضاء راوړو، ه، ط، در، قال المصنف:

**وَالْمُعْتَبَرُ فِيْهِ اٰخِرُ الْوَقْتِ** او معتبر په لمانځه کې اخیر د وقت دی، نو که یو سړي په اول وخت کې د لمانځه پر کور وو لکن لمونځ یې نه وکړي او چې اخیر د وقت چې راتلی دی مسافر سو لمونځ به دوه رکعت کوي، او که په اول کې د وخت دی مسافر وو، لکن لمونځ یې نه وکړي په اخیر کې د وخت کور ته راسیدی» نو دا لمونځ به څلور رکعته کوي، ولې چې په اصولو کې د فقه شریفې وائي چې سببیت د وخت لمانځه لره د اول څخه د وخت نقل کیږي تر اخیره پورې د وخت، او پر اخیر سببیت ختم کیږي، نو ځکه معتبر هم دغه اخیر وخت دی چې کوم تکي یې څه حال دی» مثلاً ښځه په اول کې د وخت د حیض او نفاس څخه پاکه وه، او په اخیر کې د وخت حائضه یا نفساء سوه لمونځ څنې ساقط دی، او که حال بالعکس وو لمونځ پر لازم دی هم پر دغه قیاس کړه لیونتوب او پرسد کیده، او کفر وو اسلام، فعليك بالتأمل في الصور

المذکورة. قَالَ المصنفؒ پوه سه چې وطن ځای ته داوسیدو وائی. او داوطن دوه قسمه

**وَطن دوه قِسمه دی** وطن پر دوه قسمه دی **وَطَنْ اَصلِی** وطن اصلی هغه ځای ته وائي چې دی هلته زوکړی وی کی واده کړی وی او که نه، او دده قصد ژوند په دغه ځای کی تیره ول وی او قصد دکوچ نه لري، ۲ **وطن اقامت** وهغه ځای ته وائی چې صلاحیت داوسیدو لري یعنی ښار یا قریه وی کما مر سابقاً، او سړی پسله دی چې مسافر وی په هغه ځای کی نیت داقامت وکړی ۱۵ ورځی یا بالاتر ۱۵ ورځو، اذا عرفت هذا فاستمع لما یقول المصؒ:

**وَيَبْطُلُ الْوَطَنُ الْاَصْلِيُّ بِمِثْلِهٖ فَقَطْ** او باطلیږی وطن اصلی په مثل خپل سره فقط یعنی نه په سفر سره باطلیږی او نه په وطن اقامت سره ولې چې شی چې باطلیږی یا په مثل سره یا په مافوق سره، په مادون سره نه باطلیږی» کما فی المراقی»

قَالَ المُصنفؒ:

**وَيَبْطُلُ وَطَنُ الْاِقَامَةِ بِمِثْلِهٖ وَبِالسَّفَرِ وَبِالْاَصْلِيِّ** او باطلیږی وطن داقامت یعنی یو سړی چې مسافر وو او یو ځای په نیت د اقامت د ۱۵ ورځو بالاو کړی او وروسته د هغه ولاړی بل ځای په نیت داقامت د ۱۵ ورځو وکړی، نو هغه اول وطن د اقامت په باطل سو نو که دی بیا هغه اول ځای ته ورسی لمونځ به پوره کوی، او دغه رنګه باطلیږی وطن داقامت په سفر د هغه ځی یعنی یو مسافر په یو ځای کی نیت داقامت د ۱۵ ورځو مثلاً وکړي او د هغه ځایه ځی بیرته خپل سفر ته ادامه ورکړه، نو هغه وطن داقامت په باطل سو که بیا د سفر په دوران کی هغه اول ځای ته ورسی لمونځ به پوره کوی کی نوی نیت داقامت بیا د هغه ځای و نه کړي. او دغه رنګه باطلیږی وطن داقامت په وطن اصلی سره یعنی د وطن ځی داقامت وو زی خپل اصلی وطن ته ولاړ سی، نو بیله ورځ بیله نیت د سفر هغه وطن اقامت ته ور سیږی لمونځ به پوره کوی ،،





**مسئله:** که یو سړی خپله کورنۍ او ماینه دیو وطن ځخه نه راو ستله، او صرف دی و بل وطن ته ولاړی په سفر لکن په هغه وطن کی هم کور او واده وکړی، نو وطن اول په سنه باطلیږی بلکه دواړه دده وطن اصلی دی، هر یو ته چې ورغلی په هغه وطن کی به لمونځ پوره کوی

**پوه سه** چې دوطن اصلی په بل وطن اصلی سره د بدلیدو صورت دادی، لکه مهاجرینؓ د مکی مکرمې ځخه مدینې منورې ته راغلو او بیاد عوّد نیت یې وکی و مکی شریفې ته نه وو که ځه هم مکه مکرمه دار اسلام هم سوی، نو د دغو مهاجرینو د پاره اصلیت د وطن د مکی مکرمې باطل سو، نو ځکه رسول کریم صَلَّی اللّٰه علیه وسلم او اصحاب کرام رضؓ پسله دی مکه مکرمه هم فتح سوه او دار اسلام وګرځیده دوی چې به د عمری یا حج یا تجارت د پاره مکی مکرمې ته ورغلل لمونځ یې سفریانه کاوه چې نیت داقامت د ۱۵ ورځو تیرولو به ئی نه وو،

**مسئله:** حضرت عثمان رضی اللّٰه تعالیٰ عنه په اول کی د خلافت چې به مکی شریفې ته ورغلی لمونځ یې سفریانه کاوه، او په اخیر دوره کی د خلافت چې به مکی شریفې ته ورغلی لمونځ به ئی پوره کاوه، شارحان د حدیثو مبارکه وو یوه وجه پوره لما ځخه کولو حضرت عثمانؓ داوائي چې عثمانؓ په اخیره دورهٔ کی د خلافت په مکه شریفه کی نوې واده وکړي نو مکه شریفه او مدینه منوره دواړه دده وطن وګرځیدله، نو حاصل ددی مسئلی دادی که دری ځایه یا ځلور ځایه سړي وده نه وکړي لو کور و نه جوړ کړي تو له یه وطن اصلی ګرځی

قَالَ المصنفؒ **وَالْوَطَنُ الْاَصْلِيُّ هُوَ الَّذِيْ تَوَلَّدَ فِيْهِ الْاِنْسَانُ** او وطن اصلی هغه دی چې د انسان تولد (زیږیدنه) په کښی سوی وی

**تَزَوَّجَ فِيْهِ اَوْ لَمْ يَتَزَوَّجْ وَقَصَدَ التَّعَيُّشَ فِيْهِ لَا الْاِرْتِحَالَ عَنْهُ** خوله ده هلته واده یعنی ماینه هم کړی او کی نه وی کړی، او دده اراده د ژوند تیرولو هلته وی، نه اراده د کوچ او بار د هغه ځایه ځخه»

قَالَ المُصَنِّفُ **وَوَطَنُ الْإِقَامَةِ مَوْضِعٌ نَوَى الْإِقَامَةَ فِيْهِ نِصْفَ**
او وطن داقامت هغه ځای دئ چې ده نيت د اقامت په هغه کې کړې وي
**شَهْرٍ فَمَا فَوْقَهُ وَلَمْ يَعْتَبِرِ الْمُحَقِّقُوْنَ وَطَنَ السُّكْنٰى**
نيمه مياشت او يا تردې زيات، او اعتبار نه دی ورکړی محققانو د فقهاؤ وطن ته د سکنی چې
**وَهُوَمَا يَنْوِي الْإِقَامَةَ فِيْهِ دُوْنَ نِصْفِ شَهْرٍ**

هغه هغه وطن ته وائي چې سړی نيت داوسيدو په هغه کې وکړي تر ۱۵ ورځې کم، نو که د اسړي چې مسافر وو او ده ۱۵ ورځو يا بالا نيت په غيرکې د وطن سکنی کړې وو هغه وطن د اقامت يې نه باطليږي. او نه يې سفر يې باطليږي» يعنې حکم د سفر چې قصر الصلوٰة وو نه باطليږي»

**تفريع** بعض مهاجرين د افغانستان چې په مغربي ممالکو او يا نورو ممالکو سياسي پناه اخستي وي او د هغه مملکت شناخت نامه او يا شناخت کارت يې هم اخستني وي او قصد د عود وه افغانستان ته نه لري. او که اوکور يې هم په هغو ممالکو کې وي صرف دی يو سرای په افغانستان کې لري او يا محکه او يا باغ لري، نو دی کاهې د سرای د کرائی د پاره يا د محکې د اجاره د پاره يا د باغ ده، يا د حاصلاتو تولولو د پاره افغانستان ته راسي دی مسافر دی په لمانځه کې به قصر کوي، ترڅو چې نيت داوسيدو د ۱۵. ورځو يه نه وي کړی.

**فرعه** يو سړي وو چې دوه درې زامنه يې په افغانستان کې وه، او هورې به خپل سرای د ر لودی او زامنو يه هورې دنيائي کاروبار کاوه، او دوه درې زامنه يې د ۲۰ کلوراليسته په پاکستان کې وه چې هورې يې هم خپل سرای د ر لودی، او هورې يې کاروبار کاوه، او دغه دواړې ځلی د زامنو تر تصرف د پلار لاندې دي





او دواړې ځلی په ولتيش سره ګډی وي، او پلار به ګاهې پاکستان کې وو او ګاهې به افغانستان ته ورلاړی کی څه هم استوګنه په يوه خواکې ډيره هم وي نو دغه پلار په دغو دواړو وطنو کې مقيم دی لمونځ به پوره کوي. اِلّا في طريق السفر الى احدهما» درويش

خدايه باب د مسافرخوې په توفيق ستا په خير خلاص شو،
دنيا دار الاقامت دی دهمه وُو،
زما سفر و اخرت ته په ايمان او اخلاص خلاص کړې
په دی دارکې څه هوس دی دهم وو،

مسافر چې و سفر ته روانيږي. ده کې فکر زما د ترهر شی مخکی پيدا کيږی
عبيد بيله کومه زاده دی روان و اخرت ته .. دی سپين زيری په اميد ستا و حضرت ته:

# باب صلوٰة المريض

دا باب دی په بیان کی دَ لمانځه د نا جوړی

**پوښتنه**: چی د مرض تعریف طبیبان داسی کوی. چی مرض یو حالت دی په بدن کی چی خارج وی د مقتضیٰ غالبی ځخه دَ طبیعت د انسان او یا حیوان، **فائده** مطلق نا جوړی سبب دا حکامو فقهیه وو نه دَه، ولی چی هر انسان چی دی بیخی ځان جوړ بولی هم نا جوړی دَی. د دی کبله چی اطباء وائی چی مِن کُلِّ الوجُوه جوړ سړی هغه معتدل المزاج وی او داسی خو یا بیخی نادر دی او یا نشته»

نو ځکه صاحبُ البحرُ وائیٔ» چی اندازه دَمرض چی په وَلاړی لمونځ دسړی ځخه ساقط وی او د جمعی د لمانځه حضو هم، او خوړل دفرضی روژی وسړی ته مباح گرځوی» او تیمم هم داده چی یا پرته یا دَت والی دَمرض موجود بیرین ی، یا پردی بیره وی چی مَرض بړی او ږد سی، واتفق علیٰ ذالک الفقهاءُ کلهم،» اذا عرفت هذا التمهید فاستمع لقول المصنف

## إِذَا تَعَذَّرَ عَلَى الْمَرِيضِ كُلُّ الْقِيَامِ أَوْ تَعَسَّرَ بِوُجُودِ أَلَمٍ

که مریض ته نه وه ممکنه پوره وَلاړه چی دی ته تعذر حقیقی وائی. او یا ورته گرانه وه وَلاړه په

## شَدِيدٍ أَوْ خَافَ زِيَادَةَ الْمَرَضِ أَوْ إِبْطَائِهِ صَلَّى

سبب د ډیر سخت درد د ولاړی په سبب یعنی که لږ درد او تکلیف وو، بیا خو به وَلاړ نه پرین دی، او دی ته عذر حکمی وائی، او یا بیریدی

## قَاعِدًا بِرُكُوعٍ وَسُجُودٍ

پر نه یا توب د مَرض، او یا پردی بیریدی که زه په ولاړی لمونځ وکړم، نو به می مَرض وځنډیږی یعنی ژر به جوړ نه سم، نو لمونځ دی کوی په ناسته په رکوع او سجده سره»





**پوښتنه**: چی بیره د زیادة المرض آه ده ته په تجربه معلومه سوی وه چی مخکی په دَغه نا جوړی مبتلا سوی وو نو چی ده پر ځان تکلیف وکړی او لمونځ یې په ولاړی وکړی نا جوړی یې ډیره سوه او یا وځنډیده، او یا هوښیار مُسلمان طبیب وَرته وَیلی وی چی ته به نه ولاړیږی که ولاړ سوی نا جوړی دی ډیریږی، او یا جوړوالی دی ځنډیږی،

**فائده**: دا اَلَم شدید مثال د فقهاؤ په سر گرځید و سره وَیلی دی، او د غابښ په درد سره او د سر په درد سره، او د مَلا په درد سره الیٰ غیر ذالک. ق، در، ط

**مسئله**: که اَلَم شدید خو په ولاړه کی نه وو لکن په وَلاړه کی د دښمن ځخه یا د لیوه وغیره ځخه بیریدی، نو دا په حکم کی د الم شدید لوی لمونځ په ناستی وَرته روادی» ط

**مسئله**: که باران سوی وو او ځمکه ختی وه. او سړی په یوه کشتنکه خیمه کی وو چی سم نه سوای په کښی دریدلای نو هم دی لمونځ په ناستی وکړی، بحر» **مسئله**: که دَسړی سالنډی کیده که ولاړ سوی وای نو بیا یې فرض القرائت نه سوای ویلای لمونځ په ناستی وَرته روادی، در»

رُوِیَ عن عمران بن حصینؓ دی وائی چی ما ته مریضی د بواسیرو خونی یا بادی پیښه وه نو ما پوښتنه وکړه د علیه الصلوٰة والسلام ځخه د لمانځه په باره کی نو ده مبارک ارشاد وویله: صَلِّ قَائِمًا فَاِن لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا » لمونځ په وَلاړه کوه او که دی د ولاړی لمونځ په وَس نه وو پوره بیا لمونځ که وه په ناستی، فَاِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَمُسْتَلقِیًا که دی هغه په وسه نه وو پوره بیا سُتنی سَځ پر یوزه لمونځ کوه یعنی په اشاره سره په اخیر کی آنحضرت صلی الله علیه وَسلم ایت په دَ وَل د شاهد تلاوت کړی، لَا یُکَلِّفُ اللهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا» خدای پاک تکلیف نه کوی پر هیڅ چا مگر په قدر دَ طاقت دهغه،

**فائده**: د مذهب کتابو کی وائی: که سړی د ناستی د لمانځه ځخه عاجز وو نو دده خوښه ده که لمونځ پر بغل کوی او که ستنی سَځ کوی. او ثانی افضل دی داخبره د دوی د تیر سوی حدیث ځخه مخالفه ده، ولی چی په حدیث مذکور کی علیٰ جنبٍ

د مخه دی او استلقاء یه بناء کړیده پر عدم استطاعت د صلوٰة الجُنُب **جواب**
امام طحطاوی وائی چی احتمال لري چی اهل مذهب ته ترحدیث مذکور بل حدیث قوی ثابت
وی، نوځکه دوی ظاهر د حدیث مذکور پر نه ببنو، ابن ولیش وائی چی په نفس احتمال سره دفع د
مخالفت نه کیږی ترهغو چی د هغه حدیث اقوی روایت ونه کړه سی، قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَيَقْعُدُ كَيْفَ شَاءَ فِي الْأَصَحِّ

او چی په ناستی لمونځ کوی نو څرنګه چی د ده خوښه وی هغسی دې
کښینی په اصح روایت کی یعنی که چارزانو کښینی، او که د التحیات پر وزم کښینی
او که لاسونه پر زنګنون اګرځوی، مطلب دا چی ده ته آسان وي، ولی عذر د مرض
د ده څخه رکن د قیام ساقط کړی نو هیأت د ناستی په طریقه اولیٰ ساقط دی،
دا خو مذهب وو د امام ابوحنیفهؒ او امام زفرؒ وائی چی په ټوله لمانځه کی د ناستی
چیه پښه غوړه وی او پر هغی به کښینی، یعنی د التحیات پر وزم لکن امام اعظمؒ
صرف د تشهد په نوبت کی به پر هغه وزم کښینی په نور لمانځه کی دی مختار دی
هر وزم چی کښینی بیله کراهته» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَالْأَقَامَ بِقَدْرِ مَا يُمْكِنُهُ

او کی ټوله رکعت یا لمونځ په ولاړی نه سوای کولای په دی معنا چی یوه اندازه
قدر ولاړه یه کولای سوای، نو دی دے هغه قدر چی د ده توان وي بیله زیارت
مشقته په ولاړی لمونځ وکړي. که څه هم په قدر د یوه ایت او یا په قدر د صرف
اَللّٰه اکبر وی، نو هر وخت چی ورته تکلیف ډیر سو بیا دی بیرته دی کښینی، ولی چی
طاعت په حسب د طاقت نو که دی ابتداءً د ولاړی توان و طاقت نه درلودای،
خو د ابتداءً نو ناسته روا وه نو انتهاءً هم ناسته ورته روا ده وهو المذهب الصحیح، قَالَ

## وَإِنْ تَعَذَّرَ الرُّكُوعُ وَالسُّجُودُ صَلَّى قَاعِدًا بِالْإِيمَاءِ

او که ده ته مشکله وه رکوع او سجده یعنی په ناسته کی هم، نو لمونځ دی وکړي په ناستی په اشاره





سره یعنی چی پر ناستی قادر وی نو په اشاره سره د پاره د رکوع او سجدی یعنی په سره
**مسئله**: که د سړي تندی ټپی وو او پر پزه یه سجده کولای سوای نو ده ته
ایماء یعنی اشاره نه ده روا، ولی چی دی پر سجده باندی قادر دی» کذا فی السراج و ط»
**مسئله** او فی النهر» که یو سړي پر ولاړه قادر وو لکن سجده یه نه سوای کولای
نو رکعت دی په ولاړی اداء کی چی وخت د رکوع او سجدی راغی کښینی دی او په رکوع
او سجده سره دی اشاره وکړي. او یا دی د ولاړی څخه اشاره د رکوع او سجدی وکړی
لکن اول افضل دی، ولی چی ناسته و سجدی ته نږدی ده کذا فی التبیین» و ط قَالَ

## وَجَعَلَ إِيمَائَهُ لِلسُّجُودِ أَخْفَضَ مِنْ إِيمَائِهِ لِلرُّكُوعِ

او ګرځوی دی اشاره خپله د سجدی د پاره کښته تر اشاره د رکوع د پاره، او کی سر کښته نه کی

## فَإِنْ لَمْ يَخْفِضْهُ عَنْهُ لَا يَصِحُّ

د سجدی د پاره تر رکوع په اشاره سره
لمونځ یه نه دی صحیح» په
دی سبب چی اشاره د رکوع او سجدی د پاره بدل دی د حقیقت رکوع او سجدی څخه په
حقیقت سجدی کی خو سر تر وخت د رکوع کښته دی» و للبدل حکم المبدل عنه» در
**مسئله**: اشاره کوونکی ته دا شرط نه ده چی په قدر د طاقت به سر د سجدی د پاره
تر رکوع کښته کوي بلکه لږ څه کښته والی هم کافی دی، بلکه د رکوع او سجدی د پاره هم
نهایت کوشش شرط نه دی، بلکه لږ څه هم کفایت کوي، کذا فی النهر عن المجتبیٰ و در»
**مسئله**: که د یو سړي پر حلق زخم وو چی سجده یه نه سوای کولای، او قیامه او رکوع
یه کولای سوای په فتح القدیر کی وائی چی دا سړي دی په ناستی لمونځ په اشاره وکړي. او
دا هم افضل کار دی، او که قیامه او رکوع وکړي او د سجدی د پاره کښینی اشاره وکړي هم
روا ده، او امام حلبیؒ وائی چی باید په هغه صورت کی چی پر قیام قادر وی او د رکوع او
سجدی څخه عاجز وي، د ولاړی څخه اشاره دی افضل وی تا چی د خلاف څخه ووزی،
ولی بعض علماءؒ وائی چی قادر ته پر قیام باندی ولاړه شرط د لمانځه ده، لکن په بحر رائق

کی وائی چی ظاهر الذهب دادی چی ایماء قائمًا وقاعدًا دواړه روادی: واللہ اعلم، قال

## وَلَا يُرْفَعُ لِوَجْهِهِ شَيْءٌ يَسْجُدُ عَلَيْهِ فَإِنْ فَعَلَ وَخَفَضَ

اوندی پورته کولی کیږی د مریض و مخته یو شی چی دی سجده پر وکړی پر هغه شی باندی اوکه یه داعنسی وکړه سوه، او مریض هم د رکوع

## رَأْسَهُ صَحَّ وَإِلَّا لَا

د پاره لږ سرکښته کی او د سجدی د پاره تر هغه لږ بالا یه کښته کړی لمونځ یه صحیح دی، اوکی بیخی سر نه کړی کښته بلکه صرف چا پر و تندی ته پروه یا پاک بالښت وغیره وړپوړ ته کړی لمونځ یه نه دی روا، ولی چی ایماء د رکوع او سجدی دواړه نیستی سوه اوکی د رکوع د پاره خو سرکښته کړی لکن سجدی ته ئی نو، نه کی کښته ئم یه لمونځ نه دی روا، ولی چی ایماء د سجدی یه ونه کړه، په حدیث مبارک کی راغلی دی چی علیه الصلوٰة والسلام د یو مریض پوښتنی ته ورغلی نو علیه الصلوٰة والسلام ولیده چی دی مریض سجده پر بالښته کوله، نو علیه الصلوٰة والسلام بالښت څنډی وغورځوی او بله وخت چی ورغلی هغه پر تخته د لرگی سجده کوله» نو علیه الصلوٰة والسلام هغه لرگی هم څنډی وغورځاوه.

او ورته وی ویل چی لمونځ کوه پر مځکه یعنی سجده» او که دی طاقت نه وو بیا اشاره کوه او سجده تر رکوع کښته کوه، او په حدیث کی چی طبرانی په روایت کړی دی داسی راغلی دی» مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَسْجُدَ فَلْيَسْجُدْ» یعنی پر مځکه»، وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَلَا يَرْفَعْ إِلَى وَجْهِهِ شَيْئًا يَسْجُدُ عَلَيْهِ وَلٰكِنْ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ يُومِئُ بِرَأْسِهِ» او امام طحطاوی د صاحب مجتبی د داسی نقل کړی دی» چی ما ته اشتباه وه په کیفیت د اشاره د رکوع او سجدی په دی کی چی لږ لږ والی کافی دی او که په غایت قدرت سره کږ والی لازم دی، وروسته ما روایت د شیخ الاسلام پیدا کړی چی هغه وائی چی مومی یعنی اشاره کوونکی: إِذَا خَفَضَ رَأْسَهُ لِلرُّكُوعِ شَيْئًا ثُمَّ لِلسُّجُودِ شَيْئًا جَازَ»





**مسئله:** چی په شرح کی د مقدسی د امام اعظم رحمه الله داسی روایت نقل کړی دی چی مریض که د اشاره نه عاجز وو. او صرف سر ئی ښوراوه د رکوع او سجدی د پاره روادی او ابن الفضل وائی چی داسی نه دی روا، ولی چی مریض لره ایماء لازمه وه او هغه ده ونه کړه، امام طحطاوی وائی چی قول د ابن الفضل مشهور دی په مذهب کی یعنی روائی عن صاحب المذهب رح. قال المصنف:

## وَإِنْ تَعَسَّرَ الْقُعُودُ أَوْمَأَ مُسْتَلْقِيًا أَوْ عَلَىٰ جَنْبِهِ وَالْأَوَّلُ أَوْلَىٰ

او که چیری مشکله وه مریض ته ناسته، یعنی بی ناسته کولای سوای په تکیه سر وه دیواله» او نه په تکیه سر وه بالښته ته، مثلًا بیله ضرره، او کی پر یو ډول قعودی یه بی ضرره کولای سوای یا قعوده پر لازمه ده مرط» نو بیا دی لمونځ په اشاره کوی ستنی ستخ، او یا پر بغل باندی، او استلقاء ښه ده تر جنب،

**مسئله:** چی په دی مسئله کی دری مذهبه دی کما فی الطحطاوی **اول مذهب** دادی چی مریض اختیار لری که استلقاء کوی او که پر بغل پریوزی که څه هم استلقاء اولی ده دا خو حکم دی د مشهور و کتابو د فقه حنیفی لکه هدایه او نور هغی د شرحو، او امام شافعی وائی چی استلقاء هلته روا ده چی د بغل د پریوتو نه عاجزه وی **دوهم مذهب** هم داغه دی او **دریم مذهب** دادی چی پر بغل لمونځ هلته روا دی چی د استلقاء نه عاجزه وی، **مسئله:** کی پر بغل لمونځ کاوه نو راسته اړخ افضل دی، ط

دلیل د اولویت د استلقاء دادی» چی یو خو په حدیث شریف د ناستی د تعسر په باب کی داسی راغلی دی، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَىٰ قَفَاهُ» کی طاقت د قعود نه وو نو پر شا باندی دی پریوزی، او د جنب ذکر په دغه حدیث کی نسته، او بل دا چی په استلقاء کی توجه و قبلی ته ډیره وی تر بغل، قال المصنف:

## وَيُجْعَلُ تَحْتَ رَأْسِهِ وِسَادَةٌ لِيَصِيرَ مُوَاجِهًا إِلَى الْقِبْلَةِ لَا إِلَى السَّمَاءِ

او وه دی وگرځول سی لاندی تر سر

دمریض چی په استلقاء لمونځ کوی یو بالنبت تاچی دی مخامخ سی وقبلی ته نه د
اسما ځواته ، قال المصنفؒ:

## وَيَنْبَغِي نَصْبُ رُكْبَتَيْهِ حَتّٰى لَا يَمُدَّهُمَا اِلَى الْقِبْلَةِ

اوبنه کاردی چی مریض دی په وخت کی د استلقاء زنګنونه جګ ودروی یعنی کی قدرت
وو، ددی دپاره چی پښی ده قبلی وخواته ونه غوړیږی چی دا غزول د پښو وقبلی ته
مکروه دی ، دروښیښوالی: چی مریض ته د پښو غزول وقبلی ته مکروه نوجوړسړی
ته په طریق اولی مکروه دی، لکه بعض کسان چی کوی ، قال المصنفؒ:

## وَاِنْ تَعَذَّرَ الْاِيْمَاءُ اُخِّرَتْ عَنْهُ مَادَامَ يَفْهَمُ الْخِطَابَ قَالَ

اوکه چیری سخته سوه اشاره په تهولو اقسامو سره نو لمونځ ځندی ځنډیږی ترڅو چی دی په خبرو

## فِي الْهِدَايَةِ هُوَ الصَّحِيْحُ وَجَزَمَ صَاحِبُ الْهِدَايَةِ فِي

سرو ویلی دی په هدایه کی دا قول صحیح دی. اوحکم کړی دی صاحب دهدائی په تجنیس

## التَّجْنِيْسِ وَالْمَزِيْدِ بِسُقُوْطِ الْقَضَاءِ اِذَا دَامَ عَجْزُهُ عَنِ

کی او مزید کی چی قضاء ځندی ساقطه ده ترڅو چی یه عجز باقی وی

## الْاِيْمَاءِ اَكْثَرَ مِنْ خَمْسِ صَلَوَاتٍ وَاِنْ كَانَ يَفْهَمُ الْخِطَابَ

د اشاری کولو زیات تر پنځو لمونځو، اوکه څه هم په خطاب سرپوهیږی

## وَصَحَّحَهُ قَاضِيْخَانْ وَمِثْلُهُ فِي الْمُحِيْطِ

او دا قول صحیح ګنړلی دی په قاضیخان کی او په مثل دده په محیط کی.





قال المصنفؒ

## وَاخْتَارَهُ شَيْخُ الْاِسْلَامِ وَفَخْرُ الْاِسْلَامِ وَقَالَ فِي

او اختیار کړی دی دا قول شیخ الاسلام یعنی خواهرزاده، او فخر الاسلام یعنی الامام السرخسیؒ. او په

## الظَّهِيْرَةِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى وَفِي الْخُلَاصَةِ هُوَ الْمُخْتَارُ وَ

په ظهیره کی وائی پر دا غر باندی فتوی ده، او په خلاصه کی وائی دا غه مختاره قول دی، او

## صَحَّحَهُ فِي الْيَنَابِيْعِ وَالْبَدَائِعِ وَجَزَمَ بِهِ الْوَلْوَالِجِيُّ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ

دغه رنګه په تاتارخانیه کی وائی دا صحیح قول دی. او پر داغه باندی الولوالجیؒ هم حکم کړیدی

## وَلَمْ يُوْمِ بِعَيْنَيْهِ وَقَلْبِهِ وَحَاجِبَيْهِ

او اشاره به نه کوی مغه مریض چی عاجز وی د
اشاری څخه په سترګو سره او نه په زړه سره او نه ده صحیح په وروځو سره. ولی چی سجده په
سرپوری تعلق لری نه په سترګو سره او نه په زړه پوری او نه په وروځو پوری ، نو بدل
د سجدی چی ایماء ده په حال کی د عجز هم په سر پوری تعلق لری،

**پوهسه:** چی امام زفرؒ وائی چی دغه مریض دی په اشاره کوی په سترګو او
زړه سره، او که بیا جوړ سو هغه لمونځ دی را ګرځوی او په بعض روایاتو کی دامام
زفرؒ دا سی نقل سوی دی، چی اول خو دی اشاره په وروځو سره کوی، ولی دوی سرته
نژدی دی، که دهغه څخه هم عاجزه وو نو دی اشاره په زړه کوی، او حضرت الامام شافعیؒ
وائی چی اشاره دی په سترګو او په زړه کوی. او امام الحسنؒ وائی چی اشاره دی په وروځو
او زړه کوی. او چی جوړ سی لمونځ به بیرته را ګرځوی، او د امام ابی یوسفؒ څخه روایت
دی چی مریض چی د سر د اشاره څخه عاجز سی، نو خاص په سترګو اشاره ورته رواده، نه
په زړه سره، او د حضرت الامام محمدؒ څخه چا په دی باره کی پوښتنه وکړه. ده ورته وویل
چی زه شک نه لرم چی اشاره په سر خو رواده، لورود النص به ، او په دی کی هم شک نه

لرم چې په زړه خو اشاره نه ده روا، ولې چې اصل سجده خو اعمالو څخه د جوارحو ده نو بدل یې باید فعل د جوارحو وي، او په دې کې شک یم چې اشاره په ورځو بروا وکړنه، کذا فی الکفایه»، د دې تولو جواب دا دی چې ایماء با الرأس په حدیث شریف راغلی ده، نو که څه هم خلاف القیاس ده نو هم موږ په لازمه بولو په عاجز باندې، او د اصولو اسلم قانون دی چې یو حکم چې په نص سره خلاف القیاس ثابت سي، بل شی بیا نه پرقیاسیږي، او د مجتهدینو پر دې خبره اتفاق دی چې نصب د ابدالو په رایه سره نا روا دی، په حدیث مبارك کې خو داسې راغلی دی: یُصَلی المَرِیضُ قَائِمًا فان لم یستطع فقاعدا فان لم یستطع فعلی قفاه یؤمی ایماءًا فان لم یستطع فالله احق بقبول العذر منه»

درویش وائی:
چې د اخیری جملی د حدیث په معنی کې اختلاف دی، بعض علماء یې معنی داسې کوي چې خدای جل شانه د ده څخه عذر د تاخیر د لمانځه قبلوي، نو حاصل دا چې که جوړ سو د غو لمونځو قضاء به راوړي، او اکثر علماء لکه چې عنقریب تیره سوه ترجمه د ه حدیث کې داسې کوي خدای جل سلطانه قبول د عذر استقاط د ده څخه کوي یعنی چې جوړ سی د دغو لمونځو قضاء پرې نسته» قَالَ المُصنفُ:

# وَاِنْ قَدَرَ عَلَى الْقِيَامِ وَعَجَزَ عَنِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ صَلّٰى قَاعِدًا بِالْاِيْمَاءِ

او که چیرته یو مریض خو پر ولاړه قادر وو لکن رکوع او سجده یې نه سوای کولای نو لمونځ دې په ناستې په اشاره سره وکړي، درویش وائی چې دا بیا ن د افضل وو، ورنه اشاره د ولاړې څخه هم روا ده وجه دا فضلیت یې دا ده چې دی په ناسته کې، وحقیقې رکوع او سجدې ته نژدې دی «فینبغی ان یقرب البدل وهو الایماء ایضا منه»

---

د اکتاب د علامه قندهاري: نوشته کړ فضل حق حقانی: اللهم اغفرلها ولوالدیها آمین





قَالَ المُصنفُ

# وَاِنْ عَرَضَ لَهٗ مَرَضٌ يُتِمُّهَا بِمَا قَدَرَ وَلَوْ بِالْاِيْمَاءِ فِي الْمَشْهُوْرِ

او که پیښ سو و لمونځ کوونکی ته مرض په لمانځه کې یعنی شروع د لمانځه خو یې په حال کې د صحت وکړ لکن په ما بین کې د لمانځه مرض ورته پیښ سو، نو لمونځ دې پوره کړي پر هر ډول چې دی قادر وي، که څه هم په اشاره سره وي په مشهور روایت کې «قال المراقي وهو الصحیح»، حاصل دا چې دا مریض دې هغه کړي بعض لمونځ د صحت په وخت کې نه بدیږي، یعنی د دې د پاره چې د سره څخه بې یک لخته په اشاره وکړم: وَلَا تُبْطِلُوا اَعْمَالَكُمْ» نص قرآن دی » قَالَ المُصنفُ

# وَلَوْ صَلّٰى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ فَصَحَّ بَنٰى وَلَوْ كَانَ مُوْمِيًا لَا

که چیرې یو مریض لمونځ په ناستې کاوه، او رکوع او سجده یې کوله بیا نو جوړ سو یعنی قادر سو پر ولاړه د ولاړې لمونځ دې وکړي یعنی پر بناء دې کړي ولې چې بناء خو لکه اقتداء ده او اقتداء د قائم پر قاعد پسې خو روا ده نو بناء هم روا ده، په نیزد شیخینو خلافا لمحمد درویش وائی چې یرکع ویسجد آه فائده دا ده چې که د دې مریض ترر رکوع او سجدې کولو د مخه جوړ سو بیا خو بناء اتفاقا روا ده، ولې چې بناء د قوي پر ضعیف نسته په اتفاق سره، او که لمونځ په اشاره کاوه او بیا جوړ سو یعنی پر رکوع او سجدې باندې قادر سو بناء دې نه کوي، بلکه لمونځ دې د سره راګرځوي» لما فیه من بناء القوی علی الضعیف »،م قَالَ المُصنفُ:

# وَلَوْ جُنَّ اَوْ اُغْمِيَ عَلَيْهِ خَمْسُ صَلَوَاتٍ قَضٰى وَلَوْ اَكْثَرَ لَا

او که پر سړي لیونتوب راغلی لکن په آفت اسمانی سره کما فی المراقي، او یا بې هوښه سو که څه هم د یوه ډار نه څخه د لیدو په سبب د بیهوشی سوی وي، او تر پنځو لمونځو پورې یې لیونتوب یا بیهوشی دوام وکړي او بیرته جوړ سو او یا په سد کې راغلی د دغو لمونځو قضاء به راوړي

اوکه تر پنځه لمانځه بالا سو چې د شپږ م لمانځه وخت تیر سو بیا د لمونځو قضاء نسته باندې طحطاوي وائي چې دا قول د امام محمد دی او دغه قول تصحیح په اکثرو معتبرو کتابو کي کړه سوېده، مجمع الانهر،

او ابن امیر حاج وائي چې قول د امام محمد د حقه سره ډیر مشابه دئ، ولې ساقطوونکي د قضاء وقوع في الحرج دی او وقوع في الحرج هلته راځي، چې قضائي لمونځونه وحد ته د تکرار داخل سي،

**پوهسه**: چې مراقي آفت سماوي ذکر کړي د دې سبب که د سړي عقل په شرابو خوړلو سره زائل سوی وي، پر هغه باندې قضاء د لمونځو لازمه ده که څه هم ډیره زمانه پر تیره سي، ولې چې دا زوال د عقل ورته په معصیت سره حاصل سو نو دی لائق نه دی چې د ده سره شریعت تخفیف وکړي. نو همدا سبب دی که د چا عقل په آفت سماوي سره زائل وي د هغه طلاق نه واقع کیږي او که د شرابو په خوړلو سره یې عقل زائل سوی وو د هغه طلاق واقع کیږي، او حضرت الامام الاعظم وائي که چا کمه دوا یا گولې د نشې خوړلې وي هر څونه ډیر چې نشه وي قضا د لمونځو چې په هوش کي راسي باندې سته، په دلیل د دې چې سقوط د قضاء په حدیث سره سوی دی او حدیث شریف په آفت سماوي کي راغلی دی، نو هغه نشه چې د ده په فعل سره پیدا کړي په فعل سره سوې وي هغه پر آفت سماوي نه قیاسیږي. او په بعض روایاتو کي راغلي چې جنون مطلقًا که ممتد وي او که غیر ممتد وي قضاء د لمانځه ساقطوي، کذا في البرهان، لکن معتبر کتابونه د فقهي شریفې پر هغه روایت دي په جنون کي هم امتداد شرط دی۔

**مسئله**: که چیري پر سړي والی لره د مجنون او یا بیهوشه وقت معلوم وو، لکه یو سړي چې بې سده وي د شپې چې سپیدې راوچوي لې په سد کي راسي او بیا بیرته بې سده سي، نو دا افاقه د ده اعتبار لري په دې معنا چې هغه د مخه بې سدتیا په اسقاط کي د قضاء اعتبار نه لري. که د مخه اغماء تر شوا روز کمه وه، بلکه ورو سته اغماء په اعتبار لري، چې خونه اندازې نه رسیږي، او که افاقت لره وقت معلوم نه وو یعني گاهي بې خبرې د جوړو خلگو وکړي او بیرته بې سده سو، دې افاقت ته اعتبار





نسته کذا في التاتارخانیه، په دې کي بیان د هغه فائدې قید چې مراقي راوړي دی د اغماء سره. واستمر به، ظاهره سوه فتدبر

**فائده**: هغه قول چې مصنف وئیلی دی چې لمونځونه چې تر شپږ بالا سي نو قضاء ساقطه ده هغه قول د امام محمد وو کما مر، او حضرت الامام الاعظم او امام ابو یوسف تجاوز د جنون او اغماء تر یوه شبانه روزه په ساعاتو سره وائي که څه هم یو گړی تجاوز وکړي، ولې چې تجاوز په ساعاتو سره منقول دی د حضرت علي او ابن عمر څخه نو هغه اولی بالعمل دی، ولې چې مقدارونه چې دي په رایه نه معلومیږي مثلًا یو سړی په ځاښت کي بې سده سو:

او د ابله ورځ تر زوال د مخه یو ساعت پر سد راغلی، نو په نیز د شیخینو قضاء د لمونځو باندې نسته ولې چې د ساعتو په حساب تر شبانه روز بالا سو، او د امام محمد په نیز قضاء پر سته. ولې لمونځونه په وحدته تکرار نه دی رسیدلی،

**فائده** امام طحطاوي وائي چې اعذار عقلیه درې قسمه دي، یو ممتد دی جدًا لکه کشني والی هغه خو مسقط د ټولو عبادتو د فرضیت دی، او بل قاصر دی جدًا لکه خوب هغه مسقط د هیڅ عبادت نه دی ولو طال جدًا نادرًا، او بل په مابین کي د ممتد او قاصر دی چې هغه ته اغماء وائي، نو که اغماء ممتد سي حکم د صبا لري او که لږ وي حکم د خوب لري، ذکره الحدادي،

**فائده**، اغماء په روژه او زکوة کي کار نه لري، ولې یوه میاشت پوره او یا یو کال بسته اغماء نادره نه ده جدًا ولا اعتبار للنادر في الاحکام الفقهیه، بخلاف الجنون فانه یمتد الی الاعوام کثیرًا، فیعتبر في سقوط العبادات،

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

---

**محترمو لوستونکو** دا پښتو شرحه د نور الایضاح جلد دوهم بر تا سو ته د مکتبة القراءة والتجوید لخوا نشر ته وسپارل سي ولې چې حضرت ایوبي په حقوق وهم دې اداري ته ورکړي،

## فَصْلٌ فِيْ إِسْقَاطِ الصَّلٰوةِ وَالصَّوْمِ

دا فصل دی په بیان کی د ساقط والی د لمانځه او روژی»

**إِذَا مَاتَ الْمَرِيْضُ وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الصَّلٰوةِ بِالْإِيْمَاءِ لَا يَلْزَمُهُ** که چیری مریض مړ سو او دی قادر نه وو پر لمانځه په اشاره یعنی په سره، نو پر ده لازم نه ده وصیت په هغو لمونځو سره که څه هم لږ وي، **الْإِيْصَاءُ بِهَا وَإِنْ قَلَّتْ** یعنی د طرفه څخه د خدای حکم دا دئ چی پر ده نه د. لازمه وصیت کول په فدیه د هغو لمونځو که څه هم لږ وی، یعنی د شپا نه روز تر لمونځو کم وی،، دلیل په هند د مخنی حدیث دی چی خدای پاك د مریض عذر مَنی،، هغه علماؤ چی د قبول العذر معنا په جواز التاخیر کوي، د هغوی پر مذهب خو په دی سبب پر ده وصیت د لمانځه نه دی لازم چی د غه میت قدرت نه دی پید اکړی د قضا پر اوړو ولی په هغی نا جوړی کی مړ سو. او قدرت خو شرط د تکلیف دی،، لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا،، آیة کریمه دئ، او هغه مشائخ چی د قبول العذر تفسیر په سقوط سره کوی د هغوی پر مذهب خو نه لازم والی د وصیت ظاهر دئ. ولی چی د ده په ذمه کی لمونځ نسته، اعلم چی نص خو په روژه کی ستر چی ساقطیږی د ذمی څخه د مړی په فدیه سره او امام طحطاویؒ وائی چی د ټولو مشائخو اجماع ده پر دی باندی چی لمونځ لکه روژه دئ استحسانًا،، ولی چی لمونځ تر روژی اهم دئ،،

لکن اختلاف د مشائخو په دی کی دی چی آیا د ټول شپا نه روز لمونځونه لکه یوه روژه دی په فدیه کی او که هر لمونځ جلا لکه یوه روژه دی په فدیه کی، اعتماد د ډیرو علماوو پر دوهم رایه دی،، نو بناءً علیٰ هذا هغه جاهلان چی وائی چی اسقاط د لمانځه هیڅ اصل نه لري، ډیره د مذهبه څخه لیری خبره ده، ولی چی دا خبره د دوی انکار دی د امر متفق علیه څخه په مذهب کی:





**قَالَ الْمُصَنِّفُ وَكَذَا الصَّوْمُ إِنْ أَفْطَرَ فِيْهِ الْمُسَافِرُ وَالْمَرِيْضُ وَمَاتَا** او دا غه رنګه روژه د میاشتی د روژی چی وصیت په فدیه نه دی پر لازم که چیری روژه وخوړل **قَبْلَ الْإِقَامَةِ وَالصِّحَّةِ** مسافر یا مریض په میاشت کی د روژی او دوی مړه سوه مسافر د مخه تر مقیم والی او مریض د مخه تر جوړوالی ولی چی خدای پاك د روژی پر باره کی وائی: فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ او دوی دوو کسانو خو عدت من ایام اُخر نه دی پیدا کړي، نو ځکه وصیت هم نه دی پر لازم،، قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَعَلَيْهِ الْوَصِيَّةُ بِمَا قَدَرَ عَلَيْهِ وَبَقِيَ بِذِمَّتِهِ** او لازم دی پر ده وصیت کول په فدیه د هغو روژو چی دی پر قادر سوی وی پر هغه روژو باندی او د ده په ذمه کی پاته وي، اروایش وائی چی تفصیل د دی مسئلی دا دی، چی که یو سړی په میاشت کی د روژی یه روژه خوړلی وه لکن بیله عذره پر هغه خو وصیت په فدیه لازم دی که څه هم عِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرُ،، یه نه وی پید اکړي، ولی چی تقصیر ده د خوا دی، ولی یه بی عذره روژه خوړله، او که سړي روژی په میاشت کی د روژی په عذر د سفر یا ناجوړی مثلًا لس روژی وخوړلی، او وروسته مقیم سو مسافر او یا جوړ سو مریض وروسته تر پنځو ورځو مثلًا هغه مسافر مړ سو او یا مریض مړ سو، نو پر دی د واړو لازم دی وصیت په فدیه د پنځو ورځو ولی چی قدرت خو دوی پید اکړی،، مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ،،

**مسئله:** دما بقی فی ذمته د قسمه څخه دی، روژی د کفارة الصوم، روژی د کفارة الظهار، او روژی د جنایت پر احرام او نذری روژی،، یعنی د ټولو د پاره وصیت کول په فدیه لازم دی،، و فی الدر المختار،، ما حاصله دا دی،، که د میت په ذمه کی عبادت بدنی وو لکه لمونځ روژه، نو وصی د مړي دی پس له مرګه د ده پر واجب فدیه ورکړي، او که په ذمه کی د ده عبادت مالی وو لکه زکوٰة وغیره، هر مقدار چی د ده په ذمه کی وو هغومره دی ورکړی، او که مرکب وو، د بدنی او مالی څخه لکه حج نو یو سړی دی واستوی

حج نه دمړي د ماله څخه، قَالَ الْمُصَنِّفُ: **فَيُخْرِجُ عَنْهُ وَلِيُّهُ مِنْ ثُلُثِ**

**مَا تَرَكَ لِصَوْمِ كُلِّ يَوْمٍ وَلِصَلٰوةِ كُلِّ وَقْتٍ حَتَّى الْوِتْرِ نِصْفَ**

نووري باسي ولي دمړي دمړي له طرفه څخه (یادوورثت دلاري یادوصایه دلاري) د دریمې حصې څخه د مال متروک دمړي ولي چې حق دمړي په وخت کې د مرض الموت د ده په دریمه حصه کې دی د مال د ده او دوې حصې دمیراث خوري دی. نوکه ده وصیت کړی څو جبرًا به دی ولی

**صَاعٍ مِنْ بُرٍّ اَوْ قِيْمَتُهٗ وَاِنْ لَمْ يُوْصِ وَتَبَرَّعَ عَنْهُ الْوَارِثُ**

**جَازَ** دمړي اجر لوده څخه، فدیه دروژي دهرې ورځې او د لمانځه دهروخت حتی دوتر و فدیه نیمه کاسه دغنمو او یا قیمت د نیمې کاسې. اوکه مړي وصیت نه وو کړی او تبرع یعني احسان وکړي دمړي کسره میراث خور یعني دفدیه ورکولو په وجه سره هم روا ده،

**پوښتنه**: چې مصنف په مراقی کې وئیلی ده چې پوره د صدقة الفطر، یا پوره دنفقو لجی دماینې مثلاً، یا پوره دخروج، او پوره دکفارات مالیه وو، او وصیت په حج سره او یا نذر کړي خیرات دروپو، او یا اعتکاف چې ده نذر کړي وي یعني دروژې فدیه دی ورکړی که څه هم لبث فی المسجد کفاره نه لري،،

**مسئله**، کې یو سړي پر ځان اعتکاف نذر کړی وو، او دی چې وو په دې وخت کې جوړ ؤد او اعتکاف یې نه وکړي نا جوړي سو، او قریب للموت سو نو پر ده لازمه ده چې ده روژي داعتکاف دفدیه وصیت دی وکړي، اوکه دی مریض وو چې اعتکاف یې نذر کړی او هغه مرضه جوړ نه سو، بیې مړ سو، بیا شی نسته، **پوښتنه**: چې تر غنمو قیمت افضل دی ولې چې د مسکین هر حاجت په، وپو سره پوره کیږي،،

**مسئله**، چې میت وصیت ونه کړي او وارث تبرع وکړي په فدیه کې د ما علیه کفایت به وکړي اِنْ شَآءَ اللّٰهُ حضرت الامام محمد په اطعام دصوم دمیت تبرعًا وَاللّٰهُ یجزیه ان شاء الله او چې وصیت یې وکړي په هغه کې جزمًا وائي چې کفایت کوي، **مسئله**: که بیګانه سړي تبرعًا دمړي فدیه ادا کړي هم صحیح ده، او کې وصیت په حج سره کړي وو نو





منزول به د ده کوره څخه رهی کیږي د ثلث مال څخه دده، او که تبرعًا وَلِيُّ حج نیسی کوي نو هر ځای څخه چې رهی کیږي روا ده، **مسئله**: که مړي ثلث المال د ده د ومره نه وو چې د ده وصیت په کړي وي اجراء نسواي ویلای نو په ترتیب سره دی د فدیو غاړه وباسي هغه نوري باقي به اخرت ته پاته سي. **پوښتنه**: چې ترتیب د فدا یا وو په دریم ځای کې د سراجي د حواشیو ذکر سوي دی په ډیر بسط او تفصیل سره نو هغه حاشیه باید مطالعه سی،، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَلَا يَصِحُّ بِاَنْ يَّصُوْمَ عَنْهُ وَلَا اَنْ يُّصَلِّيَ**

**عَنْهُ** او نه دی صحیح چې روژه ونسي دمړي د خوا څخه یعني که ولي او که بل څوک وي، او نه صحیح دی لمونځ کول دمړي د خوا، لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ: لَا يَصُوْمُ اَحَدٌ عَنْ اَحَدٍ وَلَا يُصَلِّيْ اَحَدٌ عَنْ اَحَدٍ وَلٰكِنْ يُطْعِمُ عَنْهُ،

**پوښتنه**: په صحیح حدیث کې راغلی دی: مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهٗ، او په بل یو حدیث شریف کې راغلی دي چې یوې ښځې د علیه الصلوٰة والسلام څخه سوال وکړي چې زما مور مړه سوه او پر دې روژي با ندې وې. آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وویل: صُوْمِيْ عَنْ اُمِّكِ، **جواب**: فقهاء او محدثین وائي چې دا حدیث منسوخ دی کما فی البرهان، مراقی وائي چې بعض جاهلان عوام و مسکین ته پیسې ورکړي چې زما په بدلارې مثلاً دونه روژي و نیسه یا دونه لمونځونه وکړه، دا هیڅ شی نه دی، بلکه رب جل سلطانه په هغه صدقه او فدیه سره چې شرع شریفې مقرره کړې ده، وخپل بنده ته تر روژو او لمونځو ورته تیر یږي،،

**سوال**، په فقه شریفه کې راغلي دي چې بنده و بل بنده یا مړي یا ژوندي ته ثواب دخپل عمل بخښلای سي، **جواب**: دا بله خبره ده او صحیح ده لکن روژه د روژې عوض کرځول یا لمونځ د لمانځه بدلا خبره ده،، قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَاِنْ لَّمْ يَفِ مَا اَوْصٰى بِهٖ عَمَّا عَلَيْهِ يُدْفَعُ ذٰلِكَ الْمِقْدَارُ**

که چیري نه بسیدل هغه پیسې چې مړي وصیت په وکړي. او یا دریمه د مال د ده په نه بسیدله

## لِلْفَقِيْرِ فَيَسْقُطُ عَنِ الْمَيِّتِ بِقَدْرِهٖ ثُمَّ يَهَبُهُ الْفَقِيْرُ

اوبا وصیت گردسره نه وو کړی. نو بیو چا تبرعًا یو لږ مبلغ چې هغه د ده د روژو او لمونځو کفایه نه وی

## لِلْوَلِيِّ وَيَقْبِضُهٗ ثُمَّ يَدْفَعُهُ الْوَلِيُّ لِلْفَقِيْرِ وَهٰكَذَا حَتّٰى

کولای نو په دغې سره صورت کی دا سې حیله وکړی چې دي ته په فقه شریفه کی حِیلة الاسقاط وائی

## يَسْقُطَ مَا كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ مِنْ صَلٰوةٍ وَصِيَامٍ

چې دغه لږ مبلغ د څو روژو او لمونځو چې بیدی، په هغه اندازه سره یو مسکین ته دی ورکړي یعنی تملیکًا، نو په هغه اندازه لمونځونه یا روژې د مړي څخه ساقطیږي، او بیا دی فقیر دغه لږ مبلغ بیرته ولی ته وبخښي، او ولی دی قبض کړی، بیا دی ولی بیرته وفقیر ته ورکړی په نیت د اسقاط د میت څخه په هغه اندازه لمونځو یا روژو کی، او فقیر دی قبض کړی. او دا غه تملیك وفقیر ته او هبهٔ فقیر و ولی ته تر هغو پوری جاري وي څو چې ساقطیږي د مړي څخه ټوله هغه روژې یا لمونځونه چې د ده په ذمه کی وه، او یا ساقطیږي نور واجبات چې د میت په ذمه کی وه، لکه چې د مخه تیره سوه. قال الراقی وهو الملخص فی ذالك ان قال الله تعالیٰ المتبرع کرم

**فائده** دحیلی څخه داسقاط ټول هغه ډلي چې د مذهب تقلید نه لري سخت منکره دي. او بې خپلو رسالوکی او تقریروکی د استهزاء په سترګو ورته ګوري، دا بې مذهبه کسان څوك دي، وهابیان، سلفیان، پنجپیریان، دوخت ظواهر الحدیث والا، او دې مجموع ډلو ته غیرمقلدین وائی. قال المصنف رح:

## وَيَجُوْزُ اِعْطَاءُ فِدْيَةِ صَلَوَاتٍ لِوَاحِدٍ جُمْلَةً بِخِلَافِ

## كَفَّارَةِ الْيَمِيْنِ وَاللّٰهُ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰى اَعْلَمُ

او روا ده ورکول د فدئی د ډیرو لمونځو یوه سړي ته په یوه ځای، په مراقی کی وائی چې د ډیرو روژو دا هم روا ده،





او په خلاف د دی د کفارهٔ قسم چې هغه ویوه سړي ته په یوه ځای نه ده روا، البته ویوه سړي ته په کراتو روا ده، لکن هره ورځ جلا جلا، **پوهسه**: چې د صدقه منذوري ورکړه و یوی سړي ته په یوه ځای هم روا ده، ط

**مسئله**: د هغه کفاراتو د فدیه دفع ویوه سړي ته په یوه ځای هم نا روا ده چې په کی تصریح په عدد سره وی مثلاً کفارة متعين مسكينًا

## بنهانه حواله

**پوهسه**، چې درویش په رد کی د رسالې د امین الله السلفی یوه په زړه پوری رساله بنه مد لله رساله، په بیاض د خیالی لیکلی ده چې نوم یې سیف قندهاري علی عنق امین سلفی دی، او په هغې رسالی کی ټوله هغه خبري د امین چې د مذاهب اربعوو څخه خلاف وي بلکه د اهل السنة والجماعة د عقائدو څخه خلاف دی په آیت او حدیث او د مجتهدینو په نقل سره رد کړي دی چې یوه په هغو کی مسئله د حیلة الاسقاط ده.

**پوهسه**: چې امین پشاوري په دغه رساله کی ډیر دبې شرمي څخه کار اخستی دی، د مصنف د کتاب العقائد النسفیة، چې په مفتی الثقلین سره شهرت لري، او د اهل سنت والجماعت لوی امام دی، د تاریخ ورقی ټولی د ده په جلالت شاهدی دي، امین مذکور د ده په شان کی لیکلی دي، وَلَمْ يَكُنْ عَلٰى طَرِيْقَةِ السَّلَفِ، او په یو بل ځای کی داسې عبارت لیکلی، لَقَدْ ضَلَّ الْاَشْعَرِيَّةُ وَالْمَاتُرِيْدِيَّةُ فِيْ هٰذِهِ الْمَسْئَلَةِ، او ورته ده بې حیائی الفاظ په شان کی د معتبرینو د اهل السنت والجماعت لیکلی دی، او چونکه درویش ډیر کلونه د مخه په شرح عقائد یوه حاشیه کړې وه او تخمینًا ۲۰ کالی کیږي، چې د دغه کتاب د ده درویش د حاشیې سره د علماوو متبحرینو د افغانستان او پاکستان په مدرسو کی ویئل کیږي او هیڅ چا په رد نه دی کړي. او ما په اخیر کی د شرح مذکور یوه حاشیه لیکلی ده چې په هغې کی لس عقائد د اهل سنت او جماعت می جمع کړي وه لکه مسئله د سفر وقبر ته د علیه الصلوة والسلام او استمداد د ده صالحانو بندګانو څخه د خدائ کړل نو ندی

وي اوکه مړه وي خصوصًا الاستمداد من النبي عليه الصلوة والسلام » او نوري ورته مسئلې دي اوکه مړه وي خصوصًا الاستمداد من النبي عليه الصلوة والسلام » او نوري ورته مسئلې په متعلق کې داسې عبارت ليکلی دی »

نود امين دَ دَغې حاشيه په متعلق کې داسې عبارت ليکلی دی » لَقَدشرع القندهاري في تشريکاته ، وروسته يه د الشّ مسئلې په اَقوالو د ابن تيميه الحراني او عبدالوهاب النجدي او ابن القيم وَغيرهم من اَئمة مذهبه » باطلې کړې دي په گمان ، نو عاصي په حاشيه کې دخيالي دده دَ نورو خرافاتو مسئله په مسئله جوابونه ورکړي دي ، د اثنا بايد اهل علم او اهل انصاف مطالعه کړي » تا چې د مذهب د اهل السنة والجماعة بنه توضيح په ورته وُسي او دُښمني د امين سلفي به دوي ته ښکاره شي ، چې په اندازه کې د اهل السنت والجماعة څخه مخالف دي ،

او څونه دې شرمي څخه دے عبارت يه په شان کې دَ تقليد او د مقلدينو او د دوي د کتابو فتاواوو په باره کې استعمال کړي دي **پوهَسه** : چې د درويش د دي د لود مذهبو په رد کې په شرح کې دَ نور الايضاح هم کافي او په نره پوري کړي دي ترد ي ځايه دَ محله عغه مطالعه کړي.

## دَ تعجُّب دَ که خبَره

دغه دلې دخير القرون د اماما نو مجتهد انو رحمهم الله تقليد نه کوي ، او د وړو سته ملايانو چې ترخير القرون ډير وروسته وميدان ته دعِلم راغلي دي دَ هغو ډير سخت مقلدين دي او که دوي وائي چې موږ په قَالَ الله وَقَالَ الرسول عمل کووده چا تقليد نه کوو دا خبره ددوي غلطه ده . ولې چې دوي په هغه قَالَ الله وَقَالَ الرسول عمل کوي چې محمدبن عبدالوهاب يا ابن تيميه وغيرهما دوي ته يه ترجمه کړي وي ، نو موږ مُقلدان د مذاهب اربعه ووهم په قَالَ الله وقَالَ الرسول عمل کوو لکن په هغه دَ وَل چې دخير القرون مجتهدينو يه موږ ته معنا بيان کړي وي »

---

اللهم اغفر لمولفه وَلکاتبه ولمن سَعىٰ فيه وقد اهتم بطبعه شمسُ الحق شمس »





# بَابُ قضَاءِ الفوائِت

## باب ثابت دی په بيان کې د قضاء راوړلو د قضائي لمونځو

**پوهَسه** : چې لمونځ چې په قصد بيله عذره سړي پريږدي هغه ته متروك وائي . او چې په عذر ځندې پاتې سي هغه ته فائِت وائي » قضاء راوړل خو د واړو لازمه ده لکن په اول صورت کې گناه کار دی توبه پر لازمه ده . او په دوهم صورت کې گناه نسته ولې چې معذور گناه کار نه دی » نو اوس سئوال دا دی چې مصنف بايد په عنوان کې د باب داسې وَيلي واى » بَابُ قضاء الفوائت والمتروکات » ليشمل قضاء الصمين » **جواب** مصنف بناء پر حسن ظن پر مسلمان متروکات نه وَيله يعنې مصنف پر مسلمانانو ښه گمان کوي چې مسلمان به په قصد بيله عذره لمونځ نه پريږدي البته عذر به لري فافهم ،

### فَائِدَة سَنِيَة

**پوهَسه** ، چې په نور الانوار ، طحطاوي ، فتح القدير او نورو کتابو د اصولو او فقه شريفه وائي چې مامور به دري قسمه دي اَدَاء ده ۲ قضاء ده ۳ اعاده ده . او اداء هم دري قسمه ده ، اداء کامله ده لکه لمونځ په جماعت سره ، او اداء قاصره لکه لمونځ بې جماعته يعني يوازې بيله عذره ، وجه د قصور يه دا ده چې دَ لمانځه يو نه بيا وصف چې جماعت دی په کښې فوت سُو ، او اداء شبيه با القضاء ده » يعني په حقيقت کې خو اداء وي لکن مشابه د قضاء سره وي ، لکه دَ سړي څخه چې اول دَ لمانځه د امام تيرسوي وي نو څرنگه چې امام سلام وگرځوي ، مقتدي چې په اصطلاح کې لاحق بولي ، هغه تيرسوي لمانځه ته والاړسي ،

نو دغه لمونځ چې لاحق يه کوي په واقع کې خو اداء ده چې په خپل وخت کې لمونځ دی ، لکن څو مقتدي په سبب د اقتداء با الامام لمونځ د امام سره پر ځان لازم کړي وو ، او دا اوس لمونځ دده هغسې نه دی نو شبيه با القضاء وي ته وائي » **فَائِدَه** : مصنف په مراقي

کی وائی چې قضاء په لغت کې حکم ته وائی. نو هم دا سبب دی چې قاضی ته د محکمې قاضی وائی
او په شریعت کې اسقاط دی د واجب په مثل سره د هغه د خپل حوا نځه»

**پوهه:** چې ورته عبارت په ورته کتابونو کې د فقهې شریفې اعلیٰ دی، لکن امام طحطاوی وائی چې قضاء په عین هغه سبب سره واجبه ده چې په هغه سبب سره اداء واجب وه. نو بناءً علیٰ هذا قضاء تسلیم د عین واجب دی د مثل د واجب نه دی، لکن دا قدر په فرق دی چې اداء تسلیم د عین واجب دی په خپل وخت کې او قضاء تسلیم د عین واجب دی پسله خروجه د وخت». نور دی وائی چې دا قول د مصنف چې په مثل سره مبنی دی پر مرجوح مذهب باندی» هغه دا چې بعض فقهاء وائی چې وجوب د قضاء په سبب جدید سره دی» او دا اوس قضائی لمونځ چې سړی کوی په دی سبب مثل د واجب دی آه»

**اُرولیش والیٰ** چې دا اختلاف چندانی اختلاف نه دی، ولې چې د عین واجب او د مثل د واجب اطلاق پر قضائی د لمانځه دواړه روا دی، په دوه اعتباره. په اعتبار د دی چې سبب د قضاء عین سبب دی د اداء دی لکه مذهب راجح چې دی پر قضاء اطلاق د عین واجب صحیح دی، او په دی اعتبار چې د دی وقت د قضاء عین وقت د اداء نه دی اطلاق د مثل الواجب پر قضاهم صحیح دی، فلاحاجة الی حمل کلام المصنف علی القول المرجوح کما حمله الطحطاوی» بل الاختلاف المذکور اختلاف اٰخر لادخل له فی اطلاق العین او المثل فافهم» او اعاده د لمانځه اگر څه هم د لمانځه دی په خپل وخت کې په سبب د نقصان ما سوا د فساد نځه» ولې فقهاء وائی چې هر لمونځ چې سره د کراهة تحریمی اداء شو اعاده یې پر واجب ده، په هغه وخت کې، او مندوبه چې وخت تیر سی، او مصنف چې په مراقی کې قید د واجب و وایه اشاره یې وه دی نه وکړه. چې د سنتو اگر څه لو ته قضاء نه ویل کیږی. مثلاً شارع م امر کړی چې د سړی څخه د سحار لمونځ قضاء سی نو چې فرض اگر څوی سنت دی هم اوگرځوی. لکن پر عبارت د مصنف د سنت اگر څو لو ته قضاء نه وائی. او که په ځای کې د واجب عبادت ذکر سی او داسی وویل سی چې اداء کول د عبادت





دي په خپل وقت متن کې او قضاء مثل د عبادت دی په بل وخت کې نو قضاء ته سنتو چې شارع امر په قضاء سره کړی هغو ته هم شامليږی، فافهم قال المصنف:

**اَلتَّرْتِيْبُ بَيْنَ الْفَائِتَةِ وَبَيْنَ الْوَقْتِيَّةِ** او ترتیب په مابین کې د قضائی لمونځو چې لږ وی او ترشیپ لا نځه کموی یعنی چې دوختی لمانځه وخت فراخ وی چې قضائی او وختی دواړه په کښی ځائیږی، او که وخت تنګ وو اصله څخه لکه د ماښام لمونځ او یا په منع د مصلی تنګ شو، مثلاً د ماپښین د لمانځه وخت خو په اصل کې فراخ دی لکن مصلی د ماپښین لمونځ و ځنډاوه چې اوس دواړه پکښی ځائیده نو بیا ترتیب ساقط دی وختی لمونځ دی وکړی او بله شرط د دی چې قضائی لمونځ به پیاد وی او کې هغه هیر وه بیاهم ترتیب ساقط دی» قال المصنف:

**وَبَيْنَ الْفَوَائِتِ مُسْتَحَقٌّ** او په ترتیب کول دی د وختی لمانځه او د قضائی لمانځه په معنیٰ د دی چې قضائی دی تر وختی د مخه اگر څوی، او دغه ترتیب په خود ی قضائی وو کې مثلاً د سړی څخه د ماپښین مازدیگر ماښام لمونځونه قضاء سوی وه. نو د قضاء او ر و په وخت کې بر اول د ماپښین لمونځ اگر څوی او بیا دی د مازدیگر لمونځ و روسته د ماښام لمونځ، دا ترتیب دواړه مستحق او لازم دی»

**پوهه:** چې ترتیب فرض عملی دی کې خولک و نه کړی مثلاً د وقتی او قضائی لمانځه تر مابین وقتی لمونځ به نه دی صحیح بیرته اگر څوی چې قضائی و روسته سی، وکذا بین الفوائت»

**فائده:** حضرت الامام احمد بن حنبل وائی که سړی په قصد بیله عذره لمونځ قضاء کړی پر هغه یې قضاء نسته، ولې د دی امام په نیز دا سړی مرتد سو، او مرتد چې توبه وکاږی په قضاد ما ترکه نه دی مامور ط» **فائده:** تموله عمر وخت دی د قضائی لمونځو بیله د دری اوقات مکروهه وو، او په قهستانی کې وائی چې قضاد لمانځه واجب علی الفور ده په نیز د امام ابو یوسف او علی الفور واجبه ده په نیز د امام محمد»

وعن الامام اعظمؒ فیه روایتان، **فائده:** په مجتبیٰ کی وائي چې قضاء راوړه د لمونځو نه غوهم واجب علی الفور ده لکن په عذر د سعی د نفقه د عیال او یا نورو حوائجو په تاخیر سره گناه کار نه دی، ط

**فائده:** مصنفؒ په مراقی کی دلیل د وجوب د ترتیب هغه حدیث بولی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وویل که سړی بیده سو دیوه لمانځه نه او یا یې هیر ئو نو د غه قضائی لمونځ هغه وخت ته را پیاد سو چې دی د امام سره پربل لمانځه ولاړ وو، نو هغه لمونځ دی د امام سره تر پایه ورسوی. او بیا دی قضائی لمونځ راوګرځوی. او وروسته دی بیرته هغه لمونځ وکړي چې امام سره کړی وو" یعنی هغه د امام لمونځ یې نفل سوه" مراقی وائي چې دا حدیث مشهور دی او تول امت قبول کړي هم دی، نو په داسی حدیث سره فرض عملی ثابتیږی. او بل دلیل د ترتیب د فوائتو تر مابین هغه حدیث دی د بخاري وغیره چې د علیه الصلوٰة والسلام څخه چې څو لمونځونه په غزوة الخندق کی قضاء سوه نو په ترتیب سره ئې راګرځول" اوریش وائي چې تفصیل د قصی د غزوة الخندق چې ډیره رقت امیزه قصه ده د روایش په کتاب البلاغ المبین کی مطالعه کړی، او په هغه کتاب کی د روایش د تولو غزوات د انحضرت صلی الله علیه وسلم په تفصیل سره کړی دی، موافق او برابر د احادیثو مبارکو حاصل دادی: چې د علیه الصلوٰة والسلام څخه نه ده ثابته سوی چې د مخه دی کی یو لمونځ په د مخه تر هغه نه اداء او نه قضاء نو که ترتیب په قضائی لمونځو صرف مستحب وای یعنی واجب او لازم نه وای لکه بعض ائمه چې وائي نو انحضرت صلی الله علیه وسلم به عمل په ترتیب سره ګاهی بری ایښی وای دپاره د بیان د جواز، او یا بی قولی اشاره وترک د ترتیب ته کړی وای دپاره د جواز او داسی نقل د علیه الصلوٰة والسلام څخه نه دی ثابت، او نه دیو صحابیؓ څخه ترک الترتیب یا قولاً یا عملاً روایت سوی دی. بلکه په صریح حدیث صحیح کی د حفر الخندق په موقع کی چې غزوة الاحزاب یې هم بولی. کفارو انحضرت صلی الله علیه وسلم د څلورو لمونځو څخه مشغول کړی، یعنی دری لمونځونه خو بیخی ځندی قضاء سوه، ماپښین، ماز دیګر، ماښام. او یو لمونځ چې ماخستن وو د وخت معتاد څخه وځنډیدی. حتیٰ چې شپه ډیره تیره





سوه نو په بلالؓ امر وکړی اذان یې وکړی او بیا یې اقامت وکړی نو د ماپښین لمونځ یې وکړی او بیا یې اقامت وکړی د ماز دیګر لمونځ یې وکړی. او بیا اقامت وکړی د ماښام لمونځ یې وکړی او بیا یې اقامت وکړی د ماخستن لمونځ یې وکړی، قال المصنفؒ:

## وَيَسْقُطُ بِأَحَدِ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءٍ ضِيقُ الْوَقْتِ الْمُسْتَحَبِ

او ساقطیږی ترتیب په یو د دری شیانو، اول تنګ والی دی د وخت مستحب، د لمانځه په اصح

## فِي الْأَصَحِّ وَالنِّسْيَانُ

روایت کی، او دوهم هیرېده د قضائی لمانځه، د ضیق الوقت معنا دا ده چې د غه وخت چې مصلی به لمونځ شروع وکی قضائی او وختی دواړه نه په کښی ځائیږی" **مسئله:** که د وختی لمانځه وخت په واقع کی ډیر فراخ وو لکه مثلاً د ماپښین وخت که چیری مصلی د ابتداء څخه د وخت شروع په لمونځو کړی وای قضائی او وقتی دواړه په کښی ځائیده. لکن د شروع په لمونځو د سره دوخت نه وکړه. بلکه وروسته یې شروع په وکړه لکن د پاته وخت د قضائی او وختی د اداء کولو څخه تنګ وو، نو هم ترتیب ساقط دی

**پوښتنه:** چې اعتبار ضیق الوقت لره دی په واقع کی نه د ده په ګمان حتیٰ که د سړی دا ګمان وو چې وخت پاته تنګ دی. نو یې وختی لمونځ وکړی تر لمانځه وروسته دا ورته ښکاره سوه چې وخت خو فراخ وو، نو هغه وختی لمونځ چې ده وکړی باطل سو

**فائده:** مراد د تنګ والی څخه د وخت تنګ والی دی د کولو څخه د جنس قضائی که یو وی او که دوه یا دری مثلاً او د وختی لمانځه" بحر، مراقی، در،

**پوښتنه:** چې مراد د تغیر څخه د وخت مستحب دا دی چې په شرع کی چې دیوه لمانځه د پاره مستحب وخت ټاکل سوی وی د هغه وخت تغیر لازمیږی، مثلاً د سړی څخه د ماپښین لمونځ قضاء سوی وو. نو ده چې د ماز دیګر په وخت کی شروع په لمانځه کوله د وخت پاته وو چې که ده د ماپښین لمونځ راګرځولای" د ماز دیګر لمونځ یا ټول یا بعض به وژړ والی ته د وخت رسیدی نو ترتیب ساقط دی "

لکن مراد دا دی چې وخت لمونځ په قرائت مسنونه وکړي نو وختی او قضائی دواړه نه ځائیږي يعنی په تطويل د قرائت په وقتی لمانځه کی، او که قضائی او وختی دواړه په قرائت مسنونه سره وکړي دواړه ځائیږي او وقت مکروه ته نه رسیږي نو ترتیب لازم دی،

**فائده،**

مصنف چې اصح وويل د دی دپاره چې په ضيق الوقت کی اختلاف دی چې اصل وقت په ضيق کی معتبر دی او که وقت مستحب، امام طحطاوی فقيه ابوجعفر داول نسبت و امام اعظم او امام ابويوسف ته کړی دی، او د دوهم نسبت يې و امام محمد ته کړی دی او د مصنف مختاره مذهب دامام محمد دی نو ځکه يې في الاصح وويله، مثلاً ديوسړي څخه د ماپښين لمونځ قضا سوی وو، نو مازديگر چې په لمانځه شروع کوله دو ني وخت پاته وو، چې که دې د ماپښين لمونځ راګرځولای د مازديگر لمونځ ټوله يا بعض يې و مکروه وخت ته رسيدی مګر د ټوله وخته څخه نه وتی، نو پر اول مذهب دی داول د ماپښين لمونځ راوګرځوی او بيا دی د مازديگر لمونځ وکړي يعنی ترتيب لازم دی. او پر دوهم مذهب دی صرف د مازديگر لمونځ اداء کړي»

د ماپښين قضائی دی د ماښام تر لمانځه د مخه راوګرځوی. يعنی د مازديگر په لمانځه کی ترتيب ساقط دی»، بحر، در، ط، **پوهه سه:** چې په محيط کی او په فتاوای ظهيريه کی ترجيح و قول د امام محمد ورکړی سوی دی،،

**فائده:** په مجتبی کی وائی که هغه سړی چې پر ده قضائی لمونځ وو نو که ده د مراعات سره د سنت د قرائت او د مستحب تسبيح وغيره وقتی کولای نو قضائی نه سوای ورسره ځائيدلای. او کی تخفيف په قرائت وغيره کی کړي وای نو قضائی هم ورسره کيدلای سوای» نو دی په ادنی ما يکفی سره کفايت وکړي په وقتی لمانځه کی او قضائی دی هم راوګرځوي

**تنبيه:** مونږ چې د مخه قرائت وويلی وو هغه رأی د بعض فقهاء دی. **مسئله** که سړي شروع وکړه په وختی لمانځه او قضائی يې هير وو، په وروسته کی په لمانځه کی قضائی ور په ياد سو لکن وخت تنګ وو نو ترتيب ساقط دی هغه وقتی لمونځ دی پسی پوره کړي؟



**فائده،** بيره په اسقاط د ترتيب معتبر وده، او جهل ته د مصلی اعتبار نسته يعنی يو سړي په دی نه پوهيدی» چې د قضائی لمانځه او د وقتی لمانځه ترمابين ترتيب لازم دی هغه ته اعتبار نسته بلکه د ده ته د وقتی لمانځه کول د مخه تر قضائی ناروا دی» في النقاية فرض الترتيب ولوجاهلاً» وقال شارحها يعنی العلامة القهستانی چې دا مذهب دی دائمه ثلاثه رحمهم، او د حسن بن زياد څخه روايت دی، إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِهِ لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ» يعنی که سړي په وجوب د ترتيب نه وو خبر نو پر هغه ترتيب هم نه دی واجب» قال الطحاوی وبه اخذ الاکثرون کما في التمرتاشی» قال المصنف:

## وَاذَا صَارَتِ الْفَوَائِتُ سِتًّا غَيْرَ الْوِتْرِ فَإِنَّهُ لَا يُعَدُّ مُسْقِطًا

او د رسيم ساقطوونکی د ترتيب دا دی چې قضائی لمونځونه شپږ سی، غير د وترو څخه. ولی چې وتر مسقط د ترتيب نه دی يعنی په هغه شپږ و لمونځو کی نه حسابيږي چې ترتيب په ساقطيږي، که څه هم ترتيب

**وَإِنْ لَزِمَ تَرْتِيبُهُ**

په قضاء راوړود وترو هم لازم دی، د ليل د سقوط د ترتيب په شپږ والی د قضائی لمونځو دا دی چې که په سله شپږ والی هم ترتيب لازم وی نو مسلمانان به په يوه لوی حرج کی واقع سی. او په دين کی حرج نسته» قَالَ اللهُ تَعَالَى: وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ» وايضاً قال: يُرِيدُ اللهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ» يعنی خدای پاک اراده لري و تاسی ته د آسانی او اراده نه لري و تاسی ته د سختی، يعنی په دينی چارو کی» او بل دليل دا دی چې شپږ لمانځه چې سړي راګرځوي يعنی قضائی په بعض اوقاتو کی به وقتی لمونځ ځندی پاته سی وهو حرام» په مراقی وائی چې معتبر و تل د وخت د شپږم لمانځه دی په صحيح روايت کی د مذهب ولی چې کثرت د قضائی لمونځو په دې سره راځی چې يو قضائی لمونځ مکرر سی» تکرار د قضائی لمانځه چې راځی په وتو د وخت د شپږم لمانځه سره، او د حضرت الامام محمد څخه داسی روايت راغلی دی، چې په مجرد دخول د وخت د شپږم لمانځه ترتيب ساقط سو، دليل د دی چې وتر مسقط د ترتيب نه دی دا دی» چې

مسقط د ترتیب هغه شپږ لمونځونه دي چې د عقیدې د لارې فرض وي. وترخو پـه نيز دیا رانوٴ سنت دی. او پـه نیز د امام اعظمؒ فرض عملی دی **مسئله**: ترتیب چې وقتي لا نځه او د قضائی لمونځو ترمابین ساقط سي د خودی قضائی لمونځو ترمابین هم ساقط دئ، م، د ر» قال المصنفؒ:

# وَلَمْ يَعُدِ التَّرْتِيبُ بِعَوْدِهَا اِلَى الْقِلَّةِ

او نه راګرځي هغه ترتیب چې په سبب د کثرة د قضاءِ لمونځو ساقط سوی وو، په سبب د ګرځېدو د قضائی لمونځو وحدته ته د لږ والي په دی سبب چې بعض لمونځونه قضائی سرې را وګرځوله مثلاً د سړی شپږ دیوی میاشتی لمونځونه قضا سوی وه ترتیب خونو ساقط سو، نو د کرار کرار قضائی لمونځونه راګرځول حتی چې یو لمونځ وره پاته سُو، نو دغه سړی سره دی چې دغه یو قضائی لمونځ پیاد وی اول وقتي لمونځ وکړی او بیا ئې قضائی لمونځ ادا کی صحیح دی. ولی ساقط لایعود، په بحر ارائق کی یو په زړه پوری مثال راوړی دئ. چې یو ځای لږ اوبه مرداري ولاړی وي، وروسته پر هغو لږ اوبو نورې ډیرې جاري اوبه راسي چې و به هیږي، وروسته هغه جاري اوبه قطع سي او هغه د مخه اندازه لږ اوبه پاتي سي، بیا بیرته به نجاست نه راګرځي » قـال المصنفؒ

# وَلَا بِفَوْتِ حَدِيْثَةٍ بَعْدَ سِتٍّ قَدِيْمَةٍ عَلَى الْاَصَحِّ فِيْهِمَا

او داغه رنګه نه راګرځي ترتیب ساقط په قضا کیدو د نوی لا نځه پسله شپږو لمونځو په خوانیو چې ده قضا کړی وه، او د ده څخه هیر وه، نو دی سړی وقتي لمونځ تر نوی قضائی لا نځه د مخه وکړی. او بیا په شپږ قدیم قضائی لمونځونو ور پیاد سوه وقتي لمونځ به صحیح سو. مصنفؒ وائی چې پر اصح روایت په دغو دواړو مسئلو کښی»

**پوښتنه**: چې مصنفؒ وروسته تر هغه قول: وَلَمْ يُعِدِ التَّرْتِيبُ آه په مراقی کی وائی وعلیه الفتوی، لکن بعض فقهاء وائی چې ترتیب راګرځي قال فی المجتبی وهو احوط، وذکر الصدر الشهیدؒ وهو الصحیح وکذا قال فی التجنیس والمزید، قال صاحب الهدایه وهو الاظهر





لان علة السقوط هو الکثرة وقد زالت» حاصل د دلیل د هدائی دا دی چې علت د سقوط د ترتیب خو کثرت د قضائی لمونځو وو، او هغه خو اوس زائل سو ولی چې مصلی د بعض لمونځو قضا راوړه نو بیرته قضائی لمونځونه وقلت ته را وګرځیده او په قلیل کی خو ترتیب واجب وو، (ارویښ وائی: چې صاحب البحرؒ مصنفؒ تائید کړی دی او که څه د اصحاب الترجیح څخه وائی ما به هم د مصنفؒ د مذهب تائید کړی وای، ولی چې ساقط »لایعود«، قضیه مسلمه وما قال المصنفؒ فی المسئلة الثانیة لایفوت» آه قال فیها فی المراقی وعلیه الفتوٰی، وفیه رد لما قال بعض العلماء» چې هغه د مخه شپږ لا نځه چې ده په خوا قضا کړی وه داسی باید فرض سی ان لم یکن یعنی لکه ده چه نه وه قضا کړی، نو دغه وقتي لمونځ چې ده تر نوی قضائی لمونځ د مخه وکړی صحیح نه دئ، دوی وائی چې مونږ دا کار دده د زجر دپاره وکړی او دی قول تصحیح په محیط کی او سراج الدرایه کی کړیده » د مفتی به مذهب دلیل دا دی چې د مصلی اشتغال په دغه نوی قضائی لا نځه تر وقتي لا نځه د مخه اولی نه دی تر اشتغال په هغه قدیمه قضائی ووسره »

او که مصلی په ټولو سره اشتغال وکړی تر وقتي د مخه نو خو وختی له ونځ د خپله وخت ووزی وهو حرام» قـال المصنفؒ:

# فَلَوْ صَلّٰى فَرْضًا ذَاكِرًا فَائِتَةً

(د تفریع ده پر لزوم د ترتیب په اول کی د باب» او د ولا یفوت حدیثة» سره کار نه لري)

# وَلَوْ وِتْرًا فَسَدَ فَرْضُهُ

که ئې چیرې فرض وکړی د وختی لا نځه فرض او د ده پیاد وو قضائی لمونځ که څه هم هغه وتر وي، نو فرض به فاسد سوه لوجوب الترتیب علیه»

**فائده**: مصنفؒ فَرْضُهُ ووئیل او داسی نه وویل چې فَسَدَ صَلٰوتُهٗ ددی د پاره چې په مذهب د امام اعظمؒ خو اصل لمونځ فاسد نه دی بلکه نفل ګرځي هُوَ وَصف د فرضیت یې ولاړی» قـال المصنفؒ:

# فَسَادًا مَوْقُوْفًا

یعنی فساد یې یقینی نه دی بلکه په وروسته لمونځو پوری اړه لري نو بیا به فساد بیرته پورته سی او یا به یقینی سی، لکه مصنفؒ چې

بیان د دی پـه دغه قول سره کوی» قـال المُصنفؒ

## فَإِنْ خَرَجَ وَقْتُ الْخَامِسَةِ مِمَّا صَلَّاهَا بَعْدَ الْمَتْرُوْكَةِ

نوکه ووتی وخت دَ پنځم لمانځهٔ د هغو لمونځو څخه چې ده وکړه پسله متروکه لمانځه څخه چې په یاد یې وه

## ذَاكِرًا لَهَا صَحَّتْ جَمِيْعُهَا فَلَا تَبْطُلُ بِقَضَاءِ الْمَتْرُوْكَةِ

په ټولو لمونځو کی هغه قضا ئی لمونځ نو ټوله لمونځونه یې صحیح سوه: حاصل د دی مسئلی دا دی چې دیوه **بَعْدَه** سړی څخه یو لمونځ قضاء سو، ورو سته د هغه قضا ئی لمونځونه ئې اوگرځاوه بلکه پنځه لمونځه پرله پسی یې وقتی وکړه چې په ټولو کی هغه قضائی لمونځ ورته په یاد سوو، نو ټوله لمونځونه وقتی یې صحیح سوه په نیزد امام اعظمؒ ابو حنیفه» دلیل یې دا دی چې کړی پنځه لمونځه چې په سبب د وجوب الترتیب فاسد سوه، نو حکمًا داهم په متروکه ووکی حساب سوه یو خو هغه بل متروک وو چې شپږ سوه. نو گویا ابتداءً متروکات شپږ وه او ترتیب ساقط وُو، مثال د مسئلی هغه دی چې یو سړی زکوٰة د څخه تر کال تیر ید وو ری نو د ی زکوٰة فرض والی موقوف دی پر تیر ید و د کال نو چې کال تیر سُو نصاب پر ځپله لا پاته وو نو هغه د څخه زکوٰة فرضی وگرځیدئ: او که ورسته نصاب بالکل د ما بین څخه ولاړی نو هغه ورکړی زکوٰة نفل سوله، او یاراتئ په مسئله مذکوره دلمونځو کی داسی وائی چې دغه پنځه لمانځهٔ فاسد سوه په فساد قطعی سره، او پړده یه قضاء دَ دغو پنځو سره د هغه اول فائت لازم ده. نو اوس شپږ قضا ئی لمونځونه سوه، نو تر دی ورو سته چې دی وقتی لمونځونه کوی، هغه صحیح دی کی ځکه هغه شپږ قضائی لمونځونه یې نوی را گرځولی، ولی چې ترتیب په سبب د شپږ والی د قضا ئی لمونځو ساقط سُو. قال المصؒ

## وَاِنْ قَضَى الْمَتْرُوْكَةَ قَبْلَ خُرُوْجِ وَقْتِ الْخَامِسَةِ بَطَلَ

او کی قضاء را وړه د هغه قضائی لمانځهٔ دَ څخه تر وتو دَ وخت د پنځم لمانځه چې د ده په





## وَصْفُ مَا صَلَّاهُ مُتَذَكِّرًا قَبْلَهَا وَصَارَ نَفْلًا

په هغو کی قضائی لمونځ په یاد وو. نو باطل سو صفت د هغو څلورو لمونځو یعنی فرض والی یې باطل سُو. او ذات د لمانځهٔ یې باقی دی ولی خو نفل وگرځیدَه. او دا هم مذهب دی د امام اعظمؒ ابو حنیفه او امام ابو یوسفؒ او په نیزد امام محمدؒ باطل سوه هغه لمونځونه اصلًا و وصفًا، شیخینؒ وائی چې تحریمه خو د اصلی لمانځهٔ وه لکن سره د وصف دَ فرضیت» نو چې وصف دَ فرضیت یې باطل سُو اصل خو یې پاته دی نو نفل وگرځیدَه. او امام محمدؒ وائی چې تحریمه خو د فرضی لمانځه د پاره وَه، چې فرض یې باطل سوه نو تحریمه باطله سوه نو بې تحریمی خو نفل نه دی روا

**پوهه سه** چې امام ابو یوسفؒ په اوله مسئله کی د حضرت الامام الاعظمؒ څخه مخالفت وو او په دوهمه مسئله کی د امام اعظمؒ سره موافق دی **فَائِدَه**: د دی دوو مسئلو په باره کی خلگ یا طالبان یو د بل څخه پوښتنه کوی، او وائی کوم دی هغه یو لمونځ چې پنځه لمونځه فاسد دوی: کوم لمونځ دی! چې پنځه لمونځه صحیح کوی نو د اول سوال جواب دوهمه مسئله ده او د دوهم سوال جواب اوله مسئله ده» قالَ المُصنفؒ:

## وَاِذَا كَثُرَتِ الْفَوَائِتُ يَحْتَاجُ لِتَعْيِيْنِ كُلِّ صَلٰوةٍ يَقْضِيْهَا

او که قضا ئی لمونځونه بیخی ډیر وَه نو مصلی محتاج دی چې د هر لمانځه چې قضاء ئې اوړی تعیین د تاریخ او د وخت د هغه لمانځهٔ به کوی. ولی فرائض هم ډیر دی او تاریخونه او وختونه یې هم سره مختلف دی» په مراقی کی وائی د مثال په توگه چې زه قضائی لمونځ د ماپښین کوم د دوشنبی دَ ورځی، د اتلسم تاریخ دَ ذیمی خور ۱۰۵۲ھ او د اینکار ژخه ده چې په داسی تعیین کی ډیر تکلیف دی، ولی چې د بعض خلگو څخه په مختلفو کلو کی» او په مختلفو میاشتو او مختلفو ورځو کی. مختلف لمونځونه قضا سوی وی. نو د وی په قضا راوړلو کی دَ هغو لمونځو د اټوله تعینات څرنگه وکړای سی.

بَل فی مثل هذا تعسّر واصل الیٰ حد التعذر" اوسره ددی چې زمونږ دین اسلام بناء برآسانی دَه، قَالَ عَلَیه الصلوٰة والسلام "اتیتکم بالحنیفة السهلة" الحَدیث" نو ددی سَببه مصنف وَائی: قَالَ المُصنفؒ:

## فَاِنْ اَرَادَ تَسْهِیلَ الْاَمْرِ عَلَیهِ نَوٰی اَوَّلُ ظُهرٍ عَلَیهِ اَوْ اٰخِرَهُ

نو که مصلی او قضا راوړونکی په ځان نیت کول او تعین کول آسانه گرځوی نو دا سی دی وَوائی چې زما نیت دی داول ماپښین چې ماسَته لیعنی چې پرمَایه قضا سَته. په دی سَبب چې پر ما دهغه وخت راغلی دی او ما نه دی کړی. نو ددی لا نځه قضاچې راوړی نو دَ اماپښین دما بین وَلاړی اوبَل دماپښین لونځ دده په ذمه اول وگرځیدی، وهکذا دمازدیگرماښام ماخستن سحار، په قضائی لمونځو کی دی وړ ته نیت کوی، اویَادی داخیرماپښین چې زما پرذمه لازم دی، وهکذا فی الصلوة الاُخر" قَال المصنفؒ:

## وَکَذَا الصَّوْمُ مِنْ رَمَضَانَینِ

او دغه رنگه دی حکم دقضائی روژو د دوو میاشتو دَروژی یعنی تعیین غواړی یا تفصیلی یا اجمالی کما مرفی الصلوٰة" او که دیوی میاشتی دروژی دوی دری قضائی روژی پرده باندی وی نو هغه تعیین نه غواړی په اتفاق سره، حتیٰ که پرسَری دوی روژی باندی وی او دروژی نیت یه وَکی تعیین داول اوثانی شرط نه دَیٰ. لکن مَع عَدم شرطیة تعیین احد الیَومَین لوعین لَکَان اولیٰ"

**فَائدَه** فرق دَلمونځو اودَروژو په اشتراط کی دَ تعیین فی الاول دون الثانی ان ... اسباب الصلوة وهی الاوقات متعددة مختلفة" اوسَبب دروژو میاشت ده او هغه یوه ده نو په قضا راوړوکی دروژو صِرف اکمال العدد مقصُودَدی. قَالَ عَلیٰ اَحَد تَصَحیحَین مختلفین" پر یوه ددوو تصحیح مختلفو" ولی امام زیلعیؒ تصحیح دلزوم التعیین کړیدَه، او خلاصه والا تصحیح دعدم لزوم التعیین کړیده" او رویش وَائی چې واضح خبَره ده چې په تعَیین کی دنیت که په تفصیلی توگه وي، او که په اجمالی





کما مَرَّ سابقًا هم نا هم حَرَج دی، خصُوصًا دعوام الناس دپاره. او خدای جَل سُلطانهٗ وَائی "یُرِیدُ اللّٰهُ بِکُمُ الیُسْرَ وَلَا یُرِیدُ بِکُمُ العُسْرَ" او بل ځای وَائی: وَمَا جَعَلَ عَلَیکُمْ فِی الدِّینِ مِنْ حَرَجٍ" چې په کلمه دمِن استغراق یه حَرَج زمونږ نه بیخی تلی کړیدَه. او په بل ایت کی داسی راغلی دی "لَا یُکَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا"

نو ددی کبله چې تَلاش وکړشو صاحب دکنزالد قائق رحمة الله علیه په مسَائل شتی وو کی دکنز داسی وائی. انه لا یَحتاج الی التعین وهو الاصح عَلی مَا قاله فی القنیة" مَن یقضِی لیس عَلیه ان ینوِیَ اول صلوٰة کذا او اخیر فینوی ظهرًا او عصرًا وَنحوها علی الاصح انتهی په تحقیق شان دا دی چې حاجَت نشته وَتعیین ته یعنی دَنیت په قضائی لمونځو کی یعنی نه تفصیلا او نه اجمالاً" وَهُوَالاصح" لکه په قنیه کی چې وَائی څوک چې قضا راوړی یعنی د لمونځو یا د روژو نشته، پرده باندی چې دی به نیت کوی، داول فلانی لمونځ او یا اخیر بلکه دی دې نیت کوی چې قضا راوړم دماپښین یا دمازدیگر او یا مثل دَهغو علی الاصح آه او دکنز وخبری ته ترجیح ورکړیده صاحب دخانیه او خلاصه" او پرداغه رأیه دی صاحب دفتح القدیر" قَالَ المصؒ فی المرَاقی"

چې څوک چې په واقعه دډیرو قضائی لمونځو مبتلا شی نو دی رجوع ومذهب او رائی ته دکنز الدقائق وکړی. ولی چې دهغه په حکم کی فراخی دَه، او په اخیر کی وَائی. وَ اللّٰهُ رَؤُف رحیمٌ" خدای ډیر مهربانه دی ځکه یې دغایت رحمت له کبله دامت مرحومَه په دینو چارو کښی دحرج سره نه دی مخامخ کړی" کامر مِن الایات الدالّة عَلیٰ ذالکَ" وَاسِعٌ عَلِیمٌ" فراخه دی رحمت دده جَل شانه او دی بنه خبَردی په حَال دبندگانو چې څونه لمونځونه بنده قضاء کړی دی نو هغه به ځندې ساقط کړی" یعنی بیله تعیین دبَنده"

**تذنیب مسَئَله:** که یوسَړی ډیر لمونځونه خو قضا کړی دی لکن مقدار او حساب دَهغو یقینًا نه وو معلوم" نو دی پخپل گمان سره عمل وکړي. او کی غالب الظن نه وو، نو تر هغو دی را اگرځوی چې ده ته یقین کیږی چې نور قضائی نو نشته"

**مسَئَله:** بعض صوفیان خلک د تهوله عمر لمونځونه را اگرځوی دپاره داحتیاط، او سره

ددی چې ده هیڅ لمونځ هم نه وی قضاء کړی، بعض علماء وائی داسی کول مکروه دی لکن دغه سړی ته افضله داده چې کله هم دی نیت دقضائی لمونځ کوی، خو په اخیرو دوو رکعتوکی دی باید فاتحه دالحمد لله سره سورت هم وائی. ولی دغه لمونځ دده که قضائی په ذمه کی دده نه وی نفل دی، او په نفلو کی انضمام دسورت واجب دی،

او په فرضی فاتحه کی صرف لازم نه دی، او چې دوتره قضاء اوړی په دریم رکعت کی دعائی قنوت ووائی. او په اخیره ناسته کی دی په قدر د تشهد کښینی او بیرته دی ولاړ شی خلورم رکعت دی هم وکړی بیا دی کښینی او التحیات وغیره دی تر پایه ووائی بیا د سلام وګرځوی. نوکه دده په ذمه کی وتره وو خو هغه وتر به وکړه او که نه وه نفل یه څلور رکعت یه وکړه ولی دری رکعت خو نفل نشته، او دا چې دریم رکعت دی کښینی د نفلونه تاوان نه لری ددی سببه چې یقینی نفل خو نه دی،

## فائده

او دغه رنګ دمابنام قضائی احتمالی دی څلور رکعته کوی په درونا ستو سره په سنتو لمونځو کی دی دقضائی نیت نه کوی او دغه رنګ دغا بنت په فاتحه کی دقضائی نیت نه کوی او په صلوة التسبیح کی دی هم دقضائی نیت نه کوی. او دغه رنګ په هغو نوافلو کی چې فضیلت یې په احادیثو مبارکه وو سره ثابت وی دقضائی نیت دی نه کوی، او ما سوا دغو نفلو نه په نیت دقضائی لمونځو افضل دی تر نیت د نفلو، ولی قضاء او زه ډیره مهمه ده تر مجرد نفلو، م، ط، در، وَاللّٰهُ وَلِیُّ الفَضلِ وَالتوفیق، قَالَ المصنفؒ:

## وَیُعذَرُ مَنْ اَسْلَمَ بِدَارِالْحَرْبِ بِجَهْلِهٖ بِالشَّرَائِعِ

او معذور ګڼل کیږی هغه سړی چې اسلام راوړی په دار حرب کی په نا خبرتیا سره په احکامو شرعیه وو، یعنی دغه مسلمان که نه لمونځ کاوه او نه ئې روژه نیوله او نور شرعی شریعی او د اسلام کارونه ګناه ګار نه دی. ولی چې دی د شرعی په احکامونه وو خبر نو دی معذور دی، ولی چې خطاب الهی وهغه چا ته متوجه کیږی چې په مشروع احکامو خبر وی او یا دلیل د خبرتیا ورته وی.





مصنفؒ قید د دارالحرب وو ایه. ولی که په دار اسلام کی یو کافر مسلمان شی هغه په ټولو احکامو شرعیه وو مکلف دی، که څه هم په جاهل وی. ولی چې دلیل د خبرتیا چې دار اسلام دی په ځای کی د خبرتیا د هیری، دا خو زمونږ د حنفیانو مذهب وو، او امام شافعیؒ او امام احمدؒ او زمونږ د مذهب امام زفرؒ په ټوله احکام عملیه او فرعیه باندی په دغه مسلمان د دار حرب لازم بولی. او دی په مکلف بولی که څه هم په خبر نه وی حتی که دغه مسلمان لمونځ نه کوی یا روژی نه نیولی وغیره ګناه ګار دی او قضا یې پرلازمه ده،

دوی حضرات قیاس د فرعیه اعمالو په ایمان کوی یعنی هر کافر د دار الحرب مکلف په ایمان سره دی بالاتفاق **جواب** دلیل د وجود د صانع او د وحدت او د علم او حیوٰة دده عقلی دلائل دی چې هر عاقل په برابر ولای شی که غور وکړی او په دقت د نظر په مصنوعاتو علویه او سفلیه کی دخدای جل شانه باندی فکر وکړی قال الشیرازیؒ ؎

*برګ درختان سبز در نظر هوشیار ؛ هر ورقی دفتریست معرفت کردګار*

وقال الآخر

*ګر انبیاء هم نامدی نی شرع بودی در جهان ؛ نه واجب شری بر مؤمنان ایمان بخالق مقتدر*

وقال الآخر

*نقصان ز قابل است وګرنه علی الدوام ؛ فیض سعادتش بهمه کس برابر است*

قال اللّٰهُ تعالیٰ شانه

وَفِیْٓ اَنْفُسِكُمْ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ، یعنی کرد خاړ چې مصنوعاتو الهیه وو ته نظر قطعه کړی ستاسی په اعضاوو کی دلائل د وجود او د قدرت او د علم وغیره د باری تعالیٰ موجود دی. بیشکه،

## نُورُ الْاِیضَاح جلد ۳

به هم ان شاء اللّٰه ډیر ژر ستاسو حضور ته وړاندی شی،

# بَابُ اِدْرَاكِ الْفَرِيْضَةِ

باب ثابت دی په بیان کی د نیولو د یو سړی فرضی لمونځ د امام سره نو اضافت د ادراك ولفظة دفریضی اضافت د مصدر دی و مفعول ته، امام طحطاوی رحمه الله تمهید کی و مسائلو ته د دی باب داسی وائی. چی قانون شرعی دا دی، چی ماتول د عبادت بیله عذره حرام دی، او پریښول د عبادت د پاره د کامل اداء کولو کمال دی، ولی که څه هم دا نقض د عبادت صورةً نقصان دی، لکن په معنیٰ کی اکمال دی او قانونی خبره ده چی مراعات د معنیٰ ته مراعات د صورت بالا دی لکه د یو زاړه مسجد نړول د پاره د بنه پوخ جوړولو، او یا لکه یو سړی چی پر ځمکه سر کښیږدی د سجدی د پاره او زوږ یه په تندی جګ سی. بیرته سر راپورته کی بل ځای سجده پوره کړی روا ده. او دوی سجدی نه بللکیږی، اِذَا تَمَهَّدَ هٰذَا فاستمع لما یقول المصنف

## اِذَا شَرَعَ فِیْ فَرْضٍ مُنْفَرِدًا فَاُقِیْمَتِ الْجَمَاعَةُ قَطَعَ وَاقْتَدٰی

که شروع وکړی یو مصلی په فرضی لمانځه کی، یوازی نو اقامت وکړه سو د جماعت د پاره نو دغه منفرد دی لمونځ قطع کړي او اقتداء دی په امام پسی وکړی"

**پوښتنه**: چی مصنف رحمه الله قید د فرض وو وایه، ولی کی د نفلو نیت کړی وو هغه دی نه قطعه کوی بلکه دوه رکعته دی وکی بیا دی سلام وګرځوی اقتداء دی په امام پسی وکړي او د فرض لفظ یه مطلق وو ایه تاچی وقتی او قضائی دواړو ته شامل سی، او نفل دی نه قطع کوی ولی چی د نفلی لمانځه قطع کولو خو ابطال د نفلو دی بالکلیه اکمال نه دی" دو ختی لمانځه مثال خو ظاهر دی" د قضائی مثال دا دی چی د یو څو کسانو څخه متعدد لمونځونه قضاء سوی وه، لکه د علیه الصلوٰة والسلام څخه چی سره دا صحابو رضی الله عنهم په غزا کی د خندق څلور لمونځونه قضاء سوی وه، نو په داسی صورت کی یو منفرد هغو کسانو څخه د ماپښین لمونځ مثلاً یوازی راګرځاوه هغه نور ملګری راغله د غه د ماپښین لمونځ چی د هغو څخه هم قضاء





سوی وو، په جماعت یه شروع کړه. نو هغه منفرد دی خپل لمونځ ورته قطع کړي، او په جماعت کی دی شریک سی ولی چی په دی شراکت کی اکمال د ده لمانځه دی چی په جماعت بی اداء کړي"

**پوښتنه** که منفرد د ماز دیګر لمونځ راوګرځاوه، او ملګرو یه د ماپښین په لمانځه شروع وکړه نو هم دی منفرد له لمونځ ورته قطع کوی که څرنګه! **جواب** یا نه دی قطع کوی او شراکت دی نه ور سره کوی. ولی چی یو والی د لمانځه د مقتدی او د امام په صحت کی د اقتداء شرط دی" **فائده**: د فرض په قید سره مصنف نفل و ایستل، ولی چی نفل به شفع ګرځوی بیا به اقتداء کوی. ولی چی په قطعه کولو کی خو د نفلو ابطال ته اخی بالکلیه اکمال په کښی نسته، البته که سړي پر نفلی لمانځه ولاړ وو او جنازه راغله او دی بیریدی که نه نفل شفع کوم، د جنازی لمونځ را څخه تیریږی نو دی نفل قطع کوی د جنازی لمونځ دی وکړی، ولی نفلی لمونځ خو بیا قضاء لری او جنازی لمونځ خو عوض نه لري"

**پوښتنه**: چی مصنف په مراقی کی وائی چی اقامت به په هغه محل کی وی چی ملته منفردًا لمونځ کوی. نو که د کور منفردًا لمونځ کاوه او د مسجد اقامت یه واوریدی په سبب د قرب دار، او یا په سبب د لاوډ سپیکر، او یا ده په خپل مسجد کی منفردًا لمونځ کاوه ولی د خپل مسجد لمونځ څندی تیر سوی وو، نو د بل مسجد اقامت یه واوریدی" با حد النحوین المذکورین" په دواړو صورتو کی پر ده قطعه د لمانځه نه ده لازمه" انتهی بخلاصته"

امام طحطاوی رحمه الله دا خبره نه منی او دی وائی چی جماعت خو واجب دی یعنی پر صحیح روایت د احنافو کما فی فتح القدیر" او جماعت مقید د ده په خپل مسجد پوری نه دی، بلکه فقهاء رحمهم الله تصریح کړیده چی که د سړی څخه د خپل مسجد جماعت تیر سوی وو، او په بل مسجد کی امید د جماعت وو نو هغه مسجد ته تګ پر لازم دی، نو تقید د مراقی بی فائدی دی.

**فائده**: مراد د اقامت څخه متعارف اقامت نه دی بلکه تحریمه د امام ده، ولی که مجرد مؤذن شروع په اقامت متعارفه وکړی او منفرد اول رکعت په سجده سره نه وي.

مقيد کړي او دده غالب گمان داوي چې مؤذن اقامت خلاصوي نو به سپک دوه رکعته نفل
ورته پوره کړم بيا قطعه في الحال لازمه نه ده بلکه شفع د نفلو دي پوره کړي، کذا نقل عن
ملا مسکين درويش وائي چې ما په عبارت د ملا مسکين دغه قيد نه يات کړي چې د ده غالب آه
نو هغه اعتراض د طحطاوي پر ملا مسکين کړي دی نه وارديږي چې دی وائي چې مدة داقامت
هو قليلة جدًا لا يتأتى فيها ركعتان فتدبر"

**مسئله:** چې مصنف په مراقي کې د قطع په تفسير کې داسې وائي "بتسليمة قائمًا"
لکن په مجمع الانهر کې وائي چې قطعه عامه ده کې په سلام کوي او کې بيله سلام کوي
اوکې په ولاړې کوي اوکې په رکوع کې کوي، وهو الصحيح، وقيل لو كان قائمًا يقطعه
بتسليمة واحدة وقيل بتسليمتين وقيل يقعد ثم يسلم وقيل يقعد ويتشهد ايضًا ثم
يسلم تسليمتين للقطع والفتوى على قول المصنف" در

درويش وائي چې امام طحطاوي وائي چې مصنف حکم د قطع د لمانځه او د اقتداء په امام
پسې نه دی کړي يعنې دا قطع او اقتداء لازم ده او که جائز ده، آه والجواب ان عبارة المصنف
بظاهره تدل على اللزوم لان عبارة الفقهاء يحمل على اللزوم" والقرينة عليه انهم اذا
كان العمل جائزًا او واجبًا يقولون يجوز له كذا، نعم عبارت د در مختار دلالت پر جواز
کوي، ولې چې هغه دا قطعه مشابه گرځولې ده د جائز عمل سره حيث يقول يقطعها لعذر
احراز الجماعة كما لو ندت دابته الى ان قال ويجب القطع نحو انجاء غريق آه نو چې د
قطع واجب و بولل د پاره د انجاء غريق نو دا معلومه سوه چې د پاره د احراز د جماعت
صرف قطع روا ده لکه د ند د دابه په وخت کې چې قطعه روا وه واجبه نه وه. او بعض علماء
وائي چې لمونځ دې تر هغو نه قطع کوي څو يوه شفعه نه کړي پوره د څلورو رکعتي لمانځه"

قال المصنف **إِنْ لَمْ يَسْجُدْ لِمَا شَرَعَ فِيهِ أَوْ سَجَدَ فِي غَيْرِ رُبَاعِيَّةٍ**

او دا قطعه د لمانځه به هغه کوي کې سجده نه وه کړې د هغه لمانځه چې ده شروع منفردًا
په کړې وه. او يا يې سجده خو کړې وه لکن لمونځ غير رباعي وو، يعنې يا دوه رکعته لکه د سحار
لمونځ يا درې رکعته لکه د مابنام لمونځ،





يعنې په د غو لمونځو کې به ئې فورًا قطعه کوي، پس له سجدې څخه ولې کړ دی د سحار په لمانځه کې
بل رکعت ورضم کې خو فرض د سحار پوره سوه او جماعت فوت سو، او په امام پسې د نفلو
نيت هم نسي کولای. ولې چې وروسته د سحار تر لمانځه نفل نه دي روا. او کې د مابنام په لمانځه
کې که بل رکعت ورضم کړي فا يفا جماعت گويا څنده ی فوت سو لان للاکثر حکم الکل"
او د امام سره په نفلي لمانځه هم نسي کړی دای، ولې چې درې رکعته نفل هم نسته، او که
څلور رکعته پس له سلامه د امام ورجوت کړي مخالفت د امام لازميږي، م، ط در،

**وَإِنْ سَجَدَ فِي رُبَاعِيَّةٍ ضَمَّ رَكْعَةً ثَانِيَةً وَسَلَّمَ لِتَصِيرَ الرَّكْعَتَانِ**

او کې په رباعي لمانځه کې سجده کړې وه نو ورجوت کړي يو رکعت بل او بيا دې با قاعده سلام پر

**لَهُ نَافِلَةً ثُمَّ اقْتَدَى مُفْتَرِضًا** دوارو څواوو گرځوي تا چې هغه دوه رکعته به د ده د پاره نفل سي، او بيا دې
اقتداء په امام پسې وکړي فرضي لمونځ کوونکی"

**مسئله:** چې درې رکعته نفل په نيز د بعض علماوو صحيح نه دي. او بعض علماء
وائي صحيح دي لکن مکروه دي" د مصنف عبارت په مراقي کې دوارو مذهبو ته شامل دی
ولې هغه وائي لمنع التنفل بالبتيراء لفظ د منع عدم صحت او مکروه دوارو ته شامل دی
فهي من جوامع الكلم" قال صاحب البحر چې تصريح د مشائخو په څلور رکعتي فرضي
لمانځه کې چې يو رکعت يې کړي وي د بل ضمول واجب دی، صريح دي په دې کې چې يو رکعت
لمونځ باطل دی، صرف مکروه نه دی. او د صاحب البحر ورور هم ورته خبره کړېده في النهر" ط

قال المصنف **وَإِنْ صَلَّى ثَلَاثًا أَتَمَّهَا ثُمَّ اقْتَدَى مُتَنَفِّلًا إِلَّا فِي الْعَصْرِ وَالْفَجْرِ** يعنې د رباعي لمانځه درې رکعته يې کړي وه منفرد نو دی يو بل رکعت
وکړي چې څلور پوره سي. ولې چې اکثر ته حکم د کل دی. او پس له
اتمامه دې بيا اقتداء پسې وکړي نفل کوونکی، مگر نه په مازديگر کې او د سحار په لمانځه کې

ولې چې نهی راغلی دی د نفلو څخه وروسته تر دغو دوو لمونځو، او مراقی مغرب ورسره ملګری دی، ولې چې درې رکعت نفل خو نسته او که څلورم ور ضم کړي مخالفت د امام راوړی دی، وَقَدْ قَالَ النبی صَلی الله علیہ وَسلم: لرَجُل اذا صَلَّیتَ فِي اَهْلِكَ ثم ادرکتَ الصلوٰة ای بالجماعة فَصَلِّها ای بالجماعَةِ نفلًا الا الفجر والمغرب» او نهی د نفلو څخه پسله ماز دیګر خو مشهوره ده، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَاِنْ قَامَ لِثَالِثَةٍ فَاُقِيمَتْ قَبْلَ سُجُوْدِهٖ قَطَعَ قَائِمًا بِتَسْلِيْمَةٍ

او که منفرد ولاړ سو دریم رکعت او بیا اقامت شروع سو د جماعت دپاره د مخه تر سجدې د دریم رکعت لمونځ دی قطع کړي په ولاړي په یوه سلام یعنی په جماعت کی دی شامل سی،

**فِي الْاَصَحِّ** په دی کی رد دی پر شمس الائمة السرخسیؒ چې هغه وائي که کښېنی نو فسته لمونځ یې فاسد دی» وَمَا قَالَ المُصَنِّفُ هو مذهب فخر الاسلامؒ چې هغه وائي چې الله اکبر دی و وائي په ولاړي په نیت د شروع په لمانځه کی د امام، نو ختم د مخه د لمانځه په ضمن کی د شروع په لمانځه د امام حاصل سوه. او که لاس ونه ترغوږو یوسي ته کوي هم ورسته جواز دی» قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَاِنْ كَانَ فِي سُنَّةِ الْجُمُعَةِ فَخَرَجَ الْخَطِيْبُ اَوْ فِي سُنَّةِ الظُّهْرِ

که چیری لمونځ کوونکی په څلور رکعته کی د سنت د جمعی وو او خطیب راووتی یعنی دپاره د خطبی

## فَاُقِيمَتْ سَلَّمَ عَلٰى رَأْسِ رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ الْاَوْجَهُ

او یا سړی په څلور رکعتیزو سنتو کی وو د ماپښین او اقامت دپاره د جماعت شروع سو، نو دی سلام وګرځوي یعنی یو وار دی کښېنی پر سر د دوو رکعتو، او دا اوجه مذهب دئ، او د امام اعظمؒ څخه او د امام ابو یوسفؒ څخه روایت دی، ولې چې په دا سی کولو کی دوې فائدې دي، یو اوریده د خطبی دی چې فرض دی، او بل اداء د سنتو ده پسله جمعی څخه،





او د ماپښین په لمانځه کی اداء د فرضی لمانځه پر وجه اکمله یعنی په جماعت، او اداء د سنتو ورسته تر لمانځه، او دوه رکعت نفل به یې ترې پاتی ګڼل سوه، او دا هم مذهب دی د شمس الائمة السرخسیؒ او بقالیؒ. په بحر الرائق کی وائي چې په څلور رکعتو سنتو کی د مخه تر ماپښین د لمانځه او بیا د مخه د جمعی تر لمانځه» چې د ماپښین د لمانځه اقامت وسی، او یا خطیب په خطبه شروع وکړي او مصلی پر هغو سنتو ولاړ وي نو څه به کوي د مصنف مذهب هغه وو چې په متن کی ذکر سو:

لکن صاحب البحر وائي چې صحیح دا دی چې څلور سره رکعته دی پوره کړي» کما صرح به الوالوالجیؒ صاحب المبتغی والمحیط والشمنیؒ»، ولې دا څلور سره رکعته یو لمونځ دی، او قطع یې د اکمال دپاره نه ده بلکه د ابطال دپاره ده صورةً ومعنًی، او فتح القدیر والالکه مصنفؒ وائي چې دوه رکعته دی پوره کړي او سلام دی وګرځوي او په جماعت کی دی شامل سي او یا خطبی ته دی غوږ ونیسي، ولې دا سنت خو پسله فرضی لمانځه اداکیدای سی او چې دی یې قطع کړي پر دوه رکعته ابطال د عمل خو نه راځي ولې دوه رکعته یې نفل سوه او مولوی اعزاز علیؒ و مذهب ته د صاحب البحر ترجیح ورکړې ده، ولې چې د هغه د تصحیح سره د ډیرو مشائخو برابر دی» او هغه خبره چې فتح القدیر وکړه چې پر دوه رکعته سلام ګرځولو کی ابطال نسته د هغه جواب دا دی چې که څه هم ابطال د اصلی لمانځه خو نسته، لکن ابطال د وصف د سنتیت خو پر سته،

او دا څلور رکعته یو لمونځ دی د دی سببه په دریم رکعت کی سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ او اَعُوْذُ بِاللّٰه نه ویل کیږي د رویش وائي چې د فتح القدیر مراد دا نه دی چې په قطع کی ابطال د سنتیت نه راځي. بلکه دی وائي چې ابطال د عمل نه راځي ولې دوه رکعت لمونځ په شرع کی صلوٰة کامله دی، او پاته دا خبره سوه چې ابطال د وصف د سنت والی خو یې راغی مونږ وایو نَعَم لکن د دی ابطال خو جبیره سته، چې اداء کول د دغو سنتو ورسته تر فرضی لمانځه. که څوک وائي چې پسله فرضی خو قضاء ده جواب یې دا دی چې قضاء ورته ویل مجاز دی کما صرح به الامام الطحطاویؒ په ص۲۶۲ کی حاصل د کلام دا دی

چې دغه څلور رکعته که تر فرض لمانځه د مخه وسي او که وروسته اداء ده او وصف د سنتيت په پرځای دی» نو چې دی قطع کړي پر دوه رکعته. نو په قدر د دوو رکعتو به جماعت کامل شو. او استماع د خطبې به هم په دغه اندازه کامل سوه نو بناءً علی هذا د درويش بيلان ومذهب ته د مصنف دی» قال المصنف:

## ثُمَّ قَضَى السُّنَّةَ بَعْدَ الْفَرْضِ
او بيا دی قضا راوړی د هغو څلور سنتو پسله اداء څخه د فرضی لمانځه يعنې ماپښين

يادجمعې **پوهسه**: چې د مخه مونږ ووئيله چې د قضاء لفظ ويل مجاز دی په اعتبار د دی چې د غه سنت تر ځپل ځای وروسته سوله، ورنه حقيقةً اداء ده. ولې چې وقت باقي دی

قال المصنف

## وَمَنْ حَضَرَ وَكَانَ الْإِمَامُ فِي صَلٰوةِ الْفَرْضِ اِقْتَدٰى بِهٖ
که يو سړی حاضر سو يعنې مسجد ته او امام په فرضی لمانځه کی وو، سمدستی دی اقتداء پسې

## وَلَا يَشْتَغِلُ عَنْهُ بِالسُّنَّةِ
وکړي او ځان دی نه مشغول کوي د امام د لمانځه څخه په سنتو کولو سره يعنې که څه هم د سنتو په

کولو سره د ده څخه يو رکعت هم نه تيرېږی **مسئله**: که سړی د باندې تر مسجد وو او دی نه ويرېدی چې که زه سنت وکړم د ما څخه به يو رکعت تيرسی نو سنت دی وکړي او بيا دی اقتداء په امام پسې وکی، ولې دده فضيلت به ورته حاصل سي يو اداء د سنتو ده په خپل ځای کی. او بل ټوله لمونځ په جماعت کول دی» قال المصنف:

## اِلَّا فِي الْفَجْرِ اِنْ اَمِنَ فَوْتَهٗ وَاِنْ لَّمْ يَاْمَنْ تَرَكَهَا
مگر نه په سنتو کی د سحار

د لمانځه نو که دی په امن کی وو د فوت څخه د امام د لمانځه کی څه هم خيال داوی چې په التحيات کی پسې رسيږم، نو دی سنت وکړي که څه هم په مسجد کی وی لکن د صفو څخه گوښه» او که ويرېدی چې زه که سنت کوم ټوله لمونځ د جماعت را سه تيرېږی نو دی سنت پرېږدی

**پوښتنه**: په حديث شريف کی راغلی دی چې عليه الصلوة والسلام وائی: اِذَا اُقِيْمَتِ





الصَّلٰوةُ فَلَا صَلٰوةَ اِلَّا الْمَكْتُوْبَةِ، **جواب**: مراق وائی چې هغه حديث محمول پر غير د سنة الفجر دی. **فائده**: افضل کار دا دی چې سنة الفجر دی سړی په کور کی کوی» قال عليه الصلوة والسلام: مَنْ صَلّٰى رَكْعَتَي الْفَجْرِ اَیْ سُنَّتَهٗ فِيْ بَيْتِهٖ يُوَسِّعُ لَهٗ رِزْقَهٗ، وَيَقِلُّ الْمُنَازِعُ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ اَهْلِهٖ وَ يُخْتَمُ لَهٗ بِالْاِيْمَانِ» که چا دوه رکعته سنت د سحار په کور کی وکړه خدای پاک به فراخی وکړي په رزق کی د ده او لږ به وی بر خلافی د ده او د کور والا تر مابين. او خاتمه د ژوند به ئې پر ايمان وي، ثم اختلفوا راجح مذهب دا دی چې د غه دوه رکعته سنت دی په اول سپيدو کی وکړي. او بعض علماء وائی چې د فرضی لمانځه وخت نژدې سی بيا دی سنت وکړي،،

**فائده** عليه الصلوة والسلام ټوله عمر سنة الفجر په کور کی کوله. او پر هغه چا به انکار کاوه چې سنة الفجر به ئې په مسجد کی کول. درويش وائی چې د دی حديث څخه دا معلومه سوه چې په وخت کی د جماعت د سنة الفجر په مسجد کی مکروه دی، امام طحطاوی د فتح القدير څخه په باره کی د سنة الفجر يو ښه تحقيق نقل کړي دی. او وائی چې څه وخت چې مؤذن په اقامت شروع وکړه او سړی راورسيدی. نو په دروازه کی د مسجد د باندې دی سنت وکړي، او که د باندې ځای نه وو، نو سنت دی پرېږدی، ولې کی دی په مسجد کی که څه هم ليری وی د صفو څخه مخالفت د جماعت لازميږی او هغه مکروه دی، او ترک د مکروه مقدم دی تر فعل د سنتو»

درويش وائی وفيه نظر ولې مکروه چې تنزيهی وی فعل د آكَدُ السُّنَنْ تر افضل دی لکه د سحار سنت» لکن کراهت د کولو د سنتو فرق سره لري: اشد کراهت په دا دی چې په داخل د صفو کی سړی سنت کوی، وروسته تر هغه بيا دا مکروه دی چې د صف تر شا به ئې حائل سنت کوی. او تقريبًا د کراهت خالی طريقه په دا ده که مسجد دوې حصی وی يوه د دولې د لمانځه د پاره وه او يوه حصه د ژمی د پاره وه، او امام د دولې په حصه کی پر جماعت ولاړ وو او سړي د ژمی په حصه کی د مسجد سنت کوله او بالعکس» درويش چې د تحقيق څخه د فتح القدير دا معلومه سوه چې هغه خبره چې مصنف د مراقی کړېده او ما هم را نقل کړه

لکن د صفوڅخه ګوښه، ځای د خدشې دی الا ان یرید المصنفؒ تخفیف الکراهة فی ذالك لا نفیها بالکلیة: وَاللّٰهُ تَعَالٰی اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ والیه المرجع والمآب وهو الموفق للصواب الکل باب

**پوښتنه** چې مصنفؒ ترکها وَوَیَله او قَطَعَها یې نه وو ویَله اشاره یې وه دی ته وکړه چې په سُنتو یې شروع نه وی کړی او کې شروع یې کړی وه بیا دی خواه مخواه پوره کړی. ولې چې په قطع کې ابطال د عمل دَی ط »

**مسئله**: په حدیث کې دابوهریرهؓ راغلی دی: چې د سحار په سنتوکې دی په اول رکعت دی اَلَمۡ نَشۡرَحۡ لَكَ وائی او په دوهم رکعت کې دی اَلَمۡ تَرَ کَیۡفَ وائی. او امام غزالیؒ وائی چې د سنتو په اول رکعت کې قُلۡ یٰۤاَیُّهَا الۡکٰفِرُوۡنَ وائی او په دوهم رکعت کې دی قُلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ، وَائی: قال الامام الطحطاویؒ که جمع د دواړو وکړی ښه کار دَی »

**سوال** د فقهی شریفی په کتابوکې وائی چې جمع د دوو سورتو په یو رکعت کې مکروه دَه **جواب**: چې هغه په فرضو واجبو سنتوکې ده. او د اړه د نفلو ډیره فراخه ده **پوښتنه** چې سنة الفجر خو اکد د سنتو دی. نو ولې دا دراك الجماعة د پاره او سره د دی چې جماعت پرمشهور مذهب هم سُنت دی **جواب** په حدیث شریف کې راغلی دی چې جماعت پر یوازی فرضی لا ځنځر ۲۷ درجې بالا دی، او ثواب د سنة الفجر و یوی درجې ته ده هغه ۲۷ درجو ته نه رسیږی »

# فَوَائِدِ شَتّٰی

په حدیث شریف کې راغلی دی چې علیه الصلوٰة وَ السلام وَائی چې لمونځ د سړی په کور کې افضل دی تر لا ځنځر نه ما په د غه مسجد کې الا المکتوبة » او سره د دی چې په حدیث کې د بیهقی راغلی دی چې لمونځ په مسجد الحرام کې په یوه لك لمونځو دی د بل مسجد، او لمونځ نه ما په دغه مسجد کې په زر لا ځنځر دی د بل مسجد، او لمونځ د بیت المقدس په مسجد کې په پنځه سوه لمونځو دی، د بل ځای تر لا ځنځر، نو او س ته اندازه و لګوه چې نفل یا سُنت په کور کې څومره ثواب لری. او په هدایه کې وَائی چې افضل په عامة السنن او نوافلو کې کور دَی.





مګر هغه وخت که بیره وی چې زه که وروسته یاد مخ سنت کور کومه په یو بل کار به مشغول شم، او فقیه ابو جعفر الحلوانیؒ وَائی چې دوه رکعته سُنت ترما ښام وروسته او تر ماپښین وروسته دی په مسجد کې کوی او نور سنن دی په کور کې کوی »

**فائده** درویش وَائی چې په مُلایانو کې دا خبره مشهوره ده بلکه په بعض کتابو کې د فقهی شریفی هم مسطوره ده چې د امام محمدؒ په نیز کې د سنة الفجر په کولو کې د یوه رکعت د فرضی لا ځنځر امید وو نو سنت دی وکړی. او کې امید نه وو که څه هم د تشهد د اشتراك امید یې وی نو سنت دی پریږدی، او د شیخینو مذهب دا دی که صرف د تشهد امید ئې وی نو سُنت دی نه پریږدی، او دوی دا مسئله قیاس وی د جمعې پر لا ځنځر چې د ماپښین لونځ به څه وخت ورته پریږدی چې په هغه کې اختلاف د شیخینو او امام محمد مشهور دی، لکن دا قیاس غلط او مع الفارق دی. ولې مقصود د لته خو ادراك د فضیلت د جماعت دَی او هغه فضیلت په ادراك د تشهدی هم حاصلیږی بالاتفاق بین الامام وشیخیه رح کما فی الدر رحاشیة الغرر لمؤلف نور الایضاح، ونص علی الاتفاق بین ائمتنا الثلثة الکمال بخلاف الجمعة لان الجماعة شرط لها، فلهذا اختلفوا ان ای قدر من الجماعة کاف فی ادراك الجمعة فافهم» قال المصنفؒ:

**وَلَمۡ تُقۡضِ سُنَّةَ الۡفَجۡرِ اِلَّا بِفَوۡتِهَا مَعَ الۡفَرۡضِ** او قضا نه راوړه کیږی د سُنتو د سحار مګر نه که سنت فوت سی سره د فرضو یعنی بیا په تبع کې د فرضو دی، اګر څوی که منفرد او وی او که په جماعت وی، او امام محمدؒ وَائی چې قضاء د سُنتو یوازی هم سته، لکن تر لمر ختو وروسته او تر زوال د مخه، نو قضاء د سنتو د سحار یوازی تر طلوع الشمس د مخه او یا تر زوال وروسته اتفاقا نسته» **پوښتنه** چې په قضا کې د سنة الفجر یوازی بعد طلوع الشمس وَقبل الزوال په حقیقت کې اختلاف د شیخینو او د امام محمدؒ نسته، ولې دوی په تولو وَائی کې قضاء او ړی لَا بَأۡسَ بِهِ» صرف امام محمد دا وائی چې نه ما د ا

داخوبنه ده چې قضاء دی ؍ اوړی او بیا هم کی نه ؍ اوره شی نسته با ندی، هو په دی کی اختلاف سته چې فرضی لمونځ هم قضا سوی وي، نو ترزوال وروسته د سنتو قضاء تبعًا سته او که نه. امام محمدؒ وائی سته، او صحیح داده چې پر قول د شیخینؒ یه قضا تبعًا هم نسته «کذا فی غایة البیان» م، ط، بحر، در، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَقَضَى السُّنَّةَ الَّتِيْ قَبْلَ الظُّهْرِ فِي الصَّحِيْحِ فِيْ وَقْتِهِ قَبْلَ شَفْعِهِ

او قضا دې اوړي د سُنتو چې د مخه تر ما پښین دی، په صحیح روایت کی په وخت کی د ما پښین د مخه تر هغه دوه رکعته وروستني سُنتو. قَالَ فِي الْمَرَاقِيْ عَلَى الْمُفْتٰى بِهٖ كَذَا فِيْ شَرْحِ الْكَنْزِ لِلْعَلَّامَةِ الْمَقْدِسِيِّ، چونکه بعض فقهاءؒ وئیلی دی چې د دی څلور رکعتو سُنتو قضاء نسته، ولی چې مواظبت نبویؐ پر دوی باندی د مخه تر فرضو ثابت دی» نو ځکه مصنفؒ رد ا عَلٰى هٰذَا الْبَعْضِ فِي الصَّحِيْحِ وَوَئیله»

**پوهسه:** چې اطلاق د قضا پر د غو سُنتو مجاز دی په اعتبار د دی چې خپل ځای کی نه دی، ور نه حقیقةً قضاء نه دی ولی چې وخت د ما پښین باقی دی، (وقضاء هغه ته وائی چې تر وخت خارج سي)، د دی سببه په قهستانی کی وائی چې د قضائی نیت دی نه کوی بلکه د سُنتونیت دی کوی، قوله فی وقته آه او بعض مشائخ وائی چې بعد الوقت دی هم قضا ؍ اوړی که د فرضی لمانځه سره قضا سوی وه، ولی چې د پرشیان که څه هم اصلاً نه کول کیږی تبعًا کول کیږی» ط دلیل د دی قول د مصنفؒ قبل شفعه آه دا دی چې د غه څلور رکعته تر هغه دوو رکعتو خود مخه دی. ولی چې دوی تر فرضو د مخه دی او فرض تر دی دوو رکعتو د مخه دی وَالتَّقَدُّمُ عَلَى التَّقَدُّمِ عَلَى الشَّيْءِ مُتَقَدِّمٌ عَلَيْهِ» او په فتاوی عتابی کی وائی چې مختار د مخه کول دی د دوو رکعتو پر څلورو باندې، وَفِي مَبْسُوْطِ شَيْخِ الْإِسْلَامِ وَهُوَ الْأَصَحُّ» په حدیث کی چې روایت یه عائشه رضی الله تعالی عنها کړی دی دا وائی چې کله به چې ده علیه الصلوٰة والسلام څخه هغه څلور رکعته قبل الظهر پاته سوه نو هغه تر دوو رکعتو وروسته یه کوله» او بل دا دی چې هغه څلور رکعته تر خپل محل خو پاته سوه، نو بې لزومه





هغه دوه رکعت د خپل محل څخه چې اتصال بالفرض ولی وروسته کوی، وَعَلٰى هٰذَا الْمَذْهَبِ فَتْوَى الْفَقِيْرِ **پوهسه:** چې هغه څلور رکعته چې تر جمعی د مخه دی حکم یه د څلورو رکعتو قبل الظهر دی» م» **مسئله:** هغه څلور رکعت سنت زوائد چې خلک یه د مخه د ماخستن تر لمانځه کوی که چیری پاته سی مانع د قضا یه نسته پسله فرضو. لکن بعد الرکعتین اتفاقًا» م، در» او بعض فقهاءؒ وائی چې د هغو قضاء نسته ولی هغه مندوب دی» س، ط، در» لکن فتوی پر قول د مصنفؒ ده چې در اگر چه قید و مانع نسته یعنی را تر ځول یه ښه کار دی» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَلَمْ يُصَلِّ الظُّهْرَ جَمَاعَةً بِإِدْرَاكِ رَكْعَةٍ أَوْ رَكْعَتَيْنِ بَلْ أَدْرَكَ

او لمونځ په جماعت د ما پښین نه دی کړی چا چې یو رکعت ونیوی او یا دوه رکعته دا خو اتفاقی

## فَضْلَهَا وَاخْتُلِفَ فِيْ مُدْرِكِ الثَّلَاثِ

ده بلکه ثواب د جماعت یه پیدا کړی او اختلاف دی په مدرک کی د دریو رکعتو» د دی سببه که یو څوک قسم واخلی چې زه د ما پښین لمونځ په جماعت نه کوم، او بیا یه یو رکعت یا دوه رکعته د امام سره وکړی په قسم کی نه دی حانث، او که چا سی قسم واخستی چې زه ثواب د جماعت د ما پښین د لمانځه نه حاصلوم بیا د امام سره یو رکعت ونیوی په قسم کی حانث دی بلکه کی د امام سره تشهد ده یه ونیول هم حانث دی، او په صورت د دریو رکعتو نیولو سره چې سړی قسم واخلی چې زه د ما پښین په جماعت نه کوم، شمس الائمةؒ وائی چې په قسم کی حانث دی» لان للاکثر حکم الکل» او پر ظاهر المذهب نه دی حانث» ولی چې ده خو بعض ظهر په جماعت وکړی او قسم یه پر ټوله ظهر اخستی وو»

**مسئله:** په شرح کی د مقدسی وائی چې مسبوق ته خو ثواب د جماعت حاصل سو لکن دو نه ثواب نه دی لکه د مدرک چې اول د لمانځه د امام یه نیولی وي، ولی د مسبوق نه څخه تحریمه تیره سوه. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

اللهم اغفر لمولفه ولکاتبه ولمن سعٰی فیه امین یا رب العٰلمین»

## وَيَتَطَوَّعُ قَبْلَ الْفَرْضِ إِنْ أَمِنَ فَوْتَ الْوَقْتِ وَإِلَّا فَلَا

لوسړی دی تطوع کولای سی د مخه تر فرضی لمانځه که دی بیغمه وو د تیریدو څخه د وخت اوکه د وخت پر تیریدو بیریدی نو تطوع دی بیا پرین دی، **پوه سه** چی لفظ د تطوع عام دی سنت مؤکد ته هم وائی او خالص نفلو ته هم وائی. نو څکه مراقی وائی بمؤکد وغیره، **فائده**: دا حکم مسافر او مقیم دواړو ته شامل دی،

**فائده** امام طحطاوی وائی چی ظاهر د عبارت یعنی یَتَطَوَّعُ، دلالت کوی پر تخیر د مصلی یعنی کی کوی او کی نه کوی، لکن په نوافلو تطوعو کی تخیر نسته بلکه سنت مؤکد په کولو کی تخیر نسته خا مخا به ئی کوی، که د فوت الوقت بیره نه وه اوکه تطوع مستحب وه نو کول یه هم مستحب دی» البته په نفلی مجرد کی تخیر سته، وَالجواب عنه ان ترجمة یتطوع فی المتن یجوز ان یتطوع» و لیس المراد بالجواز تساوی الطرفین الذی هو معنی الامکان الخاص عند الحکماء» بل المراد به الامکان العام المقید بجانب الوجود یعنی لیس عدم التطوع ضروریا» فیشمل المؤکد وَالمستحب والجائز البحت، فافهم»

**مسئله**: که متطوع سره د دی چی پر فوت د وخت نه بیریدی مگر پر فوت د جماعت بیریدی نو دی هم تطوع پریږدی، وَإِلَّا فَلَا، **حکمت** د تطوع قبل الفرض فائده دا ده چی د شیطان طمع قطع سی، په دی معنا چی شیطان چی فکر وکړی چی دی سړی زما په وسوسه تطوع لا نه پریښوده نو فرضی لمونځ به څرنگه پرین دی قال فی المراقی فی حکمة السنن القبلیة لتکمیل نقصها فی حقنا» او پر دی عبارت د ده دا سوال واردیږی چی تکمیل نقصان خو فرع د وجود د نقصان لره، نو د غه سړی خو تر او سه فرضی لمونځ نه دی کړی نو د نقصان دا لک به څه معلومیږی» چی دی سنن قبلیه د هغه د پاره کوی البته دا حکمت په سنن بعدیه کی مناسب وو، واجاب عنه المحقق المحشیٰ په دی سره چی سړی چی فرضی لمونځ ناقص وکړی تکمیل د نقصان یه په سنن قبلی وو سره کیدای سی» ویدل علیه ما ورد فی الاثر» چی څه وخت چی په لمانځه کی د سړی خلل پیدا سی





نو حق تعالیٰ وَملکوته ووائی وگوری چی د غه مصلی لره څه نوافل سته لوکه نوافل وه نو کامل ول کیږی په هغو سره هغه خلل موجود، وهذه النوافل عام دی قبلی او بعدی ته دواړو ته شامل دی»

**سوال**: دا حکمت په سنتو کی د علیه الصلوٰة والسلام څرنګه صورت لری ولی چی په لمانځه کی د ده مبارک خو نه وجود د خلل سته او نه طمع د شیطان وجود لری **جواب** سنن د آنحضرت صلی اللّٰه علیه وَسلم د پاره د پوره والی د درجو دی، قال المصنف،

## وَمَنْ أَدْرَكَ إِمَامَهُ رَاكِعًا فَكَبَّرَ وَوَقَفَ حَتَّى رَفَعَ الْإِمَامُ رَأْسَهُ

که څوک ور سیده وامام ته په حال کی د رکوع نو ده الله اکبر ووایه او ودا عنسی ودریدی حتی چی امام سر اپورته کړی. د د غه سړی د غه رکعت

## لَمْ يُدْرِكِ الرَّكْعَةَ

نه دی حساب **پوه سه**: چی قید د وقف اتفاقی دی ولی چی په مراقی کی وائی که مقتدی ده اَللهُ اکبر وَ ئیلو سره سمدستی په امام پسی رکوع ته ولاړی لکن امام د ده تر رسیدو د رکوع د مخه سر اپورته کی هم د غه مقتدی د غه رکعت نه دی نیولی **پوه سه**: چی د غه تلواری مقتدی به تکبیر تحریمه په ولاړی وائی بیا به رکوع ته ځی. اوکه ده په حال کی د چوغه کیدو و رکوع ته الله اکبر ووایه. نو که رکوع ته تر ولاړه نژدی وو شروع په لمانځه یه نه صحیح کیږی. حاصل دا دی چی د ادراک الرکعة د پاره شرط مشارکت د امام سره دی په یوه جزء کی د قیام او بیا په یو جزء کی د هغه فعل چی په حکم کی د ولاړی وی لکه رکوع او شرط دا نه دی چی د وه تکبیره به مقتدی وائی یو د تحریمی د پاره او یو د رکوع د پاره کما فی المراقی»

**درویش وائی** چی فتویٰ خو پر قول د مصنف ده ولی هغه اثر سره د ابن عمر رضی اللّٰهُ تعالیٰ عنهما برابر دی چی هغه داسی وائی چی که ته ور سیدی وامام ته په رکوع کی او یا م رکوع ور سره وکړه د مخه تر دی چی امام سر اپورته کوی نو تا د غه رکعت ونیوی. اوکه امام سر اپورته کی د مخه تر دی چی ته رکوع ته ورتلی نو په تحقیق د غه رکعت ستا څخه فوت سو

لکن سره د هغه په دې مسئله کې نور اقوال هم شته، بعض فقهاء وائي چې که مقتدي په
کښته والي ورکوع ته شروع وکړه او امام په پوره تکبیر وسره د رکوع څخه شروع وکړه نو دغه
رکعت به ونیسي، او بعض فقهاء وائي چې تر هغو چې امام سم نه وي دریدلای او دی ورسره
شریک دغه رکعت به حساب دی، او بعض فقهاء وائي چې تر هغو مقتدي مدرك د رکعت
نه شي کیدلای چې تول کامله رکوع ونه نیسي. او بعض فقهاء وائي چې په قدر د یوې تسبیح
شراکت په رکوع کې ضروري دي د پاره د ادراك الرکعة» ابن امیر حاج وائي: «والاول اوجه
یعني چې قول د مصنف هم وو. او امام حلبي وائي: «وهو الاصح لان الشرط المشارکة في جزء
من الرکوع وان قل» قال المصنف:

## وَاِنْ رَكَعَ قَبْلَ اِمَامِهٖ بَعْدَ قِرَائَةِ الْاِمَامِ مَا تَجُوْزُ بِهِ الصَّلٰوةُ

او که رکوع وکړه مقتدي د مخه تر امام، پس له دې څخه چې امام دومره قرائت ویلی وو چې لمونځ

## فَاَدْرَكَهٗ اِمَامُهٗ فِيْهِ صَحَّ وَاِلَّا فَلَا

په روا وو، (و بیا مقتدي په رکوع کې وو چې امام هم رکوع ته ورغلی نو رکوع د مقتدي صحیح ده، او دغه رکعت به ونیسي، او که داسې نه وه یعني یا رکوع د مقتدي د مخه وه تر قرائت د امام ما تجوز به الصلوة، چې هغه یو آیت طویله دی یا دری کشنی آیتونه دي، او یا دغه مقتدي ته امام په حال کې د رکوع نه وو رسیدلی بلکه مقتدي سر اپورته کړی وو چې امام رکوع ته ولاړ بیا د مقتدي دغه رکوع نه ده صحیح، ولې دده د غه رکوع په دواړو صورتونو کې تر وخت د مخه ده، نو مقتدي دوهم رکوع د امام سره وکړي. او کې نه وکړي او د لمانځه سلام وګرځوي، د مقتدي لمونځ باطل شو.

**مسئله** که مقتدي سجده وکړه د مخه تر امام نو که دغه سجده پس له هغه څخه وه چې امام سر د رکوع څخه اپورته کړی وو، او بیا امام چې مقتدي په سجده کې وو نیسي ورسیدی دغه سجده د مقتدي صحیح ده لکن ګناه کار دی. او که امام لا سر د رکوع څخه نه وو اپورته





کړی مقتدي سجدې ته ولاړی د حضرت الامام څخه روایت دی چې دغه سجده به نه ده صحیح ولې بیوخته ده»

**مسئله**: په تتمه کې او خانیه او محیط کې وائي.. که امام په سجده کې وو او یا ناست وو مقتدي نیت بسې وکي نو دا مقتدي به دوه تکبیره وائي یو د شروع د لمانځه او بل د انحطاط د پاره **سوال**: د مخه تیره شوه چې امام په رکوع کې وي نو په مقتدي دوه تکبیره ویل نه دي لازم افما الفرق» **جواب** چونکه په حال کې د رکوع وقیام ته نژدې دی نو ځکه تکبیر الافتتاح د تکبیر الرکوع څخه غني او مسئله بخلاف هذه المسئلة»

**مسئله** که امام پر سجده پروت وو نو پر مقتدي واجبه ده چې تکبیر افتتاح دی په ولاړې ووائي او بیا دې په سجده د امام سره ګډون وکړي کې څه هم دغه رکعت نه دی حساب، او که دغه مقتدي یوازې سیکه رکوع وکړه. او بیا د امام سره په دواړو سجدې وکړي لمونځ خونه دی فاسد لکن مدرك د رکعت نه دی. ولې هغه یوازې رکوع دده لغوه ده. او که امام پر سجده وو مقتدي داغسې ولاړ وو چې امام را اپورته شو نو مقتدي په باقي لمانځه کې شراکت ورسره وکړي او د هغه فوت شوي رکعت قضایه را اوړه وروسته تر فراغ د امام لمونځ به صحیح دی. ولې چې مقتدي د رکعت قضاء سره د دوو سجدو را اوړه. او که څه هم داسې فعل د حدیث مبارك څخه مخالف دی چې روایت په ابوداؤد د ابي هریره څخه کړی دی چې علیه الصلوٰة والسلام وائي چې تاسې راسئ و لمانځه ته په داسې کې چې موږ پر سجده پراته یو تاسې هم سجده راسره کوئ او تاسې دا هیڅ شی مه بولئ یعني پر رکعت به مه حسابئ. او که چا رکوع د امام سره ونیوله نو هغه دغه رکعت هم ونیوی»

قال المصنف

## وَكُرِهَ خُرُوْجُهٗ مِنْ مَّسْجِدٍ اُذِّنَ فِيْهِ حَتّٰى يُصَلِّيْ

به کراهت تحریمي سره ۱۲

او مکروه دی وتل د هغه مسجد څخه چې اذان په کښې وسي. تر هغو چې لمونځ کوي. ولې چې په صحیح حدیث شریف کې داسې راغلي دي: چې نه وزي د مسجد څخه پس له اذان څخه مګر منافق، او یا هغه سړی چې په یو کار پسې ووزي او بیرته اراده د راتګ لري» .

قال المصنف **اِلَّا اِذَا کَانَ مُقِیْمَ جَمَاعَةٍ اُخْرٰی وَاِنْ خَرَجَ بَعْدَ** مگر دا چې دا کس چې وتلي وي امام یا مؤذن د بل مسجد وو، او که ووتی د مسجد نه پس له دې نه چې لمونځ یې **صَلَاتَهٗ مُنْفَرِدًا لَا یُکْرَهُ** یوازې وکړې بیا مکروه نه دی. ولې دا خو اجابت د داعي الله چې مؤذن وو وړ کړې یعنې په انفرادي لمانځه سره نو دوي هم واجبت پوره نه دی لازم که څه هم ترك د جماعت مکروه دی» قال المصنف:

**اِلَّا اِذَا اُقِیْمَتِ الْجَمَاعَةُ قَبْلَ خُرُوْجِهٖ فِی الظُّهْرِ وَالْعِشَاءِ**

مگر یا مکروه دی وتل د مسجد څخه کې لمونځ هم یوازې کړي وي که جماعت برپا به شوي یعنې اقامت د جماعت د پاره وکړه شو د ما پښین په لمانځه کې او یا د ماښام په لمانځه کې. ولې خو نفل لمانځه سیت دی په امام پسې وکړي، چې ترڅو دوو لمونځو وروسته خو نفل روا دي، په خلاف د سحار د لمانځه او یا د ماز دیگر د لمانځه چې نفل تر هغو وروسته نشته، او په خلاف د ماښام د لمانځه چې دری رکعت نفل خو هم نشته، نو به دا سړی خلګ نه متهم وي چې دی چې د جماعت څخه ولاړي یا د خوارجو څخه دی، او یا شیعه گانو څخه چې هغه لمونځ په جماعت نه کوي. ولې دوی وائي چې امام الجماعت د گناه څخه باید معصوم وي. او دا خبره د دوي صرف دروغ ده. ولې په حدیث شریف کې راغلي دي صَلُّوْا خَلْفَ کُلِّ بَرٍّ وَفَاجِرٍ. وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم من کان یُؤمن بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ فَلَا یَقِفَنَّ مَوَاقِفَ التُّهَمِ، که دچا ایمان وي په خدای او په ورځ د آخرت نو دې هیڅ کله نه درېږي په ځای کې د تهمتو. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**فَیَقْتَدِیْ فِیْهِمَا مُتَنَفِّلًا** نو اقتداء دې وکړي په دغو دوو لمونځو کې په امام پسې نفل کوونکی لدفع التهمة عنه **فَائِدَه** مکروه ده ناسته د دغه سړي چې لمونځ یې یوازې کړي وي د ما پښین یا ماښام په مسجد کې





چې جماعت ولاړ وي. ولې چې په دې ناسته کې مخالفت د جماعت لازمېږي. او د ماښام لمونځ نفلي د امام سره نشته په ظاهر روایت کې **فَائِدَه**: امام طحطاويؒ وائي چې په اول کې د مسئلې مراد ده اذان څخه نفس دخول د وخت دی که اذان په مسجد کې شوی او که نه کړ درویش وائي چې دا خبره چا تائیدکړې نه ده، او د عرفه څخه هم خلاف ده ولې د ما پښین وخت مثلاً پس له زوال د لمر داخلېږي او جماعت یو ساعت یا دوه ساعت وروسته خصوصًا په دوبي کې قائمېږي. نو به دا سړي دوه ساعته په انتظار د جماعت په دې مسجد کې ناست وي» او لفظ د حدیث هم د دې خبرې پر خلاف دی قال علیه الصلوٰة والسلام لَا یَخْرُجُ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ النِّدَاءِ اِلَّا مُنَافِقٌ» او نداء خو اذان ته وائي نه دخول الوقت ته»

**مَسْئَلَه**: که مؤذن څخه مسجد کې قائم مقام د ر لودي وه هغو ته هم وتل پس له اذانه مکروه دی» ط **مَسْئَلَه**: په هغه سړي چې د سحار یا ماز دیگر لمونځ یې یوازې کړي وي واجب ده مسجد څخه دې ووځي» ولې چې جماعت ودرېږي او دی یوازې ناست وي، سبب د لوي تهمت گرځي، کذا فی النهر الفائق» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَلَا یُصَلِّیْ بَعْدَ صَلٰوةٍ مِثْلَهَا** او سړي دې نه کوي پس له لمانځه څخه مثل د هغه لمانځه» په مراقی کې وائي چې دغه عبارت لفظ د حدیث دی» نو څوك وائي معنا یې دا ده چې نه دې کوي دوه رکعته نفل سره د قرائت او دوه رکعته بیله قرائت» نو دا بیان د دې دی چې په څلورو رکعتو کې د نفلو قرائت فرض دی لکن دا ده لفظ څخه د حدیث ډېره لرې ترجمه ده» او څوك وائي چې مراد دا دی چې سړي لمونځ وکړي بیرته دې نه راگرځوي د پاره د طلب د ثواب» او بعض وائي چې معنا د حدیث دا ده چې په مجرد توهم د فساد دې بیرته لمونځ نه راگرځوي، ولې چې په دې سره د وسوسو خلاصېږي. او څوك وائي چې دا نهی دی د تکرار څخه د جماعت په هیئت اولی: وَاللّٰهُ تَعَالٰی اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

---

کتبہٗ بیدہ احقر العباد فضل الحق حقاني غفرلهٗ

# بَابُ سُجُودِ السَّهو

باب ثابت دی په بیان کی د سجدهٔ سهوه "

**پوهـه:** چې اضافت د سجود و سهوی ته اضافت د حکم دی و سبب ته دَ هغه یعنی هغه سجده چې سبب یې سهوه ده " مر د ر " او مراد د سجود نه جنس د سجده ده نو دوو سجدو ته هم شامل شو. فلا یتوهم ان لفظ السجود مفرد فکیف یشمل السجدتین " او سهوه او نسیان او شک، په حکم کې په نیز د فقهاوو یو شی دی. او ظن طرف راجح ته وائی که څه هم په نیز د حکماوو د دې درو لفظو فرق ستـه، ولی دوی وائی چې شک تساوی د طرفینو ته وائی او نسیان هغه ده چې یو شی چې سړی ته معلوم وو، مگر اوس یې هم د عقل او د حافظی نه وتلی وی چې نوکسب جدید غواړی او سهوه داده چې شی په مدرکه کې باقی وی صرف د حافظی نه وتلی وی نو کسب جدید نه غواړی بلکه چې سنه فکر وکړی ور پیا دیږی " ط در،

قَالَ المصنفؒ: — واجب دی.

**یَجِبُ سَجَدَتَانِ** دوې سجدی دی کوی. په مَرَاقی کی وائی چې دلیل د وجوب یې دادی، چې دا سجده ضمان د فائت دی " وهو لا یکون الا واجبا وهو الصحیح " ولی که فائت فرض وی خو لمونځ یې باطل دی. او که سنت وی هغه ضمان نه لري، او بعض فقهاء وائی چې سجود السهو سنت دَه، ولی چې علیه الصلوٰة والسلام چې یو وخت په لمانځه کی سهوه شو نو یې دوی سجدی وکړی ور وسته تر سلام "

**پوهـه:** چې دَ غه دوې سجدې د سهوی هم دَ غسی دی لکه د اصلی لمانځه سجدی یعنی په مَا بین کی دَ دَغو دوو سجدو به کښینی پښه به پری باسی، او د وضع او رفع د پاره به اَللهُ اکبر وائی. او په دواړو کی به تسبیح د سجدی وائی و کل ذالک مسنونٌ، ط، او بعض فقهاء وائی چې په سجود السهوه کی به داسی تسبیح وائی: سُبْحَانَ مَنْ لاینام وَلا یَسْهُو، ط وائی چې دا سی تسبیح خو مناسب د حال سره ده نو که دواړه قسمه تسبیح سره جمع





کړی ډیره به ښه وی **مسَئَلَه** که یو سړی فقط یو سجده وکړه د سهوی د پاره نو کی په قصد داسی وکړه نو گناه کار دی بل شی نسته او که په سهوه دا کار وکړی نو واجب څو په نه سوه پر ځای لکن د دی سهوی جبیره پری نسته " کما فی البحر لو سهٰی فی سجود السهو لا یسجد لهذ السهو کما قال اهل الصرف لا تصغیر المصغر "

**یَحکیٰ قِصَّه:** محمد بن الحسن الشیبانیؒ یو ورځ و کسائی نحوی ته چې دَده د خاله زوی وو داسی وَوَیل چې ته وَلی اشتغال په فقه سره نه کوی! کسائی ورته وویل چې زما نحوه داسی محکمه زده ده چې و ټولو علمونه وما ته هدایت کوی " امام محمدؒ ورته وو ئیله چې زه ستا سوال دَیوی مسئلی دَ فقهی شریفی کوم، ته ئی دَ قواعدو نه د نحوی ما ته جواب راکړه ! کسائی ورته وو ئیل چې را باندی وی کړه، امام محمدؒ ورته وَوَئیله که سړی په سجده سهوه کی سهوه سو نو څه به کوی! کسائی یو گړی فکر وکړی او بیائی ورته وو ئیل د دی سهوی د پاره سجده سهوه نه غواړی. امام محمدؒ ورته وویل چې دا حکم نو تا د کومه قاعدی نه د نحوی معلوم کړی، کسائیؒ ورته وو ئیل دې قاعدی نه چې نحاة وائی المصغر لا یُصغر نو امام محمدؒ د ده زړا کت ته تعجب وکړی: او په مضمرات کی وائی چې که چیری د سهوی په سجده سهوه کی هم سجده سهوه لازمه سی نو تسلسل لازمیږی وهو باطلٌ " قَالَ المُصنفؒ:

**بِتَشَهُّدٍ وَتَسْلِيْمٍ** سره د التحیات پس له سجود السهو او بیا په پای کی سلام گرځول لکن په مراقی کی وائی چې درود دی هم وائی او اَللّٰهُمَّ بارک هم و وائی په مختاره مذهب باندی **پوهـه:** چې التحیات او سلام خو واجب دی ولی هغه اوله تشهد او سلام خو پوره ته سوله په گرځید و وسجدی ته، او د درود په باره کی فخر الاسلامؒ وائی یعنی قبل سجود السهو و بعده " و اختاره فقیه ابو جعفر الطحاویؒ

قَالَ المصنفؒ: — په سبب د پرېښودلو د واجب په سهوه سره که

**بِتَرْكِ وَاجِبٍ سَهْوًا** ترک د واجب وی او که تاخیر د واجب وی او که

زیادت وی اوکہ نقصان، دواجب په قیدسره فرض اوسنت خارج سوه ولې فرض خو جبیره نه لری بلکه لمونځ په فاسد سی. اولمونځ په ترك د سنت ناقص نه ورته ویل کیږي حتی چې جبیره د نقصان وَعوارِي وَقدمر قبيل هذا» اوسهوًا مصنفؒ ددی دپاره وَوَ ئیله چې په قصدًا دا کار کوونکی مستحق د تغلیظ دی یعنې ماموری په د ہے دی چې لمونځ د سره اوگرځوی،،

# بنهائی فائدی د طحطاوی په حوالی

۱ که سری په لمانځه کی ایت دسجدی ووایئ اوسجده په وځنډوله. صاحِب هدایه په تجنیس کی وائی چې سجده سهوه پری تاخیر کی نسته» ولې سجدهٔ تلاوت په صلب کی لمانځه واجبه ده

۲ که مصلی بِسْمِ الله پریږدی پرظاهرالمذهب خوسجده سهوه نسته مگر یلعیؒ شارح الکنز وائی چې سجده سهوه پرواجب ده»

۳ اوکه یوسری دالحمد لله یوایت پریږدی په نیزد حضرت الامام الاعظمؒ سجده سهوه باندی لازمه ده، او په نیزد یارانو چې اکثرحصه دفاتحی پریږدی نو سجده سهوه پر واجبه ده» وبه جزم فی الفتح تبعًا للمحیط» والفتوی علیٰ قول الامامؒ»

۴ یوه سه چې دمخه کول دالحمدُ لِلّه پرسورت واجب دی، یعنی په قدر دیوه رکن داداودی نه ځنډوی، نوکه مصلی دمخه ترفاتحه شروع په سورة وکړ سهوًا اوبیا یه فاتحه وریاد سوه نوفاتحه دی ووائی لوسورت دی راوگرځوی اوسجده سهوه دی هم وکړی ولې چې واجب یه ترځپل محل وځنډاوه.

۵ که سری تهوله الحمد لله مکرر کړ یایوه حصه دهغی په یوه کی داولو دوو رکعتو تر سورة دمخه سجده سهوه پری لازمه ده. ۶ که سری سورت پریښو اوپه رکوع کی وریاد سویا پسله رفع درکوع څخه ترسجدی دمخه نودی دی بیرته وَلاړسی سورة دی وَوائی او رکوع دی بیرته راوگرځوی اوسجده دی هم وکړي. ولې چې په ویلوسره دسورت نو فرض وگرځیدی،،





نوهغه د مخه رکوع په پوره سوه، حتی کی رکوع تر راوگرځول لمونځ په فاسِدسو، ولې چې فرضی رکوع په کښی پاتسوه،

۷ اوکه سړي سورة ووایه اوفاتحه په هیره سوه. اوبیا یه په رکوع کی وریادسوه. نودی دی بیرته ولاړسی الحمد لله دی ووائی اوسورت دی راوگرځوی او رکوع دی هم را وگرځوی اوسجده سهوه دی هم را وکړی،،

۸ که دسړي څخه دعائ قنوت هیرسواوپه رکوع کی وریادسونودی د ہے نه ولاړیږي او دعائ قنوط دی نه وائي. ولې چې ځای دقنوط خوقبل الرکوع ووهغه فوت سو، اوکه فرضًا دی ولاړهم سواوقنوط یه وَوایه رکوع دی نه راگرځوی. ولې قنوط خوفرض نه سو واقع کیدای، نو په ده فرض عملی چې رکوع وَه نه پوره کیږي. لکن په دواړوحالوکی به سجده سهوه کوی لسترك الواجب په اول صورت کی اوياد تاخیرده واجب ده کبله په دوهم صورت کی"

۹ که لمونځ کوونکی په رکوع کی اویا په قومه اویا په سجده کی ایت ووایه سجده سهوه پری لازمه سوه.

۱۰ که سړي په اوله ناسته کی قرائت ووایه نوکه د مخه تر التحیات ووایه هم سجده سهوه پر لازمه ده. ولې چې واجب یه پریښو چې ویل د تشهدی دی په اول کی دناستې، اوکی قرائت وروسته تر التحیات ووایه نوهم سجده سهوه پرلازمه ده ولې اتصال دَولاړی دفراغه سره د تشهدی واجب دی هغه پاته سو، اوکی په اخیره ناسته کی قرائت ووایه نوکه قبل التشهد وو سجده سهوه پرلازمه ده» لفوات الواجب وهوالشروع بالتشهد فی اول الجلوس» اوکه بَعد التشهد یه قرائت وَوایه » سجده سهوه نسته»، چې په اخیره ناسته کی بعد التشهد ازادی ده دعاء کولای سی ثناوَیلای سی» اوقرائت خو هم دَغو دوو څخه نه خالی کیږی» اوکی تشهد په اخیره ناسته کی دوه واره وَوَیل اویا تشهد په ولاړي ووئیله یا په رکوع کی یاپه سجده کی سجده سهوه باندی نته یه الصلوٰة

۱۱ که سړي تشهده پریښوَل په دووناستوکی اویا په بعض دتشهدی پریښو سجده سهوه په ظاهرروایت کی باندی سته، ولې چې تشهده ذکرد واحد منتظم دی

نوترك د بعض په لكه ترك دكل دى، اود غړ نګه كى دعائى قنوط دوتړو پرى منو، يا الله اكبر په پرېښو نو سجده سهوه دى وكړى او بجرو دى ته ترجيح وركړيده»

۱۲ اوكه امام جهرى په قرائت سره پرېښو په هغه لمانځه كى چې قرائت په په جهر سره وو اويا په جهر وكړي په خفيه لمانځه كى سجده سهوه باندى سته، لكن په دى كى اختلاف دى چې موجب دسهوى څومره دى! والاصح: چې په قدر د ما تجوز به الصلوٰة په دواړو صورتونو كى، ولى چې دلږ جهر او يا دلږ اخفاء احتراز نه كيږى،

**پوښتنه:** په حديث صحيح كى د بخارى وغيره راغلى دى چې عليه الصلوٰة والسلام به كاهى په موږ يو ايت په سرى لمانځه كى اوراوه، **جواب** بعض فقهاء وائى چې دا اوروَل د دى دپاره وو چې صحابهؓ ته دا ورمعلوم كړي چې قرائت مشروع دى په هغه لمونځو كى چې قرائت په په جهر وى. او فتح القدير دا جواب رد كړى. او دى وائى چې دا مشروع والى د قرائت په سرى لمونځو كى دمخه معلوم وو.. فلاحاجة الى اعلامهم فى الصلوٰة» ولى چې په حديث مبارك كى داسى راغلى دى چې په ابتداء كى داسلام د ټولو لمونځو قرائت به جهر سره وو. تر هغو چې دا آيت نازل سو، وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا نو بيا لمونځونه دوه قسمونه سوه كما هو الآن» نو صاحب الفتح وائى چې قرائت د عليه السّلام به جهر سره په سرى لمونځو كى دپاره د بيان دجواز دى يعنى په قدر د يوه ايت يعنى كوتاه جهر په سرى لمانځه كى پرواه نه لري» ولى چې احتراز د جهر سره بالكليه مشكل دى خصوصًا په ابتداء كى د ساه كښلو»

درويش وائى چې د ير شارحان د حديثو وائى چې د دغه ايت: وَلَا تَجْهَرْ الاية» په دى باره كى نازل سوى دى چې آنحضرت صلى الله عليه وسلم به په ابتداء كى د اسلام په جهرى لمونځو كى له ډيره محبته قرائت ډير په زوره وايه حتى چې كافرانو چې به واوريدى نو قرآن او مَنْ اَنْزَلَهُ وَمَنْ نُزِلَ عليه ته بى پوچ ويئيله، نو په دى ايت كى آنحضرت صلى الله عليه وسلم په دے مامور سو چې قرائت ډير په زوره مه وايه چې كفار يه هم اوري او د بسكنځلو سبب وگرځى وَلَا تُخَافِتْ ١ه او دونه كرار يه هم مه وايه چې اصحابؓ يه نه اوري» وَابْتَغِ»





قال المصنفؒ **وَاِنْ تَكَرَّرَ** كه څه هم دا سهوه مكرره سى يعنى دوه درى ځايه سهوه سى هم هغه دوى سجدى كافى دى بالاجماع كه هغه سهوى ديوه جنسه څخه وى او كه مختلف الجنس وي، لكه يو سړى چې طمانينت د ركوع او سجدى پرېښى دى او تشهد اوله هم پرېښى دى» قال المصنفؒ:

**وَاِنْ تَرَكَهٗ عَمَدًا اَثِمَ وَوَجَبَ اِعَادَةُ الصَّلٰوةِ لِجَبْرِ نَقْصِهَا**

او كه پرېښو واجب په قصد سره گناه كار دى، او په ده واجبه ده راگرځول د لمانځه دپاره دجبيره د نقصان يعنى په ترك د واجب، د دى معنادا دى

**وَلَا يَسْجُدُ فِى الْعَمَدِ لِلسَّهْوِ** چې فرض لمونځ خو په اول دى او دوهم په جبيره ده، او بعض علماء وائى چې فرضى لمونځ په دوهم دئ، او اول په نفل سوه، او سجده دى نه كوى په عمد كى د سهوي دپاره. ولى چې سجده سهوه خو په سهوه سره اړه لرى د لته خو عمد دى سهوه نسته، او بل دا چې عمد خو اقوى دى تر سهوى نو جابر د ضعيف چې سهوه ده جابر د قوى نسى كيدای چې عمد دى» قال المصنفؒ:

**قِيلَ اِلَّا فِى ثَلَاثٍ تَرْكُ الْقُعُودِ الْاَوَّلِ يَعْنِى عَمَدًا اَوْ تَاخِيرُ**

او بعض فقهاء وائى چې مگر په درى صورتونو كى په عامد هم سجده سهوه سته، او دا چې اوله

**سَجْدَةٍ مِنَ الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى اِلٰى اٰخِرِ الصَّلٰوةِ** يعنى عمدًا **اَوْتَفَكُّرِهٖ عَمَدًا**

ناسته پرېښى دى په قصد سره. دوهم دا چې وځنډوى سجده د اول ركعت تر اخيره پورى د لمانځه د ريم دا چې قصدًا فكر وكړي، حتى چې دا غه فكر په مشغوله

**حَتّٰى شَغَلَهٗ عَنْ رُكْنٍ** كړي دا دا كولو څخه د ركن د لمانځه» **يوه سـه** چې امام طحطاويؒ دا صورتونه هم زيات كړى دى» چې په اوله ناسته كى عمدًا درود ووائى. دوهم دا چې الحمدلله عمدًا پرېښى دى» قال فى المراق سؤال وسود فخر الاسلام

ستە، نو دە جواب ورکړی چی دا البدیعُ څخه چی څرنګه دَعمَد په صورت کی سجده سهوه ستە، نو ده جواب ورکړی چی دا
البدیعُ څخه چی څرنګه دَعمَد په صورت کی سجده سهوه ستە
سجده عذر، د سجده سهوه نه ده، یعنی غرض ددی دوو سجدو څخه عذر کول دی دمُصلی
دهغو کناه، څخه چی ده عمدًا اخلاف الشریعت وکړی» در ویش وائی چی پردی تقدیر استثناء
دالّا فِی ثَلاث آه د سجود السهوه څخه بناء پر تشاکل صوری ده» فافهم» قَالَ المُصنفُ

# وَيُسَنّ الْاِتْيَانُ بِسُجُوْدِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ وَيَكْتَفِىْ

اوسنت دی په ظاهر روایت کی. او بعض علماء وائی چی کول د سجده سهوهٔ یعنی وروسته کوله یه واجب دی

# بِتَسْلِيْمَةٍ وَّاحِدَةٍ عَنْ يَّمِيْنِهٖ فِى الْاَصَحِّ فَاِنْ سَجَدَ

دلیل د ظاهر روایت هغه مخنی حدیث دی چی علیه الصلوٰة والسلام سجود السهوه پسله سلام وکړه
حاصل دا چی سنت دی را اتګ په سجده

# قَبْلَ السَّلَامِ كُرِهَ تَنْزِيْهًا

سهوه سره پسله سلام، او اکتفاء دی کوی په یوه سلام سره پر راسته اړخ په اصح روایت کی. او بعض علماء وائی چی سلام دَ سجود السهوی دی دمخ وخواته وی فرقًا بین سلام القطع وسلام السهو» وجه د ظاهر روایت دا ده چی قبل الوجه سلام خو معهود نه دی، نو کی قبل التّسلام سجده وکړه مکروه دی تنزیهًا»

**فَائِدَه،** په هدایه کی وائی چی سجود السهوه دی وروسته تر دوه سلامو کوی، قال وهوالصحیح او ملاخسرو هم دهدایه تائید کړی دی لکن شیخ الاسلام خواهرزاده وائی چی سجده سهوه دی پسله دوه سلامه نه کوی» ولی چی دوهم سلام لکه خبرې دی» او پسله خبرو څخه سجده سهوه نسته، او مصنفؒ په مراقی کی وائی چی احوط بعد تسلیمه خصوصًا چی شیخ الاسلام پسله دوه سلامو سجده سهوه ممنوع بولی، او ط وائی چی قول په دی سره چی سجده سهوه دی پسله یوه سلامه کوی اعدل دا قوالو دی او اصح داقوالو» والله اَعْلَمُ

**مَسْئَلَه** که سړی سجده سهوه د مخه تر سلام وکړه وروسته تر سلام دی بیا نه راګرځوی، ولی چی په دی مسئله کی اختلاف دامامانو ستە چی امام شافعیؒ





سجده سهوه قبل السلام که څوک مصلی حنیفی وی کفایت کوی، او که امام حنیفی مذهب مقتدی شافعیُ مذهبه وو او هغه سجده سهوه دمخه تر سلام کوله مقتدی دی هم ورسره وکړی» م، ط، در فَقَالَ المصنفُ»

# وَيَسْقُطُ سُجُوْدُ السَّهْوِ بِطُلُوْعِ الشَّمْسِ بَعْدَ السَّلَامِ

او ساقطیږی سجدهٔ سهوه په راختلو سره دلمر پسله سلامه دسحار په لمانځه کی، او دا غرنګه

# فِى الْفَجْرِ وَاِحْمِرَارِهَا فِى الْعَصْرِ وَبِوُجُوْدِ مَا يَمْنَعُ

ساقطیږی سجدهٔ سهوه په وخت کی دسوروالی دلمر په مازدیګر کی. داخو واړه ددی سببه چی مکروه کاره څخه ځان وساتی، او دغه رنګه سجده سهوه ساقطیږی

# الْبِنَاءَ بَعْدَ السَّلَامِ

په وجود سره د داسی شی چی هغه بناء د ما بعد پر ما قبل منع کوی پسله سلامه: مثلًا پسله سلامه متصل سړی پُسکی واچول یا خوراک یه شروع کی بناء د ما بعد پر ما قبل منع کوی، لفوات شرط سجدة السهو» ولی په سجده سهوه سره خودی بیرته لمانځه ته راګرځیدی او د لمانځه شرط خو فوت سو نو د سجدهٔ سهوه شرط هم فوت سو چی رجوع وَ لمانځه ته ده» فَقَالَ المُصنفُ:

# وَيَلْزِمُ الْمَامُوْمَ بِسَهْوِ اِمَامِهٖ لَا بِسَهْوِهٖ

او لازمیږی سجدهٔ سهوه پر مقتدی په سهو سره دامام او نه لازمیږی په سهوه سره دمقتدی نه پر ده او نه پر امام» په حدیث کی راغلی دی چی څه وخت چی عَلیه الصلوٰة وَالسلام په سبب دَ سهوی سَجده کوله نو ټوله خلکو سجده ور سره وکړه. خواه دی مقتدی دَ مخه تر سهوی دَامام اقتداء پسی کړی او کی وروسته تر سهوی دامام

**مَسْئَلَه** که یو سړی دامام سره یوه سجده سهوه ونیوله دهغه بلی قضاء پری نسته،» او په صورت کی ددی چی مقتدی سَهوه سو پر ده چی نسته سجده سهوه ولی که دی یوازی کوی دامام څخه مخالف سُو، او عَلیه الصلوٰة وَالسّلام وائی: لَا تَخْتَلِفُوْا عَلٰى اَئِمَّتِكُمْ:

نو سجده سهوه اوکه امام دده په متابعت سجده سهوه وکړي نو اصل چي امام وو تبع وګرځي. الامام لکم ضامن يرفع عنکم سهوکم اصلاً ساقطه ده مع انه قال صلی الله عليه وسلم: الامام لکم ضامن يرفع عنکم سهوکم وقراءتکم، ترجمه: امام ستاسي ضامن دی يعني د لمانځه ستاسي پوره کوي سهوه ستاسي يعني ستاسي په سهوه سره پر تاسي سجده سهوه نشته، او دی ضامن دی ستاسي د قرائت يعني په امام پسي تاسي قرائت مه وايا ست که فا تحه وی او که نور، کما هو مذهب الحنفية"

قال المصنف: وَيَسْجُدُ الْمَسْبُوْقُ مَعَ اِمَامِهٖ ثُمَّ يَقُوْمُ بِقَضَاءِ مَاسُبِقَ او سجده سهوه دی کوي مسبوق يعني چي اول د لمانځه څخه دی تیر سوی وي، سره د امامه، ولې چي ده متابعت دامام

بِهٖ وَلَوْسَهَى الْمَسْبُوْقُ فِيْمَا يَقْضِيْهِ سَجَدَ اَيْضًا په سبب د اقتداء پړځان باندی لازم کړی دی، او بيا دی ولاړ سي وه قضا ته، د هغه لمانځه چي تر ده وړاندی والی سوی دی يعني هغه رکعتونه چي امام دده تر اقتداء د مخه کړی دی **فائده** مبتدی مسبوق دی دامام تر يوه سلام وروسته څنګه نه ولاړيږی ترهغو چي ده ته دا معلومه نه سي چي پر امام سجده سهوه نشته"

**فائده**: مسبوق ته روا ده چي په قدر د تشهد کښينستو چي دامام تر سلام د مخه دی ولاړ سي په دغو ذيل صورتونو کي ده چي دی ماسح وي د موزو، نو دی بيريږی که نه دامام وسلام ته ګوره مده د مسح به مي تيره سي، ۲ چي دی معذور وي بيريږی چي وخت د عذر به مي تير سي که نه انتظار ده سلام دامام وکړم، ۳ او يا بيريږی چي که نه انتظار وکړم او بيا قضاء د خپلو رکعتونو او هم د جمعې ده لمانځه وخت به تير سي" يا د اخترو د لمانځه وخت به تير سي، ۴ يا بيريږی چي پرما به قضائي لمانځه کي د بحار لمر راوخيژی که نه انتظار وکړم، ۵ او يا بيريږی که نه انتظار وکړم نو ما په قضائي لمانځه کي به خلګ زما ترمخ تيريږی، او که چيری سهوه مسبوق په خپل قضائي لمانځه کي وړ پيښه سوه د هغه د پاره به يوازی بله سجده سهوه کوي. يعني هغه سجده سهوه د





دامام سره چي ده وکړه د دی سهوی غاړه نه په وزی **سوال**: تکرار د سجده سهوه خو په يوه لمانځه کي ناروا دی نو څرنګه مسبوق دوه واره سجده سهوه کوي **جواب** د مسبوق لمونځ حکماً دوه لمونځونه دی. يو لمونځ يې په متابعت دامام دی، او بل په قضائي لمانځه کي خودی منفرد او مستقل دی،،

**مسئله** که مسبوق د سلام سره دامام يوځای سلام وګرځاوه، او يا يې د مخه تر امام سلام وګرځاوه دا دواړه سهوًا څندی پيښه سوه نو پر ده سجده سهوه نشته، ولې چي تر او سه دی په حال کي د اقتداء دی" او که امام وروسته سلام وګرځاوه. سجده سهوه به کوي. ولې چي دی منفرد دی خپل په لمانځه کي سهوه سو، قال المصنف:

لَا اللَّاحِقُ او سجده سهوه دی دامام سره نه کوي لاحق، لاحق هغه مقتدی ته وائي چي په اول کي د لمانځه دامام سره شريک سوی وي، او اخير د لمانځه څخه دی تير سي په سبب د عذر لکه چي بيده سي، او يا يې او دس مات سي نو دی لکه مدرك چي په سهوه سره دده پر ده سجده سهوه نشته، دا خو هله دا مسئله ده چي لاحق په خپل لمانځه کي سهوه سي، **مسئله**: که امام مسافر وو او مقتدی مقيم وو نو مقتدی چي ورو سته تر سلام دامام خپل لمونځ پوره کاوه سهوه سو نو اصح دا ده چي سجده سهوه دی وکړي. ولې چي دی منفرد دی حکمًا، او بدائع والاهم دا حکم صحيح بللی دی

**مسئله نادره** په دری رکعتی لمانځه کي په سبب د سهوی او سجده تلاوت، لس واره ناسته ممکنه ده، هغه دا سي چي يو سړی په امام اقتداء وکړه په اوله ناسته کي دامام (۱) او بيا يې تشهده ووېيل دامام سره په اخيره ناسته کي، (۲) او بيا امام سجده سهوه وه هغه سجده مقتدی هم ور سره وکړه" نو بيا يې التحيات دامام سره وويل (۳)، او امام ايت د سجدی په لمانځه کي ويلی وو، هغه وربياد سو، نو مقتدی د دی سره سجده تلاوت وکړی او بيا د امام سره تشهد وويله (۴)، او امام بياد دی تاخير د سجده تلاوت د پاره سجده سهوه وکړه او مقتدی ور سره وکړه بيا دامام سره يې تشهده وويله (۵)، نو بيا چي امام سلام وګرځاوه او دی وقضا ته د مافات ولاړ سو چي دوه رکعته دی، نو يو رکعت چي

وکړي خوبیا کښیني او تشهده به وائي (۶) او یو رکعت خو به بل کوي او بیا به کښیني تشهده به وائي (۷) او مقتدي چې پخپل قضائي لمانځه کې سهوه شوي وو نو سجده سهوه به وکړي او بیا کښیني تشهده به ووئیله (۸) او بیا د مقتدي ورپیا دسر څه ماخو پخپل قضائي لمانځه کې ایت د سجدې وئیلي وو، نو ده هغه د پاره به سجده وکړي. او بیا به تشهده ووئیله (۹) او بیا د دې تاخیر د پاره به سجده سهوه وکړي او تشهده به ووئیله (۱۰) نو ور وسته لمونځ پوره شو، هذا من النوادر، بلکه په رد محتار کې او په طحطاوي کې وائي چې تر لس ته هم ب لاکید ای شي. په قدر د سجده تلاوت پر امام او مقتدي فتفکر فیها»، قال المصنف:

## وَلَا يَأْتِي الْإِمَامُ بِسُجُودِ السَّهْوِ فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ

او رانتګ دې نه کوي امام وکذ الماموم په سجدې السهوه د جمعې په لمانځه او دواختر په لمانځه کې، قال في المراقي دفعا للفتنة، یعنې خلق په تشویش او اضطراب کې واقع کیږي په سبب د ډېروالي د جماعت بعض خلګ پر سجده به پراته وي او بعض لیرې خلګ ته ... طحطاوي وائي چې ظاهره داده چې دا کراهت تنزیهي دی، ولې چې بعض ... سجده سهوه به کوي»

**پوهه سه:** چې د کثرت اجتماع الناس فیها څخه دا معلومیږي، که دا اجتماع د خلګو ډېر نه وه بیا دې سجده سهوه حتما کوي، لکه په کوچنی کلي پر لس ګامه مثلا جامع مسجد جوړ دی او په هر جامع مسجد کې د عیدګاه لمونځ کیږي، نو د دې کبله د جمعې په ورځ یا د اختر په ورځ تر نو ر و عادي لمونځو چنداني ډېر خلګ نه وي او نه په سجده سهوه کې په خلګو تشویش پیدا کیږي، قال المصنف:

## وَمَنْ سَهَى عَنِ الْقُعُودِ الْأَوَّلِ مِنَ الْفَرْضِ عَادَ إِلَيْهِ (وجوبا)

## مَا لَمْ يَسْتَوِ قَائِمًا

که څوک یعنې مصلي سهوه سي د اولې ناستې څخه د فرضي لمانځه یعنې هیره یې سي او ولاړ نه یې ی نو واجب ده چې بیرته دې ناستې ته





را وګرځي که سمدم نه وو درېدلی په ظاهر روایت کې، او دا غه هم اصح حکم دی

**پوهه سه:** چې د قریب د اولې ناستې هم دا غه حکم دی، ولې وتر خو فرض عملي دی نو

**پوهه سه** چې مصنف دا حکم د تبیین او برهان او فتح القدیر سره برابر دی، او د حدیث سره هم برابر دی» قال علیه الصلوة والسلام: إذا قام الامام في الركعتين فان ذكر قبل ان يستوي قائما فليجلس وان استوى قائما فلا يجلس ويسجد للسهو رواه ابوداؤد»، که اراده وکړه د ولاړېدو امام یعنې به ولاړېدو یې شروع وکړه. په دوو رکعتونو کې ور پیاد سوه یعنې د میانځ ناسته د مخه تر دې چې سم درېږي نو دې بیرته کښیني او که سمدم ولاړ سو بیا دې نو نه کښیني او سجده سهوه دې وکړي **پوهه سه** چې قید د امام اتفاقي دی للا تمام بشانه ولې چې د منفرد حکم هم دا غه دی، وفي الهداية والكن ان كان الى القيام اقرب لا يعود والا عاد» قال المصنف:

## وَالْمُقْتَدِي كَالْمُتَنَفِّلِ يَعُودُ وَإِنِ اسْتَتَمَّ قَائِمًا

او مقتدي که پسې ولاړ سي هغه لکه نفل کوونکي دی چې پر دوو رکعته ولاړ سي او د میانځ ناسته یې هیره سي نو راګرځي به د میانځ ناستې ته که څه هم تام ولاړ سوی وي، مقتدي خو په دې سبب چې متابعت د امام پر ده لازم دی، او متنفل په دې سبب چې هر دوه رکعته د نفلو علاحده لمونځ دی ځکه دی به د میانځ په ناسته کې درود حتما وائي، او په دریم رکعت کې سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وائي نو د میانځ ناسته پر فرض ده، و فرض ناستې ته خو به حتما راګرځي، او بعض فقهاء وائي نه دی راګرځي. قال في التاتارخانية وهو الصحيح»

قال المصنف

## فَإِنْ عَادَ وَهُوَ إِلَى الْقِيَامِ أَقْرَبُ سَجَدَ لِلسَّهْوِ وَإِنْ كَانَ

او که د غه سړي چې د ناستې څخه سهوه سوو ولاړ ته نژدې وو سجده دې وکړي د سهوې د پاره ولې چې واجب ځنډی

## إِلَى الْقُعُودِ أَقْرَبَ لَا سُجُودَ عَلَيْهِ فِي الْأَصَحِّ

پاته سو، او که چیرې و ناستې ته نژدې وو،

**نَادِره**: که د غه سړي په اخيره ناسته کې لږ کښيناستی يعنې په قدر د تشهد نه وي او بيا ولاړ سي او بېرته کښيني بيا غه لږ التحيات نوره ووائي او بيا ولاړ سي او بېرته کښيني نو په دريمه ناسته کې تشهد پوره کړي، نو لمونځ يې صحيح دی حتی که دی ورو سته تر هغه ده لمانځه سره منافي يو کار وکړي لکه خوړل وغيره لمونځ يې تام سو دا دی سببه چې د تشهد پر يوه ځای ويل فرض نه دی، هذا حاصل ما في المراقي

قال المصنف **فَإِنْ سَجَدَ صَارَ فَرْضُهُ نَفْلًا وَضَمَّ سَادِسَةً إِنْ شَاءَ**

او کې سجده وکړه د زائده رکعت د پاره نو وګرځيدی فرض يې نفل، او ور جوت دې کړي يو رکعت بل کې خوښه وي، تا چې نفلې لمونځ يې جوت سي، **پوهسه**: چې په نيز د امام محمدؒ فرض يې هلته نفل کيږي. چې د سجدې څخه سر اپورته کړي، ولې چې تمام د رکن چې دلته د غه سجده ده، په انتقال د هغه رکن څخه کيږي، قال في المراقي وهو المختار للفتوی، او ولې په دې صورت کې فرض نفل سوه سبب دا دی چې په د سجدې دده شروع په نفلو صحيح سوه د مخه تر اکمال د فرضو، او په نيز د ابو يوسفؒ چې صرف تندی دې پر سجده کښيښو فرض يې نفل سوه، ولې چې د اغه پوره سجده ده چې سجده په شرعه کې ايښول د تندی دې پر مځکه،

**فَائِدَةُ الْخِلَافِ**: که د غه مصلي صرف چې تندی يې کښيښو او دس يې مات سو په سنيز د امام محمدؒ او دس دې تازه کړي. او د نوره لمانځه بناء دې پر وکې. ولې چې دی هنوز په تحريمه کې د لمانځه دی، او امام ابو يوسف وائي چې بناء نه ده پر صحيح ولې چې په وضع د تندی لمونځ پوره سو. نو دده بې او دس يا خارج الصلوٰة ده، مصنفؒ چې إِنْ شَاءَ ووايه د دې سببه چې دی سړي خوښه نفلو شروع قصداً نه ده کړې چې اتمام يې پر لازم سي، البته مندوب دی او کې خوښه سي سلام دې پر پنځم رکعت وګرځوي. او هيڅ شی پر ده نسته مګر نفل يې پنځه رکعته سوه، **مسئله**: د دغه لمانځه ضمان پر ده نسته يعنې کې فاسد کړي قضاء نه لري عند علمائنا الثلاثة، نص عليه غير واحد من اهل المذهب كذا قال الامام الطحاوي در ص ۳۸۲





قال المصنف **وَلَوْ فِي الْعَصْرِ** که څه هم د ماز دیګر په لمانځه کې وي هم دی شپږم رکعت ور ضم کړي، ولې د ماز دیګر تر لمانځه د مخه خو نفل قصداً روا دي نو بيله قصده خو په طريقه اولی روا دي، او دا شپږ رکعته نفل خو بې قصده د ماز دیګر تر لمانځه د مخه وکړل چې د ماز دیګر لمونځ خو دی ورو سته کوي. قال المصنف

**وَرَابِعَةٍ فِي الْفَجْرِ** او که د سحار په لمانځه کې سهوا د دريم رکعت ته ولاړ سوا او ده د دريم رکعت سجده يې وکړه فرض خو باطل سوه نو څلرم رکعت دې هم ور جوت کې چې څلور رکعت سي، ولې که دی څلورم رکعت نه کې ور ضم نو خو نفل يې دری رکعت سوه هغه مکروه دی، او ضم چې مکروه دی په سبب د وخت د سحار، نو دا دوه کراهت سره معارض سوه نو ضم الركعة مباح سو، **فائده** مصنف د ماښام لمونځ نه کې ذکر ولې هغه په سهو سره په څلور سوه فلا حاجة الی الضم فيه

قال المصنف **وَلَا كَرَاهَةَ فِي الضَّمِّ فِيهِمَا** او هيڅ مکروه والی نسته په ضم کولو کې د رکعت په ماښام او سحار کې، **پوهسه**: چې امام طحطاويؒ وائي چې ضمير د تثنيه دلته مناسب نه وو، ولې چې د مخه مونږ وويل چې د ماښام په لمانځه کې ضم نسته، ولې چې هغه پخپله څلور سوه، فالصواب ان يقول فيه بافراد الضمير بارجاع الی الفجر فافهم، قال المصنف

**عَلَى الصَّحِيحِ** يعنې پر صحيح روايت په دواړو کې يعنې په ماز دیګر او سحار کې پر دې کې اشاره ده و هغه روايت ته چې په سراج وهاج کې وائي چې د ماز دیګر په لمانځه کې دی شپږم رکعت نه ور جوت وي، يا قاضيخانؒ وائي چې د سحار په لمانځه کې دی څلورم رکعت ور ضم وي. قال المصنفؒ:

**وَلَا يَسْجُدُ لِلسَّهْوِ عَلَى الْأَصَحِّ** او سجده سهوه دې هم نه کوي پر اصح روايت کې، ولې چې دا دی مصلي لمونځ فرض خو فاسد سو او د فساد جبيره په سجده سهوه سره نه کيږي. وَقِيلَ يَسجد للسهو علی قولهما كذا قال الزيلعيؒ

قَالَ المصنفؒ **وَاِنْ قَعَدَ الْاَخِيْرَ ثُمَّ قَامَ عَادَ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ اِعَادَةِ التَّشَهُّدِ**

کچیرې مصلی کښیښتی په اخیره ناسته کې وروسته ولاړ سو بل رکعت ته که په سهوه سره وي اوکه په قصد سره وي" م " نو تر هغو پورې چې د دغه رکعت سجده یې نه وي کړې که څه هم قرائت یې وئیلی وي او رکوع یې هم کړې وي بیرته به ئې راوګرځوي وه ناستې ته ولې چې تر رکعت پورې یوول پرواه نه لري، او سلام دې وګرځوي او د تشهد راګرځیده نسته

**مَسْئَلَه** که داغه سړی سلام په ولاړې وګرځوي صحیح خو دی لکن سنت طریقه باندې پاته سوه. ولې چې سنت سلام ګرځول دی په ناسته کې، دليل د دې چې د تشهد راګرځیده نسته، دا دی چې تشهد په ولاړې سره نه باطلیږي، او امام ناطفیؒ وائي چې تشهد به راګرځوي

**مَسْئَلَه** که دغه سړی امام وو، نو که دی په نفلي لمانځه پسې روان سو، قوم دې متابعت نه کوي بلکه دوی به ورته ناست وي، ولې چې په بدعت کې متابعت نسته، نو که چیرې امام د نحر ترسجدې د زائد رکعت بیرته راوګرځیدی نو په سلام ګرځولو کې قوم موافقت ورسره وکړي اوکه امام زائد رکعت ته سجده وکړه قوم دې فی الحاله سلام وګرځوي: قَالَ المصنفؒ:

**فَاِنْ سَجَدَ لَمْ يُبْطِلْ فَرْضُهُ وَضَمَّ اِلَيْهَا اُخْرٰى**

او که زائد رکعت ته سجده وکړه فرض به یې نه دی باطل ولې چې اخیره ناسته خو یې کړې صرف ورته لفظ د سلام پاته دی او هغه خو واجب دئ" او ورجوت

**لِتَصِيْرَ الزَّائِدَتَانِ لَهُ نَافِلَةً وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ** دې کړي دغه رکعت ته بل رکعت، څوک وائي دا ضم مستحب دی او بعض وائي واجب دی، تاچه دغه دوه رکعته دده د پاره نفل سي،

**پُوهَسَه**: چې دغه دوه رکعته نفل د سنت بعدی وو په ځای کی نه سي درېدلای. ولې چې سنت بعدی تحریمه نوی غواړي او مواظبت نبویؐ هم پر دغه دول رااغلی دی، او سجده سهوه دی هم وکړي، ولې چې سلام چې





واجب وو وځنډیدی **مَسْئَلَه**: که یوچا اقتداء په دغه امام پسې په دغه نفلي رکعتونو کې وکړه، نو دا مقتدی به شپږ رکعت پوره کوي ولې چې دی تابع ده تحریمی د امام دی امام خو په موجوده تحریمه سره شپږ رکعته وکړه، او په نیز د امام اعظمؒ او ابو یوسفؒ دوه رکعته پر ده لازم دی. ولې خو امام د فرضي لمانځه ځنې وتلی دی، امام طحاویؒ وائي چې صحیح قول د امام محمدؒ دی " او که چیرې دغه مقتدی دغه دوه رکعته زائد فاسد کړې امام محمدؒ وائي چې دی لکه امام چې فاسد کې قضاء باندې نسته او شیخینؒ وائي چې د دوو رکعتو قضاء دی راوړي، قال فی المراقی وعليه الفتوی

قَالَ المُصنفؒ **وَلَوْ سَجَدَ لِلسَّهْوِ فِي شَفْعِ التَّطَوُّعِ لَمْ يَبْنِ شَفْعًا اٰخَرَ**

او که سجده سهوه وکړه په هغه دوه رکعتو نفلو کی بل شفع به نه پر بناء کوي از روی

**عَلَيْهِ اِسْتِحْبَابًا فَاِنْ بَنٰى اَعَادَ سُجُوْدَ السَّهْوِ فِي الْمُخْتَارِ**

استحباب او که بناء پر وکړه سجده سهوه به راګرځوي په مختار روایت کې،

**پُوهَسَه**: چې مصنفؒ لَمْ يَبْنِ وویل لَمْ يَصِحَّ یې نه وویل، ولې چې نفس بناء خو صحیح ده چې تحریمه پاته ده، او وجه د عدم بناء کرخه هم صحیح ده دا ده چې په دې بناء سره هغه کړې سجده سهوه بې ضرورته باطلیږي " لوقوعه فی وسط الصلوٰة" او اعاده د سجده سهوه هم پر دغه بناء دی چې هغه اوله سجده سهوه خو باطله سوه، ولې چې بناء د بلی شفع پر راغله،،

**پُوهَسَه** چې صاحب البحر وائي چې مصنفؒ خو عدم بناء د شفع اخر مستحب وبلل لکن دا بناء مکروه تحریمی ده، ولې چې مصلی به یا هغه کړې سجده سهوه باطلوي، او یا به نه باطلوي " او دا دواړه کاره غیر مشروع دی، اول د دې سببه چې ابطال د عمل کوي وهو حرام بالنص: لَا تُبْطِلُوْا اَعْمَالَكُمْ "، او دوهم د دی سببه چې هغه سجده سهوه خو په میانځ کی د لمانځه ده. او سره د دی چې سجده نه وي منګر په اخیر کی د لمانځه"

قال الامام اذا علمت هذا مع ظهوره يكون عدم البناء واجبا لا مستحبا»، وقد ايّد ارکان مذ ـــال صاحب البحر کثير من الفقهاء‌ؒ والله اعلم بالصواب و اليه المرجع والمآب

قال المصنفؒ:

## وَلَوْ سَلَّمَ مَنْ عَلَيْهِ سَهْوٌ فَاقْتَدٰى بِهٖ غَيْرُهٗ صَحَّ

که چیری سلام وګرځاوه هغه مصلی چی پر ده باندی سجده لازمه وه او په دغه حال کی پر ده

## اِنْ سَجَدَ لِلسَّهْوِ وَاِلَّا فَلَا يَصِحُّ وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَاِنْ

پسی اقتداء وکړه بل سړی اقتداء یه صحیح ده که چیری ساهی سجده وکړه دسهوی د پاره

## سَلَّمَ عَامِدًا لِلْقَطْعِ مَالَمْ يَتَحَوَّلْ عَنِ الْقِبْلَةِ اَوْيَتَكَلَّمَ

ولی چی دی په سجده کولو سره وګرځیدی واحرام ته د لمانځه چی ده وتل د لمانځه څخه پر دغه سجده موقوف وُو، **فـائِدَه**: دغه مقتدی به هم سجده سهوه ورسره کوی، او مقتدی به اخیر کی دخپل لمانځه هغه سجده سهوه نه راګرځوی که څه هم په مابین کی د لمانځه د ده ده، ولی چی دی امام اخیر د لمانځه د ده د پاره حکمًا او متابعةً اخیر د لمانځه دی او د ده امام د پاره حقیقةً لو که چیری ساهی سجده سهوه نه وکړه، نو دغه مقتدی اقتداء نه ده پسی روا، ولی چی دسلام وګرځاوه او سجده سهوه یه هم ونه کړه د لمانځه څخه دی خارج سو په نیزد امام اعظم او امام ابو یوسف رحمهما الله تعالی، خلافا لمحمدؒ و زفرؒ»، هغه وائی اقتداء پسی صحیح ده، او دغه مصلی حکم دادی چی سجده سهوه به وجوبًا کوی که څه هم ده سلام په قصد ګرځولی وي، د پاره دقطع د لمانځه»، ولی نفس نیت د تغییر د مشروع کار چی دلته سجده سهوه ده، وهغه مشروع کار ته تغییر ورکوی، او دغه سلام ته اعتبار نسته ولی داخو ذکر دی، نو وروسته تر سلام په دغه مذکور نیت سجده سهوه پر ده واجب ده ولی چی تحریمه د لمانځه باقی ده تر هغو چی د قبلی څخه مخ نوی اړه ولی، او یا یه خبری نه وی کړي، ولی په دغو دوو کارو سره تحریمه باطله سوه»





او بعض فقهاءؒ وائی چی په خبرو کی خو داغه حکم دی. او په نفس مخ [illegible] سره تحریمی ابطال نه راځی څو چی تر مسجد نه وی وتلی» قـال المصنفؒ:

## وَلَوْ تَوَهَّمَ مُصَلِّي رُبَاعِيَةٍ اَوْثَلَاثِيَةٍ اِنَّهٗ اَتَمَّهَا

او که چیری توهم وکړي یعنی دخطا خوا یه غالب وی، لمونځ کوونکی د څلورو رکعتو فرضو او یا لمونځ کوونکی د دری رکعتو که څه هم وتر وي

## ثُمَّ عَلِمَ اِنَّهٗ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ

چی ما لمونځ پوره کړي. وروسته یه یقین سو چی ما خو دوه رکعته وکړه لکن د لمانځه سره منافی کار لکه خبری خوړلک، وغیره یه نه وی کړي **ظن** دادی چی د صواب خوا یه غالبه وي، او توهم خو ذکر سو،

**فـائِدَه**، او یاد ور یادسی چی ماخو سجده د لمانځه چی صلبیه یه بُولی پری ایښی ده او یا پر ما سجده تلاوت سته، قـال المصنفؒ:

## اَتَمَّهَا وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ وَاِنْ طَالَ تَفَكُّرُهٗ وَلَمْ يُسَلِّمْ حَتّٰى اِسْتَيْقَنَ

لمونځ دی پوره کړي په کولو د ما ترکه، او سجده سهوه دی وکړي ولی چی تحریمه د لمانځه پاته ده، که څه هم ډیر سی فکر وو هل د ده په تیقن کی د متروک او سلام یه هم نه وی ګرځولی حتی چی یقین په متروک ورته حاصل سو» قـال المصنفؒ:

## اِنْ كَانَ قَدْرَ اَدَاءِ رُكْنٍ وَجَبَ عَلَيْهِ سُجُوْدُ السَّهْوِ وَاِلَّا لَا

که چیری وه زمانه د فکر د ده په قدر د اداء د یوه رکن وه نو سجده سهوه دی هم وکړی او که زمانه د تفکر د ده تر زمانی د اداء د رکن کمه وه بیا سجده سهوه باندی نسته، په اول صورت کی تاخیر د ولاړی وه د دریم رکعت نه پیدا سو، او په دی قدر تاخیر سره سجده سهوه لازمیږی، او په دوهم صورت کی چونکه زمانه د تفکر لږ ده هغه عفوه دي»

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه [illegible]

# مسائل د باب السّهو

١ که په مصلی سجده صلبیه پاته وه، او یا بل فرضي عمل او دَه پیاد هم وو نو ده قصدًا سلام وګرځاوه. لمونځ یې باطل سو. ولی د اسلام په مابین کی د لمانځه دی او د اسلام سلام وګرځاوه. لمونځ یې باطل سُو. ولی د اسلام په مابین کی د لمانځه دی او دا سلام چونکه عمدًا دی، نو دا سلام جلا کوونکی د فرائضو د لمانځه دی که څه هم ذکر دی» بخلاف المسئلة فان السلام وجد بعد تمام حقیقتها» «مرط، در»

٢ که د مصلی سجده سهوه هیره وه او یا سجده صلبیة وه او یا سجده تلاوتیه وه او دَه هیره وه. نو په دغه دري سره مسئلو کی ار اګرځول پر فرض دَه، تر هغو پوري چي دی د مسجد څخه نوی وتلی، او یاد لمانځه منافی لکه اکل او شرب وغیره نه وی صادر سوی. او که دی د سجد څخه وتی او یا منافی کار د لمانځه د ده څخه صادر سوی وُو، د څخه تر قضاء د ما نسیه نو که سجده صلبیه لمونځ یې فاسد سُو.

٣ که مصلی سلام وګرځاوه او پر ده باندی یو سجده تلاوتیه وه او بل سجده سهوه وه نو د ده دواړی هیری وی. او یا یې سهویه فقط پیاد وه نو دا سلام د ده قاطع د لمانځه نه دی، نو دی اول سجده تلاوت وکړي، او بیا دی تشهده ووائی تا چه هغه د څخه قعده پوره سي، او بیا دی سلام وګرځوي او بیا دی سجده سهوه وکړي. او بیا دی تشهده ووائی تا چه هغه د څخه تشهده پوره سي، او بیا دی سلام وګرځوي.

٤ او که د دغه سره دواړی سجدی پیاد وی او یا تلاوتیه یې پیاد وه فقط او سره د هغه په قصدًا سلام وګرځاوه» نو دا سلام قاطع د لمانځه دی او د ده څخه سجده سهوه او سجده تلاوتیه دواړی ساقطی سوي، ولی چي په سبب د قطع د لمانځه بناء نه سي کولای «ر، ب، ط، مرا، در»

٥ د مسائلو د باب السهو خلاصه دا ده که یو سړي سلام وګرځوي په سهوه سره پر دوو ر کعتو مثلاً او په هغه ځای کی د لمانځه وي چي ور پیاد سي چي نا ماخو دوه ر کعته مثلاً پاته وي او مخ یې د قبلې څخه هم نه وي اړه ولی، او منافی د لمانځه لکه خوړلک خبري یې هم نه وي کړي





بیرته دی خپل لمونځ پوره کړي بیله نوی تحریمی بلکه پر ما مضی دی بیاني بناء او لمونځ یې تام دی او سجده سهوه به کوي. او که بیي بل سړي په دغه حالت کی اقتداء وکي اقتداء یې صحیح دَه، او کی مخ د قبلې څخه واړاوه نو تر څو چي دی په مسجد کی وی او منافی د لمانځه کار یې هم نه وی کړي بیا دی هم بناء پر ما مضی وکړي لکه د مخ مسئلہ لعینها» ولی چي ټول په حکم کی د یو ځای دی. ولی چي ټول مسجد ځای د لمانځه دی»

او که د مسجده څخه ووتی او بیا ور پیاد سوه لمونځ یې فاسد سو بناء پر ما مضی نه ده صحیح، او که د امصلی په صحراء کی وو او جماعت ولاړ وو نو تر هغو پوري چي تر صفوفو وسته یا پر راسته اړخ نه وی تیر سوی. را اودی ګرځي و پوره کولو ته د لمانځه، او که تیر سوی وو او بیا ور پیاد سوه لمونځ یې فاسد سو عود و ما مضی ته دی نه کوی، او که دی د مخ پر خوا راړهی سو نو ځای ته د سجدی اعتبار نسته، نو که تر ځای د سجدی تیر سُو عود به نه کوی بلکه لمونځ یې فاسد سُو فی الاصح، او که په د مخ وخوا ته ستره وی هغه ته اعتبار ته دی په مجازات او عدم مجازات کی، ولی چي داخل د ستري په حکم کی د مسجد دی» هذا حاصل ما فی ط

**اصل د سجده سهوی څه دی** پوهه چي په صحاح ستة وو کی دا سی راغلی دی چي یو وخت آنحضرت صلی الله علیه وسلم د ماپښین په لمانځه کی وو یا د ما زدیګر په لمانځه کی (شک د راوی دی) او خوک چي وائی د ماخستن لمونځ وو هغه غلطه دَه، خیر خو پر دوه رکعته یې سلام وګرځاوه. او په قوم کی حضرت ابوبکر او عمر رضی الله تعالی عنهما هم موجود وه، لکن دوی حضراتو د هیبته په دی باره کی د علیه السلام سره خبري نسوای کولای او په خلکو کی یو سړي وو چي علیه الصلوٰة والسلام به ورته ذو الیدین وایه، ولی لاسو د قامت په مناسبت اوږده وه، او نوم آخر باقی یا عرباض بن عمرو وو، هغه د علیه الصلوٰة والسلام څخه پوښتنه وکړه: اَقُصِرَتِ الصَّلٰوةُ اَمْ نَسِيْتَ »، یعنی تاته په لمانځه کی وحی راغلی چي دا رباعی لمونځ کوتاه سو یعنی پر دوه رکعته ودریدی او که دی دوه رکعته هیر سوه علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل: کل ذالک لم یکن» یعنی نه لمونځ کوتاه سوی او نه زما هیر سوی بلکه لمونځ می پوره یعنی زما په ظن کی ذو الیدین قد کان بعض

ذالک» نوپوه خواخو پیښه ده یعنې چې کوتاه سوې نه دی نو دی هیر سوی دی. نو نبیا علیه الصلوة والسلام د خلکو څخه پوښتنه وکړه: اَحَقٌ مَا یَقُولُ ذُوالیَدَین قَالُوا نَعَم» نو نبیا علیه الصلوة والسلام دوه رکعته نور وکړه او په اخیر کی سجده سهوه وکړه الی اخر الحدیث»

**فائده**: په دغه وخت کی په لمانځه کی خبری روا وی بیا منسوخه سوی، یعنی که څوک اوس ورته خبری وکړي لمونځ یې فاسد دی، او دلیل د نسخی یې دا دی چې عمرؓ ته داغسی واقعه پیښه سوه یعنی سهوه سو او بیا د خلکو څخه پوښتنه وکړه، لکن لمونځ یې ده سره بیرته را او گرځاوه که ده ته نسخ نه وای ثابته نو ده عمل څخه د نبی علیه الصلوة والسلام په ولې مخالف ولکاو او په دغه لمانځه کی د حضرت عمرؓ د پېر صحابه کرام رضی هم موجود وه، چا انکار پری را نه گرځولو لمانځه ونه کړي» فصار اجماعًا منهم علیٰ ذالک»

## بنهاٰنه فائده

د دی حدیث څخه دا معلومه سوه چې سهوه پر انبیاء کرام علیهم الصلوة والسلام باندی روا ده او هغه چې بعض علماء وائی چې سهوه پر انبیاء علیهم السلام نه ده روا، ولی چې سهوه خو د غفلت څخه پیښیږی او انبیاء علیهم السلام د غفلت څخه پاک دی دا خبره د دوی نو صحیح حدیثو څخه خلاف ده، او د دوی دې خبری خطا کړی دی چې سهوه پر انبیاء علیهم السلام په امور تبلیغیه وو کی نه ده روا، یعنی چې دوی د خدای پاک د خوا څخه بیان د احکامو کوی او یا د عقائد و دینیه وو کوی. او هر هغه کار نه چې په تبلیغ پوری اړه نه لري په هغو کی سهوه پر دوی روا ده **پوه سه**: چې سهوه د نبی علیه الصلوة والسلام په لمانځه کی هم د سبب د غفلت نه وه بلکه دا سهوه په سبب د استغراق او شغل په خدای پاک سره وه چې لمونځ یې څندی هیر کړی سه ولنعم ما قال الشاعر البارع»

یَا سَائِلُ عَن رَسُولِ اللهِ کَیفَ سَهَا ⁖ وَالسَّهوُ مِن کُلِّ قَلبٍ غَافِلٍ لَاهٍ.

**جواب**: قَد غَابَ عَن کُلِّ شَئٍ سِرُّهُ فَسَهَا ⁖ عَمَّا سِوَی اللهِ فَالتَّعظِیمُ لِلّٰهِ»





# فَصلٌ فِی الشَّکِّ

دا فصل دی په بیان کی د شک یا په لمانځه کی او یا په طهارت کی: قال المراقی فی بیان بیان الشک وهو تساوی الامرین یعنی شک برابر والی دی د دوو شیانو اروښ وائی، د ظاهر لفظ څخه دا توهم کیږی چې مراد د شک څخه معنی حکمی ده وهو تساوی النقیضین» لکن امام طحطاویؒ وائی چې هغه معنا د لته نه ده مُراد بلکه مراد معنائی لغوی ده وهو عدم الیقین» قهستانیؒ» یعنی که دواړه طرفه سره برابر وی او که یو خوا راجح او بله مرجوح وي، ولې چې دا فصل د دغی معنای اعم د پاره معقود دی،

**سوال**: مصنفؒ وروسته وائی: وهو تساوی الطرفین **جواب** هغه خبره په صورت کی د بطلان ده هلته د شک څخه معنائی منطقی حکمی مراد ده » قال المصنفؒ

## تُبطِلُ الصَّلوٰةُ بِالشَّکِّ فِی عَدَدِ رَکعَاتِهَا اِذَا کَانَ قَبلَ

باطلیږی لمونځ په شک سره لکه د دری او دوو تر مابین شک وی، چې دا شک پیدا سی د مخه تر اکمال

## اِکمَالِهَا وَهُوَ اَوَّلُ مَا عَرَضَ لَهٗ مِنَ الشَّکِّ

د رکعتو، او وی دغه شک اول چې ورده ته وړ پیښ سو **پوه سه** چې اکثر مشائخ پر دی دي چې د بلوغ وروسته د ده داول شک وو، او فخر الاسلامؒ وائی چې په دغه لمانځه کی د ده اول شک وو، واختاره ابن الفضلؒ م» قال المصنفؒ»

## اَو کَانَ الشَّکُّ غَیرَ عَادَةٍ لَهٗ

او یا شک د ده عادت نه وی که څه هم اول شک نه وی» وجه او دلیل د بطلان یې دا قول د علیه الصلوة والسلام دی» اِذَا شَکَّ اَحَدُکُم فِی صَلٰوتِهٖ اَنَّهٗ کَم صَلّٰی فلیستقبل الصلوٰة یعنی که چا ته شک پیدا سو په لمانځه کی چې ما څو رکعته کړي دی نو لمونځ دی د سره را او گرځوي،

**سَوَالْ** په دی حَدیث شریف کی خودا نه دی راغلی چی دا اول شک وي **جواب** چونکه په بل روایت کی قید د اول شک راغلی دی نو په قانون د محدثینو دا مطلق محمول په هغه مقید دی، او بل دلیل دا دی چی دا سړی د صحرا نه د شک و عمران ته د یقین را تلای سي چی لمونځ را اوگرځوی د سر نه، لکه یو سړی چی شک وي چی ما د دی وقت لمونځ بیا کړی او که نه او وقت هم باقی وي نو د غه شک دی په یقین بدل کړی او لمونځ دی وکړي

قَالَ الْمُصَنِّفُ **فَلَوْشَكَّ بَعْدَ سَلَامِهٖ لَا يُعْتَبَرُ اِلَّا اَنْ يَّتَيَقَّنَ بِالتَّرْكِ**

او که سړي شك سو پسله سلام گرځولو څخه، او یا قبل السلام لکن چی په قدر د تشهد یه ناست کړي وي نو د غه شك لره اعتبار نسته، ولی چی ظاهر الحال دلالت پر اتمام کوي. مگر هغه وخت اعتبار لري که پسله شکه ده ته یقین سوه چی ما یو رکعت کم کړی دی مثلاً نو هغه دی وکړي

**مسئله**: که سړي لمونځ وکړی یعنی سلام یې وگرځاوه نو یو عادل سړي ورته وویل چی تا یو رکعت کم وکړی او ده دا باور وو چی ما لمونځ پوره وکړی نو د هغه عدل و اخبار ته دی نه گوري، یعنی لمونځ دی نه راگرځوي او که دوو عادلانو دا خبره ورته وکړه نو د دوي په خوله دی عمل وکړی او لمونځ دی را اوگرځوي،،

**مسئله**: که د امام او مقتدیانو سره اختلاف سو په عدد کی د رکعاتو د لمانځه نو که د امام پر خپل خبره کلك یقین وو، نو د مقتدیانو خبره ته دی نه گوری او که د امام پر خپله خبره نه باور نه وو نو د مقتدیانو خبره دی ومني، که څه هم بعض مقتدیان د ده د خبری ملاتړ کوی،، قَالَ الْمُصَنِّفُ :

**وَاِنْ كَثُرَ الشَّكُّ عَمِلَ بِغَالِبِ ظَنِّهٖ** او که مصلی ته په عدد کی د رکعتو ډیر وار ورته شك ور پیښیدی یعنی سره د دی چی عادت یې نه وي، نو دی دی عمل په غالب گمان سره وکی یعنی پسله فکرو هلو چې تحري ورته وائي: قَالَ الْمُصَنِّفُ :

خدایه وبخښی مولف او هم کاتب :: چی په ورځ د محشرگاه نه سی ر اسیب ::





**فَاِنْ لَّمْ يَغْلِبْ لَهٗ ظَنٌّ اَخَذَ بِالْاَقَلِّ وَقَعَدَ بَعْدَ كُلِّ رَكْعَةٍ** او که غالب گمان ده ته نه سو پیدا پسله تحری څخه نو بناء د لمانځه دی په هغه لږ عدد وکړی مثلاً په دوو او دریو کی شك وو پر دوو دی بناء وکړی **ظَنَّهَا اٰخِرَ صَلَاتِهٖ** ولی چی دوه خو متیقن دي او کښینیدی پر هغه رکعت چی د ده گمان کیږی، یعنی د اکثر پر احتمال چی دا به اخیر د لمانځه وی،،

**منشورات فصل السهو** دفتا واوو په کتابو کی وائی : که مصلی شك سو چي ما اول تکبیر وایه او که نه، نو تکبیر الافتتاح یې را اوگرځاوه او سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ یې هم وویل ور وسته یې ور پیاد سوه چی ما خو تکبیر الافتتاح ویلی وو، سجده سهوه دی وکړی، چی تاخیر د قرائت یې وکړی. او کی نه سوه ورپیاد هیڅ شی نسته، په مذهب د فخر الاسلامؒ چی اول شك یې په دغه لمانځه کی دی" مراد څندی دا معین لمونځ دی چی هم دا اوس یې دی کوی، نتیجه یې دا ده که سړي د ماپښین په لمانځه کی مثلاً شك سو. نو لمونځ به د سره شروع کړي په هغه کی بیا شك سو، دا لمونځ به را اگرځوی. ولی دا خو هغه معین لمونځ نه دی چی دی د مخه په کښې شك وو، بلکه په دی لمانځه کی په هغه د ول عمل کوي لکه مصنفؒ چی وائی : وَاِنْ كَثُرَ الشَّكُّ آه "

**پ[illegible]سله** : چی ثمره د اختلاف د ابن الفضلؒ د مذهب او د امام سرخسیؒ د مذهب او د اکثر [illegible] په دی مسئله کی ښکاره کیږی. چی یو سړي شك سو په اول پلا، په یوه لمانځه کی نو هغه لمو[illegible] وه گرځاوه، او بیا پسله څو کلو څخه بیا په یوه لمانځه کی شك سو، نو پر قول د امام سرخسیؒ د غه لمونځ به هم را اگرځوی، ولی چی شك خو د ده عادت نه وو، په کلو کی پیښیده شك نه بر[illegible]، او پر قول د ابن الفضل دی هم دا لمونځ را اوگرځوي ولی چی دا خو اول سهوه ده په د غه [illegible] کی، او پر قول د اکثر المشائخ را اگرځیده نسته ، ولی چی دا خو اوله سهوه بعد البلوغ [illegible] ئل سهوه بعد البلوغ خو د هغه بل کال دا وه،،

لمانځهٔ ځغزځان وباسی»

**مسئله**: لمانځهٔ بیرته راګرځول دادی چې دهغه اول لمانځهٔ ځغزځان وباسی» لمانځهٔ کله خوړلګ وغیره، او ترڅولو یاپه سلام ستره یاپه خبروسره اویاپه عمل منا فی دلمانځهٔ لکه خوړلګ وغیره، او ترڅولو یاپه سلام ستره یاپه خبروسره اویاپه عمل منافی د لمانځهٔ. ولې سلام دناستی په شریعت کی خلاصوونکی نه داده چې په ناستی دی سلام وګرځوی. ولې سلام د ناستی په شریعت کی خلاصوونکی د لمانځه دی، نقله الامام الطحطاویؒ عن السیدؒ وهو عن الزیلعیؒ»

**مسئله**: که یوسړی شك سوپه یوم لمانځهٔ کی دشبا نه روژ، یعنی داخو یه یقین ووچی ژ ماځغزخویولمونځ دشبانه روژقضاسوی دی لکن په تعیین کی دهغه لمانځهٔ شك وو، نو دیوم شبا نه روژ ټول لمونځونه دی راوګرځوی، تاچې په یقین سره د قضائی لمانځهٔ ځغزخلاص سی» فتح»

**مسئله**: که دسړی شك وو په اودس ماتیدو کی او یقین یه ووپه طهارت کی نو دی اودس کوی، یعنی دسړی سره یقینًا یادوی چې ماخوپرفلانی ځای اودس تازه کړی لکن شك په دی کی وو چې مابیا اودس مات کړی او که نه. نودی اودس لري، او که ده سړی یقین وو پرپې اودس ایا ندی او شك یه وو په اوداسه کی یعنی دسړي یقینًا یادو چې ما خوپرفلانی ځای اودس مات کړی» مګرشك په دی کی وو چې بیا ما اودس تازه کړی او که نه! نو داسړي بې اودسه دی. او دا هم معنا دهغه قول دفقهاوؤ: اَلْيَقِيْنُ لَايَزُوْلُ بِالشَّكِّ»

**مسئله**: که یوسړي شك سو په بعض اندامو کی د اوداسه چې ما پریولهٔ او که نه! او اول شك وو دده نوهغه اندام دی پری مینځی او که ورته شکونه ودهٔ ته ډیر پیدا کیده هغهٔ ته دی التفات نه کړي، ولې چې اخیر الامر موسوس ګرځندی جوړیږی»

**مسئله**: که سړي په لمانځهٔ کی وو او په تکبیر افتتاح کی شك سو چې ما ووایه او که نو که اول وار وو راودی ګرځی او که ډیر ور پیښیدی خپل لمونځ دی ېپی کوی.

**مسئله**: که دسړي پسله اوداسه ځغزداشك ورپیدا سو، چې دا اوبه پاکی وی او که مرداری، اویا په نجاست کی دجامی شك ورته پیدا سی اویا په طلاق کی دمایني شك ورته پیدا سو یعنی چې ما به طلاق ورکړي وی او که نه داشکوك اعتبار نه لري،





اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ، خالق السموات والارضین، الموفق للخیرات المنزل للبرکات عَلٰی مَا اَنْعَمَ علی هذ العبد الضعیف العاصی ابی الفضل المدعو بمحمد عبید الله» السنی عقیدةً، الحنفی مذهبًا، النقشبندی مشربًا، السلیمانخیلی نسبًا، القندهاري موطنًا، الافغانی لسانًا، الایوبي تخلصًا، ابن الحاج المرحوم الملا محمد ایوب غفرله الباري، من تالیف الجزء الثانی لشرح نورالایضاح السامی، بالخیر والعافیة والصحة والسلامة، و الصلوٰة والسلام علیٰ سید طائفة الانبیاء والمرسلین وسیلتنافی مشکلات الدارین، محمد وعلیٰ اٰله وصحبه الطاهرین الکاملین خصوصًا علی الخلفاء الراشدین، واتباعهم الورعین، خصوصًا علیٰ امام الائمه سراج الامه المرحومه ابی حنیفة النعمانؒ، وعلیٰ جمیع الائمه المجتهدین فی الدین والائمه المحدثین والقراء المجودین وعلیٰ سائر اولیاء الله الصالحین خصوصًا علیٰ قائدی الطرق الاربعة فی الطریقة، وعلیٰ جمیع امة خیر البشر الی یوم القیامة، والدین، برحمتك یاارحم الراحمین واغفرلی ولوالدیَّ وارحمهما کماربیانی صغیرًا، اٰمین یارب العٰلمین: یوم الاربعاء ۱۵ من جمادی الاول سنة ۱۴۲۲ه ق»

# ابیات

۱- دعشق مقام ډیرعالی ۞ وهرمطلب ته خولك په عشق رسیږی.
۲- زماپه زړه کی دښووني عشق دی ۞ ځکه قلم می پرصفحو چلیږی.
۳- زما ټوله عمر په دی کار کی تیرسو ۞ یخ و ګرمی وما ته یو معلومیږی.
۴- سره ددرس وتدریس تصنیف ۞ هم برابر او همیشه کره کیږی.
۵- داد خدای فضل او مهربانی ده ورباندی ۞ چې په دی کار کی ملال پرزړه نه تیریږی.
۶- خلګ حیران دی ودی کار ته زما ۞ لکن قلم دی چې دعشق پرکاغذه چلیږی.
۷- دنیا طلبه ته په غوږ ګوری ۞ چې په هیڅ ډول په دنیا فانی نه مړیږی.

٨. داد دوی عشق کامیابه کړی دی دوی ؛ چې په هیڅ ډول د طلب سره په نه تیریږی.
٩. د منهومان لا یشبعان حدیث ؛ همیشه ستاسی ترغوږ و تیریږی.
١٠. عبید الله لکه پتنګ همیشه ؛ د دی بنوونی پر ډیوه کړیږی.

## خواجہ عبد الله الانصاریؒ

ای طالبی که دعوی عشق خدا کنی ؛ بر غیر او نظر محبت چرا کنی.
از جستجوی خلق تو بیگانه شو اگر
خواہی که دل بحضرت او آشنا کنی
حقا که شور و لوله در آسمان فتد
آندم که تو زبیم خدا یک ندا کنی
ملک دو عالم از تو شود گر ز روی عجز
خود را فدای خاطر یک بینوا کنی
انصاریا چو روز شوی روشن از شبی
خود را بعجز در سبحان گدا کنی.

## وما احب ما قیل

صرفت العمر فی لهو ولعب ؛ فآها ثم آها ثم آها ؛
احب الصالحین ولست منهم ؛ لعل الله یرزقنی صلاحًا ؛
وما انا من کید الحسود بآمن ؛ ولا جاهل یدری ولا یتدبر ؛
هم یحسدونی وشر الناس کلهم ؛ من عاش فی الناس غیر محسود

اللهم اغفر لمولفه ولکاتبه کتبه احقر العباد فضل الحق حقانی غفرله وقد نشره مکتبة القراءات والتجوید بکوئٹہ حسب الاهتمام شمس الحق شمس مدیر المکتبة ،





# د پښتو نور الایضاح جلد دوهم د مضمونو فهرست

# د نور الایضاح پښتو دوهم ټوک د مضمونو فهرست







# د پښتو نور الایضاح دوهم ټوک د مضمونو فهرست

# دپښتونورالایضاح دوهم توك دمضمونوفهرست







# دپښتونورالایضاح دوهم توك دمضمونوفهرست

# اِعْلَان — خبرتیا

چونکه دا شرحه زما عبید الله مستقل تصنیف دی او ډېره جان فشانی می په کښی کړېده، او بیا زما د کتابونا موړی کاتب» قاری فضل الحق صاحب» د نوشته نه علاوه ډېر مصرف یه د کتابت په دوران کښی په کښی کړی دی» لهذا اما حقوق د طبع د دی شرحی و ناموړی قاری صاحب ته هدیه کړېدی. هیڅ کتا بفروش حق د طبع زما دغی شرحی نه لری، او د کمپیوټر دلاری دی هم د لاوری د طبع نه کوی، شرعی او اخلاقی او تجارتی قوانین دی په فهم کی ولری، تیار خوری دی نه کوی، او د سرلغړولو په صورت کی به علاوه تر حقوقی جنجال، د ناموړی قاری صاحب زما چی مصنف د دی کتاب یم هم د حتی المقدور کشمکش سره به مخامخ سی، البته قاری صاحب به هم کتا بفروشا نو ته فی جلد ۵ کالداری مراعات په نظر کی ولری، ان شاء الله تعالی: وما علینا الا البلاغ قبل الوقت

## دحضرت اولی دخط متن:

= اعلان = خبرتیا»

چونکه دا شرحه زما عبید الله مستقل تصنیف دی او ډېره جان فشانی می په کښی کړېده» او بیا زما د کتابو ناموړی» قاری فضل الحق صاحب» د نوشته نه علاوه ډېر مصرف یه د کتابت په دوران کښی په کښی کړی دی لهذا ما حقوق د طبع د دی شرحی و ناموړی قاری صاحب ته هدیه کړی دی هیڅ کتا بفروش حق د طبع زما د دغی شرحی نه لری» او د کمپیوټر دلاری د هم د لاوری د طبع نه کوی» شرعی او اخلاقی او تجارتی» قوانین د په فهم کی ولری» تیار خوری د نه کوی» او د سرلغړولو په صورت کی به علاوه تر حقوقی جنجال د ناموړی قاری صاحب زما چی مصنف د دی کتاب یم» هم د حتی المقدور کشمکش سره به مخامخ سی البته قاری صاحب به هم کتابفروشانو ته فی جلد ۵ کالداری مراعات په نظر کی ولری ان شاء الله تعالی وما علینا الا البلاغ قبل الوقت

عبید الله اولی قندهاری